# تحقیقات حماسی





مؤلف

عبد الحمید بن عبد الرشید بن محمد

نبی بن عبد الحنان الحماسی




۱۳۹۴ هـ ش

بسم الله الرحمن الرحيم

عن انس بن مالک رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:طلب العلم فريضة على كل مسلم.

(رواه البيهقي في شعب الايمان٣/١٩٥- رقم الحديث ١٥٤٥)

# تحقيقات حماسي

مؤلف : محقق العصرومدقق الدهرالشيخ المحدث مولانا عبدالحميد بن صاحب الكرامات السعيده والكمالات الحميده الشيخ المحدث مولانا عبدالرشيد بن فقيه العصرالشيخ المحدث مولانامحمدنبى بن صدرالعلماءالشيخ المحدث مولاناعبدالحنان «الحماسي»

الترتيب والتخريج من : سيدضياألاحمد «صارم الحسيني الحنفي»

بربنسنايي كوونكى: عزت الله سلطانزي

# دکتاب ځانګړتیاوې:

دکتاب نوم: تحقیقات حماسي.

مؤلف :محقق العصرومدقق الدهرالشیخ المحدث مولانا عبدالحمید بن صاحب الکرامات السعیده والکمالات الحمیده الشیخ المحدث مولاناعبدالرشید بن فقیه العصرالشیخ المحدث مولانامحمدنبي بن صدرالعلماءالشیخ المحدث مولاناعبدالحنان «الحماسي».

ترتیب اوتخریج : سید ضیاألاحمد«صارم الحسیني الحنفي».

کمپوز : خپله مرتب.

بیا کتنه : دکتاب مؤلف.

دچاپ شمیر :۱۰۰۰ ټوکه

دچاپ وار : دویم چاپ له نویوزیاتونواوسمونونوسره.

دلاسته راوړلوځای : دانتشارات حاجی سردارخان وپسران کتابفروشی جاده میوند احمدي پلازه دویم پوړ پخته فروشی ته مخامخ، دپل خشتي مسجد ترخنګ ،دکلیم فروشی کوڅه اوجوی شیر .

داړیکوشمیرې:۰۷۹۹۳۰۱۸۲۰، ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳، ۰۷۸۷۷۵۲۲۶۲، ۰۷۸۶۰۵۷۱۱۰

فهرست

# پیلیزه.

حامدًا ومصلیاً امابعد : ځینې وختونه یوڅوک په خپل ژوندکې له یوداسې چا سره مخا مخ شي چې دهغه ځینې ځانګړتیاوې دانسان عقل او فکردتحیرپه لوربیایي،زه هم چې کله دجناب شیخ صاحب ددرس په حلقه کې داخل شوم دجناب شیخ صاحب علمیت متحیرکړم؛په زړه کې مې یوڅه راوګرځیدل چې دجناب شیخ صاحب تحقیقا تي درسونه له ځان سره دموبایل په واسطه ثبت کړم،همداسې مې وکړل،څه وخت وروسته الله تعالی زما په زړه کې الهام وکړ چې ځینې تحقیقاتي مضامین له ځان سره دکاغذ پرمخ ولیکم؛ځکه چې دلیکلوپه واسطه دعلم حبس اوبندوالی راځي.
سره له دې چې تحقیقونه له ما څخه نیمګړي هم شول اوزه په دې ونتوانیدم چې ټول تحقیقاتي درسونه سره یو ځای کړم؛خوبیاهم دالله تعالی فضل اواحسان وه چې زمادې هڅې اوزیاردکتاب بڼه غوره کړه.
که څه هم چې ماددې کتاب بشپړ تخریج ونشوی کړای ځکه چې جناب شیخ صاحب په هره مسئله کې په خورا ډیروکتابونوباندې حوالې کړیدي؛خوبیاهم ما خپل ټول توان اوامکانات وکارول؛دمبارکوآیتونواواحادیثوترڅنګ مې دځینومسائلوتخریج هم وکړ؛ددې لپاره چې دعلم مینه وال وکولای شي چې په مستند ډول خپله علمي تنده ماته کړي؛اودعلم له مزایاوڅخه خوند واخلي.

په ډیره مینه :

سید ضیاالاحمد «صارم الحسیني الحنفي»

## مقدمة المؤلف.

الحمد لله الذ ي اختار من جميع المخلوقات الانسان ثم اصطفى منه اهل التقوى والايمان فمنهم الملك ومنهم الشيطان يخرج الحى من الميت فالخليل من آذر ذى الكفران ويخرج الميت من الحى فمن نوح كنعان جرى قدره فكفر ابوطالب واسلم عثمان وضل ابولهب واذن لبلال في الآذان والصلاة والسلام على رسوله ذي الشان .

**امابعد: تحقيقات حماسي چې ددرس په دوران كي زما يوه شاګرد فضيلة الشخ مولوي ضيا الاحمد "صارم" دلوكر ولايت دشاهمزار دسيمى داباجان صاحبزاده ﷺ لمسي ليكلى وه .**

اللهم انج هذاالكتاب عن حسدالحاسدين واجعله سببا لهداية المهتدين وذريعة لرفع الدرجات ،واوصل ثوابه لوالدتى المرحومة ،زادهاالله شرفافى الاخرةواجعل روحهافى اعلى العليين .آمين .

# ترجمة المؤلف.

اسمه: عبدالحميد بن شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالرشيد .

ولد: فی دارالهجرة يعني باكستان فی قرية كاهي من مضافات هنكو سنه:(١٣٦٦) من الهجرة وقدحصل علومه الابتدائيه عن جده فقيه العصر استاذالاساتذه حضرت مولانا محمد نبي جان رحمه الله فی جامعة العلوم سراج الاسلام كاهي وايضًا حصل العلوم فی هذه الجامعه عن عمه المشفق فضيلة الشيخ حضرت مولانا فيض الله المشهور بالامام صاحب ثم ذهب مع عمه المدقق فی عصره شيخ الحديث عبدالسلام «فقير» الی الارض المسماة بالخساره لحصل هناک العلوم منه فی الجامعة شامحمدية الی ان نصب والده للدرس في شامحمد ية لحصل ايضًا منه العلوم؛ ثم رحل مع عمه الصغير الحافظ حضرت مولانا عبدالولي«افقر» الی مهجر اللوجر لحصل هناک العلوم في مدرسه النعمانية من عمه ومن حضرت مولانا محمدظاهرجان؛ثم سافرمع ابيه الی وزيرستان الشمالي لحصل هناک العلوم في منبع العلوم التي بناها المجاهدالكبير حضرت مولانا جلال الدين «الحقاني»من حضرت مولانا محمد نظيم ومن حضرت مولانا سرفرازخان؛ثم رجع مع عمه ماهرالعلوم الادبية حضرت مولانا نورعالم الی وطنه يعني افغانستان لحصل العلوم منه ومن شيخ الحديث حضرت مولانا ميرصاحب فاروق فی الجامعة الاسلامية الصديقية درونته الواقعة فی جلال آباد ؛ثم عاد الی النعمانية مدة قليلة؛فبعد ذلک ذهب الی الكابول لحصل هناک العلوم من ابيه مدة كثيرة الی ان حصل منه الدرجة التكملة فی الجامعة الاسلاميةٔ محمدية لسهاک.

ثم رحل الی باكستان وقراء هناک كتب المنطق (الدرجة التكملة) مرة ثانية فی مدرسة نورالمدارس الواقعة في ده افغانان من الشيخ الحديث الجامع للمنقول والمعقول حضرت مولانا محمدزاهد «عزيزخيل»ومن ماهر الفنون حضرت مولانافضل رحمان؛ثم درس الدورة الصغری في مهاجر بازارمن عمه عبدالسلام «فقير»ولكن ماكملها الی ان جاء الی ابيه فكملها منه؛ثم واصل دروسه النهائية يعني الصحاح الستة من ابيه في الجامعة الاسلامية سهاک في عام (١٣٨٧) وكان عمره (٢١) سنة وفی هذه السنة اجازه والده في تدريس الحديث النبوي الشريف وايضًاحصل له الاجازة من مناظر اهل السنة والجماعة شيخ الحديث حضرت مولانا حمدالله جان (الداجوي) ثم وظف مدرسا في الجامعة الاسلامية محمدية لسهاک فقد درس فيها كتب الفنون ثم في العام الثانی من تدريسه بدا بتدريس الدورة الصغری مع العلم بأن الشيخ كان يدرس ويدرّس فی آوان تحصيله .

وهو رجل نحيف لاسامي الكتب ومصنفيها لانه قد طالع كثيرا من الكتب ،وهو بليغ يبلغ تبليغًا ليطين القلوب ولينهر العيون حتی جعل له سبب حج لبيت الله وهو يطبع الاسجاع بجواهر لفظه ويقرع الاسماع بزواجر لفظه والی أن قاب قو سين او ادنی الی الناس تبليغًا فيدعونه الی كل مجلس علمي وله نطق مؤيد بالحجة واصابة وهو للمسائل المغبرة مكسحة وللفرق الباطلة لشوكة في حلقومهم وهو لهم صاعقة يجعلون اصابعهم في أذانهم من الصواعق حذرالموت، وهو فی التواضع جسر وفی العلم بحر ،اذاكان في مابين تلامذه ليظن انه منهم ،واذاكان في مابين شيوخ

عظام ليظن انه تلميذ لبعضهم ولكن اذاتكلم فاذاهو شيخ كبير،والعلماء لصغر سنه وجلالة علمه يحسدونه اذالحسدمقسوم بين العباد فتسعة أعشار للعلماء؛ومن مناقبه كان من اجداده الى اثنا عشرجداً من العلماءالكبار ومن مفاخرهم شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالقدوس جانرحمه اللهم فحقق له هذه المنية وانله هذه البغية ولاتضحه عن ظلك السابغ ولاتجعله مضغة لماضغ وتعصمه من الغواية في الدراية وانزله كرمك الجم وفضلك الذي عم.

كاتب هذه السطورة عبد المعيد ابوالجراد.

## دامام ابي حنيفه رحمة الله عليه مناقب.

امامنا امام الاعظم ابوحنيفة النعمان رحمه الله تابعي دي؛له ډيروصحابه وسره يي ملاقاتونه شويدي چي له هغي جملې څخه دځينونومونه په دي ډول دي:حضرت انس بن مالک رضی الله عنه له نوموړي څخه امام صاحب ددي حديث شريف روايت هم کړيدی چي:طلب العلم فريضة علي کل مسلم.
حضرت عبدالله بن انيس الجهني ،حضرت عبدالله بن الحارث بن الجز ،حضرت جابر بن عبدالله من المکثرين في الاحاديث ،حضرت معقل بن يسار اوحضر ت عائشة بن عجردرضی الله عنهم.
همدارنګی له ځينونوروصحابه وسره هم دامام صاحب ملاقاتونه شويدي خوهغو ملاقاتونوکي اختلاف شته؛عقود الجمان في مناقب الامام ابي حنيفة النعمان دعلامه محمديوسف الصالحي الشامي،التبيض الصحيفه في مناقب الامام ابي حنيفه دعلامه ذهبي اوالخيرات الحسان في مناقب الامام ابي حنيفة النعمان دعلامه ابن حجرالهيثمي کي ددي ذکرشويوصحابه و نومونه په خانګړيو بابونوکي دذکر شويدي.
له دي څخه څرګنده شوه چي امام ابو حنيفه رحمه الله تابعي دی.ددې لپاره چي دامسئله ښه جوته شي يو څه نورتحقيق ته هم اړتياده هغه داچي آياله حضرت انس بن مالک سره په ريښتيا هم دامام صاحب ملاقات شويدی اوکنه؟ حضرت انس بن مالک هم يوله هغو صحابه و څخه دی چي ډير احاديث يي روايت کړيدي ،بنا براختلاف شپږ،وه اويا هم اته صحابه دي چي له نبي کريم ﷺ څخه يي ډيرحديثونه روايت کړيدي،چي يوله همدي صحابه و څخه حضرت انس بن مالک دی،چي له نبي کريم ﷺ څخه يي په زرګونوحديثونه روايت کړيدي؛په دې باندې ددونياتول علماء قائل دي چي له حضرت انس بن مالک سره دامام صاحب ملاقات شويدی اودرې حديثونه يي هم له هغه څخه روايت کړيدي[1]يو له دي علماو څخه علامه ذهبي دی نوموړي دامام صاحب په مناقبو کي کتاب جوړکړيدی هلته يي ليکلي دي چي امام صاحب تابعي دی؛تذکرة الحفاظ دنوموړي بل کتاب دی هلته يي حافظا داحاديثو يکي راجمعه کړيدي هلته يي هم دامام صاحب يادونه کړيده اوامام صاحب يي په تابعينو کي ذکرکړيدی.

امام سمعاني اوعلامه ابن حجر هم ليکلي دي چي امام صاحب تابعي دی.خطيب بغدادي الذي کان معاندامع امام ابی حنيفه رحمه الله قداقربملاقات امام ابي حنيفه رحمه الله لانس بن مالک في کتاب المشهور باالتاريخ البغداد.
علامه زين الدين العراقي چي نوموړی ددونيا لوی محدث تير شويدی او ولی الين ابي ذرعه العراقي هم ليکلي دي چي دامام صاحب له انس بن مالک سره ملاقات شويدی.

---

[1] وجاء من طرق انه روی عن انس رضي الله عنه احاديث الثلاثه . (الخيرات الحسان/۴۲)

علامه محمد زاهد الکوثري هم په خپل کتاب التأنیب الخطیب في ماساق علی ابي حنیفه من الاکاذیب په مقدمه کي په دې باندې تحقیق کړیدی چي دامام صاحب له انس بن مالک سره ملاقات شویدی.نوموړي داکتاب ددی لپاره جوړ کړیدی چي خطیب بغدادي په خپل کتاب تاریخ بغدادکي دامام صاحب بدی سندابیان کړیدي؛بیرته داما صاحب په مقلدینو کي علامه محمد زاهد الکوثري دخطیب بغدادي په هغو ټولو سندونو باندې تحقیق کړیدی کوم چي هغه دامام صاحب په بدیوکي ذکرکړیدي چي داسری دروغژن دی،داسری ضعیف دی لنډه داچي دخطیب بغدادي ټولي خبرې یې ردکړیدي.

طبقات ابن سعد کي امام دار قطني هم لیکلي دي چي دامام صاحب له حضرت انس بن مالک سره ملاقات شویدی،سره له دې چي نوموړی دامام صاحب سخت معاند هم دی ځکه چي هغه په خپل کتاب کي یوحدیث راوړی بیا یې لیکلي دي چي داحدیث ضعیف دی ځکه چي ددې حدیث په سند کي امام ابي حنیفه دی او هغه ضعیف سړی دی خو هغه هم په دې باندې اقرار کوي چي دامام صاحب له حضرت انس بن مالک سره ملاقات شویدی.

## امام ابي حنیفه رحمه الله امام دجرحي اوتعدیل دی:

په علم احادیثو کي تر ټولو مشهور علم دجرحي اوتعدیل دی؛ځکه چي داحادیثو ټول صحت اونه صحت په رجالو باندې ولاړ وي.تر ټولو دمخه ددې علم اختراع امام شعبي رحمه الله کړیده؛په دویمه مرتبه کي معبر عالم محمد بن سیرین رحمه الله دی اوپه دریمه مرتبه کي امام ابوحنیفه رحمه الله دی.

دجرحي اوتعدیل ډیرو امامانو په دې اړوند له امام صاحب څخه واقعات نقل کړیدي دبیلګي په ډول: امام ابوحنیفه رحمه الله وایي چي جابرجعفي کذاب دی اوداسي نور.ځیني دامام صاحب معاندین وایي چي امام صاحب په علم احادیثو نه پوهیده هغه هسي دتعصب خبرې دي امام صاحب ته الله تعالي په علم داحادیثو کي دومره لوی علمیت ورکړی وه چي په هغه زمانه کي به نوموړي داحادیثو په رجالو باندې تحقیق کاوه اودحدیث صحت اونه صحت به یې ځیني معلوماوه.نوموړی په علم داحادیثوکي خپل مسند هم لري مسند امام ابي حنیفه چي علي قاري صاحب شرحه همورباندې کړیده مسندالانام في شرح مسندالامام.

امام صاحب ته الله تعالي متبحرعلم ورکړي وه دهغه په مناقبوکي علماؤ لیکلي دي چي نوموړي په خپل ژوند کي (١٢٧٢٠٠٠)مسائلو استنباط کړیدی.

## امام ابي حنيفه رحمه الله او اعرابي:

يووخت كي امام ابو حنيفه رحمه الله له خپلو شاګردانو سره په خپله درس ګا كي ناست وه چي يو اعرابي (كوچى) راغى له امام صاحب څخه يي پوښتنه وكړه ام بواو؟ام بواوين؟امام صاحب خواب وركړ چي ام بواوين.اعرابي وويل:بارک الله فيک كما بارک الله في لا ولاکِ.په دي سره اعرابي بيرته دامام صاحب له درس ګا څخه خارج شو.

شاګردانو له امام صاحب څخه پوښتنه وكړه چي داڅه په پيرياني ژبه موخبري وكړي؟امام صاحب وويل:جي ده له ما څخه پوښتنه وكړه چي زه په لمانځه كي كوم تشهدوايم؟دعبدالله ابن مسعود جي په هغه كي دوه واوه دي اوكه دعبدالله ابن عباس چي په هغه كي يو واودى؟بيا يي راته وويل:چي بارک الله في لا ولاکِ ددي معنى داده چي الله تعالى دي په تا كي داسي بركت واچوي كماقال الله تعالى﴿ شَجَرَةٍ مُّبَٰرَكَةٖ زَيۡتُونَةٖ لَّا شَرۡقِيَّةٖ وَلَا غَرۡبِيَّةٖ ﴾النور: ۳۵ په هغه زمانه كي دي اعرابي ته دومره زيات مهارت الله تعالى په علم كي وركړى وه.نهاية المراد دعلامه عبدالغني النابلوسي كي داحكايت ذكردى.

## دعلم بيان.

له صحابه وسره دعلم مينه:امام بخاري رحمه الله له حضرت جابربن عبدالله څخه اثر نقل كريدى چي نوموري ديوه حديث شريف دزده كولو لپاره يوه مياشت سفركرى وه.[1]

حدائق ذات البهجه داپه زركونو جلدونو كي دقرانكريم تفسير دى؛له دي تفسير څخه علماؤ نقل كريدى چي يووخت كي حضرت عمر ته يوسپين ژيرى اتيا كلن سرى راغى هغه پوښتنه ورڅخه وكړه چي له كوم ځاى څخه راغلى يي؟سپين ژيرى خواب وركړ چي له شام څخه راغلي يم.بيا حضرت عمر تري وپوښتل چي دڅه لپاره راغلى يي؟سپين ژيري خواب وركړ جي يواځي دالتحيات لله دزده كولو لپاره راغلى يم؛حضرت عمر په ژړا شواو له ځان سره يي وويل:جي دي ته وايي دعلم شوق چي يواځي دالتحيا ت لله دزدكړي لپاره له شام څخه مديني منوري ته راغلى دى.سپين ژيري ته يي وويل:چي تا به الله تعالى خامخا جنت ته بيايي ځكه چي تاسره دومره زيات دعلم شوق دى چي يواځي دالتحيات لله دزده كولولپاره دلته راغلى يي.

---

[1] - رحل جابربن عبدالله مسيرة شهر الى عبدالله بن أنيس في حديث واحد- صحيح البخاري – ۱/۱۷

داسي نه وه چې په شام کې دچاتشهد نه وه زده اصلي خبره په دي کی وه چې تشهدله شلوڅخه زیاتو صحابه و روایت کړیدی خودیوه صحابي الفاظ دبل صحابي له الفاظوڅخه مختلف دي؛دي سبین زیري ته شک پیداشوی وه ددی لپا ره مدینې ته راغلی وه چې دی په خپله له حضرت عمر څخه پوښتنه وکړی چې کوم یو تشهد صحیح دی.

## (طلب العلم فريضة على كل مسلم) حديث شريف كې تحقيق:

داحدیث شریف چې **طلب العلم فريضة على كل مسلم**[1] علامه سیوطي په پنخوسوسندونوباندی راوړیدی خوهغه ټول سندونه ضعیف دی؛بیانوموړي لیکلي دي چې داحدیث په اعتبار دمجموعه طروقوسره مرتبی دحسن ته رسیږي اوحسن حدیث داستدلال وړوي؛نوموړي په الدرر المنتثره علی احادیث المشتهره علی السنه کتاب کې لیکلي دي چې ددې حدیث په اړونددخینو علماوو رایه داده چې داحدیث صحیح لغیره دی اوځیني نورمحدثین وایي چې داحدیث حسن دی.

همداراز علامه زین الدین ابن حسین العراقي هم په خپل کتاب المغني من حمل الاظفار کې لیکلي دي چې داحدیث حسن دی.اوعلامه ناصرالدین الباني لیکلي دي چې داحدیث صحیح حدیث دی.لنده داچې یاخوداحدیث صحیح دی اویاهم حسن دی قابل داستدلال دی.

خو دیرداسي خلک دي چې هغوی په دې حدیث کې یولفظ بل هم زیاتوي هغه داچې **طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة** .اکثره غرب پلوي خلک په دی حدیث کې مسلمة لفظ خکه زیاتوي چې هغوی په دې سره دښځولپاره تعلیم ثابتوي.مسلمة لفظ بلکل په دې حدیث کې نشته.دنړی لوی محدث علامه سیوطي داحدیث په پنځوسوسندونوسره ذکرکړیدی خوپه یوه سند کې هم دالفظ نشته.علامه سخاوي چې دی هم په دونیاکې لوی محدث تیرشویدی په المقاصدالحسنه کې لیکلي دي چې دالفظ موضوعي دی[2].علامه علي القاري دعلم احادیثو په خپلوټولوکتابونوکې لیکلي دي چې مسلمة لفظ موضوعي دی.[3] علامه زین الدین العراقي په خپل کتاب حمل الاظفار کې لیکلي دي چې مسلمة لفظ

---

۱-عن انس بن مالک رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:طلب العلم فريضة على كل مسلم - رواه البيهقي في شعب الايمان . ۳/۱۹۵ . رقم الحديث ۱۵۴۵ وايضاً رواه عن ابي سعيد الخدوري رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم طلب العلم فريضة على كل مسلم.۳/۱۹۵ رقم الحديث ۱۵۷۴ .

۲-وقد الحق بعض المصنفين باخر هنالحديث «ومسلمة»وليس لها ذكرفي شئ من طرقه وانكان معناها صحيحا . المقاصد الحسنه .۱/۴۴۲ رقم الحديث ۶۶۱

۳-وقد الحق بعض المصنفين باخر الحديث«ومسلمة»وليس لها ذكر فى شئ من طرقه . مرقاة المفاتيح - ۱/۴۳۵

موضوعي دی.علامه ابن حجر هم ليکلي دي چي دالفظ په دي حديث کي نشته.او علامه زبيدي هم الاتحاف کی ليکلي دي چي دالفظ په دی حديث کی نشته.

لنډه داچي دعلم احاديثو په تولوکتابونوکی ليکلي دي چي مسلمة لفظ موضوعي دی خومعنا يی صحيح ده.

## فرض علم کوم دی؟

امام غزا لي رحمه الله احياءالعلوم الدين کي ليکلي دي چي حديث کي خوراځي چي **طلب العلم فريضة على كل مسلم.**(١)اوس دافرض علم کوم يودی؟په دي اړوندخينو علماؤليکلي دي چي فرض علم تصوف دی.بعضی علماءوايي چي فقه ده.اوعلماء دعلم طب وايي چي فرض علم طب دی؛ځکه چي دي ته دی ضرورت دی.والله اعلم.

## لدُني علم:

کله ناکله الله تعالی خينو خلکوته لدني علم هم ورکوي.يووخت کي يوعالم له نوروعلماؤسره يوه مجلس کي ناست وه؛دي عالم هغونوروعلماؤ ته وويل:چي په تاسي کي يوتن راشی له ماسره معانقه وکړی نوزه به يوڅه درکړم؟هغونورو رشخند ورباندي ورواهه چي ته به مونږته څه راکړي؟هيڅوک هم ورجيک نشول؛دي مجلس کي يو شپون هم ناست وه هروخت به يي په غرونو کي ميږي څرولي په هيڅ هم نه پوهيده دي عالم هغه ته وويل: چي ته راشه له هغه سره يي خپله سينه وجنکوله بنه يی دخپل ځان په لوري زورکړڅومره علوم چي په ده کي وه هغه يي ټول هغه ته هم ورېلوتوث کړل شپون ته يي وويل: چي کينه هغو نورو علماؤ ته يي وويل: چي اوس پوښتني ورڅخه وکړی چي دی ځوابونه درکړي؛هغوی چي کومه پوښتنه تري کوله ده سم ځوابونه ورکول.بالاخره هغه علماء هم حيران شول چي داڅه عجيبه نادره ده.دي ډول علم ته چي پرته له زدکړي حاصل شوی وي علم لدونی وايي.بهجة النفوس چي دا په بخاري شريف شرحه ده هلته يي داحکايت ذکرکړيدی.

## دعلم غيب بيان:

تفسير روح المعاني کی علامه شهاب الدين الوسي ليکلي دي چي علم غيب هغه علم ته ويل کيږي چي هغه په اسبابو بناء نه وي؛هغه علوم چي يو څوک يي داسبابو په واسطه ځان ته حاصل کړي هغه ته علم غيب نه ويل کيږي؛خوهغه علوم چي پرته له اسبابوحاصل شي هغه علم غيب

---

(١)- سبق تخريجه.

دی.ډیرداسي خلک دي چې کله له راډیوڅخه واوري چې صبابه په فلانکی سیمه کې باران وي یاهم صبا په دومره بجولمر یاسپوږمۍ نیول کیږي؛اویا اوس تلویزوني معاینې دي چې دهغې په واسطه دښځې حمل معلومیږي؛بیاځینې خلک ویې چې داسي خبرې مه کوی غیب مه وایی چې دخلکوعقیدې به وربانديې خرابه کړی؛خوداخبره بلکل غلطه ده ځکه چې دي دول علم ته علم غیب نشي ویل کیدلای ځکه چې داټول کارونه داسبابو په واسطه کیږي؛اوعلم غیب هغه علم ته ویل کیږي چې پرته له اسبابوڅخه وشي؛څومره علوم چې په دونیا کې داسبابوپه واسطه راپیداشویدی هغوته علم غیب نشي ویل کیدلای.اوبل داچې په نړی کې ډیرداسي خلک شته چې هغوی رسول اللهﷺ ته علم غیب ثابتوي چې داهم یوه مردوده عقیده ده؛رسول اللهﷺیواځې په هغوشیانوبانديې علم لري چې دالله تعالی له لوري هغه ته دوحې په زریعه نازل شویدي.علامه علي قاري صاحب په شفا دقاضي عیاض باندي شرحه کړیده هلته یې لیکلي دي چې رسول اللهﷺته علم غیب ندی ثابت.

علامه شامي هم داخبره لیکلي ده[1] همدارنګې نوروډیروعلماؤ هم لیکلي دي چې رسول اللهﷺته علم غیب ندی ثابت.

## دالله جل جلاله پرموجودیت دلائل:

الله تعالی واجب الوجود ذات دی اوپه خپل وجود اوشتون کې هیڅ چاته اړتیا نلري.اوڅوک چې دالله تعالی له وجود څخه منکرشي هغه کافردی؛اوددې لوی جرم په وجه به یې سزادتل لپاره په جهنم کې پاتې کیدل وي.ددې لپاره علماؤ په خپلو کتابونوکې عقلي اونقلي دلائل وړاندي کړیدي.[2]

یووخت کې امام ابوحنیفهرحمه اللهته ځینې دهریان راجمعه شول چې مونږتاوژنو ته ولې وایې چې الله تعالی واجب الوجودذات دی؛امام صاحب ورته وویل:چې یوه خبره درته کوم وروسته له هغه مې بیا مړ کړی؛هغوی ورته وویل:چې سمه ده؛امام صاحب ورته وویل:چې هغه تیره ورځ په یوه لاره باندي روان وم یوه کشتی مې ولیدله چې ددریاب څنډې ته ولاړه وه ترلږزند وروسته هغه په خپله روانه شوه یوځای کې غنم ایښي وه کیشتی په خپله دغنمو بوجیوته ورغله هغه غنم په خپله پکې بارشول کله چې کیشتی ډکه شوه بیرته یې په خپله حرکت وکړ؛ددریاب بلې څنډې ته لاړه هلته غنم

---

۱ وحاصله ان دعوی علم الغیب معارضة لنص القرآن فیکفر بها . ردالمحتار کتاب الجهاد مطب في دعوی علم الغیب.۶/۳۷۱ .طبع مکتبه فریدیه بشاور.

۲ والمحدث للعالم هو الله تعالی ای الذات واجب الوجود....انما من حیث کونه واجب الوجود....الذی یکون وجوده من ذاته اي ذاته علة تامة لوجوده....ولایحتاج الی شئ اصلاً اي في وجوده.(النبراس/۹۷-۹۶)

په خپله ورځخه خالي شول،کیښتی بیرته حرکت وکړاوپه خپل ځای ودریدله.دهریانوپوښتنه وکړه چې په کشتی کې هیڅوک هم نه وه؟

امام صاحب وویل: نه، دهریانو وویل:چې ځومره ساده خبره دې وکړه ته خو دمسلمانانو یولوی عالم یې بیا داسي ونه وایي چې خلک به درپوري وخاندي؛امام صاحب وویل:چې زه ساده یم؟هغوی وویل:چې هوځرنګه کیدلای شي چې کشتی دې په خپله حرکت وکړي؛امام صاحب ورته وویل:چې یوه کوچنی بیړی په خپله حرکت نشي کولای نودې دنیا نظام ځرنګه په خپله چلیږي؟دهریانو چې کله داواوریدل له خپلو خانونوسره یې فکر وکړوي ویل:چې ریښتیاهم داسي ده؛بیاهغوتولو اسلام راوړ.

اوعلامه ابن جوزي له امام احمد بن حنبل ﷺ ځخه په خپل کتاب تلبیس ابلیس کي نقل کړیدی چې خالق ته ضرورت شته ددې لپاره یې داسي دلیل وړاندي کړیدی چې که یوځوک دورخي په بیل کي په یوه لاره باندې تیر شي هلته په هغه لاره کي هیڅ شی هم نه وي مازدیګر چې بیرته په دی لاره باندې راشي په یوه دیوال یې نظرولږیږي په دې وخت کي له چاځخه پوښتنه وکړي چې زه خو سهار په دې لاره باندې تیرشوم دادیوال نه وه اوس دادیول له کومه شو؟هغه خواب ورکړي چې دلته موږ دیرخلک ناست وه چې یودم له ځمکي ځخه دیوال راپورته شو همداسي پورته کیده ان تردې چې پوره دیوال ورځخه جوړشو، دی به وایي دغه دی لیونی دیوال ځرنګه په خپله جوړشو؛دابل سړی به ورته ووایي چې یودیوال په خپله نشي جوړیدلای نو دالویه نړی ځرنګه په خپله باندې جوړه شویده؟ داهم ددې لپاره دلیل دی چې خالق ته اړتیا اوضرورت شته.

اوشیخ عبدالکریم زیدان په اصول الدعوة کتاب کي لیکلي دي چې یوه ورځ له یوه دهري سره په داسي ځای کي کینی چې هلته لیکني وي دهري ته ووایي چې تیره ورځ زه دلته ناست وم چې باد ولږید باداو هواله ځان سره تور اوسره رنګونه راوړل دلته دالیکني ورباندې وشوی؛دهري به ووایي چې ځومره ساده سړی یې باد کله لیکل کولای شي دلیکلولپاره خوخامخا یولیکوال ته اړتیا وي؛دی به بیرته ځواب ورکړي چې دادومره لږ لیکل په خپله نشي کیدلای نودادومره لویه دنیا ځرنګه په خپله باندې جوړه شویده ددنیا خلقیت هم خامخایونقاش اوصانع ته ضرورت لري.[1] چې داپه خپله دربوبیت لپاره لوی دلیل دی.بیاچې کله یوځوک په علم دطب اوساینس کي مطالعه کوي نورهم حیران شي چې دالله تعالی ځه عجیب نظام دی.

---

۱ سألت ابا سعید رضي الله عنه فقال: قال النبي صلى الله علیه وسلم لیس نفس مخلوقة الاالله خالقها .صحیح البخاري ۲/۱۱۰۱ - رقم الحدیث ۷۱۱۱

اوبل داهم دالله تعالی په موجودیت یودلیل دی چي کله تاسي له خان سره یودهري اوکمونست چي هغه دالله تعالی له وجوداوشتون څخه منکروي په موټرکي کینوی کله چي دنغلوڅهاراهي ته ورسیدی یودم دموټرشترینګ دګرنګ پرلورتاوکړی نوله دی دهري څخه به خامخا چیغه ووځي چي الله حال داچي هغه به الله تعالی نه مني.همدارنګي ورو کي ماشوم چي کله وغورځیږي له خان سره وايي چي الله ، د الله تعالی څوره عجیب نظام دی.اوبل داچي کله یوڅوک بی هوشه شي په خان نه پوهیږي بیاهم دالله نعری وهي ولي نه وايي چي پلاره یاموري یاملګري؟له دي څخه څرګندیږي چي دالله تعالی شتون حتمي دی.

همدارنګي کله چي ماشوم نوی پیداشي له خان سره د اغ لفظ وايي؛شیخ عبد العزیز الدباغ لیکلي دي چي اغ په سوریاني ژبه کي دلطیف اورحمان په معنی راخي؛نوموری بوداسي څوک دی چي الف اوبا یی هم چاڅخه نه دي لوستي خوپه قرانکریم اواحادیثو کي چي څومره ستونزمن خایونه دي هغه ده حل کریدي؛وراندي موذکرکړل چي کله ناکله الله تعالی خیني خلګوته لدني علم هم ورکوي.که دالله تعالی وجودنه وی نوماشومانو په کوم پوهنتون،مدرسه یاښوونځي کي لوستي دي چي دوی دي اغ لفظ وايي؟ فی الحال په نړی کي پنځه زره ژبي دي خودټولي نړی ماشومان اغ وايي.له دي څخه په داګه شوه چي الله تعالی واجب الوجود ذات دی اودټولي نړی مرجع الله تعالی دی﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ أَنتُمُ ٱلْفُقَرَآءُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱللَّهُ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ فاطر: ۱۵. اصول الدعوة کتاب کي یو حکایت لیکلي دی چي کله په نړی کي دویم نړیوال جنګ وه له نن څخه څه دپاسه سل کاله وړاندي چي په دي جنګ کي پنځوس میلیونه خلک مره شویدي چي له دي دلي څخه څلويښت میلیونه ملکیان اولس میلیونه عسکر وه. یوجرمنی پیلوټ وايي چي ددویم نړیوال جنګ پرمهال مي خپله هلوتکه دبمبارد لپاره هواته پورته کړله په امریکایي هدفونو مي بمبارد کاوه امریکایي هلوتکي په بحري بیړیو کي ولاړي وې پنځه خلي مي امریکایي هدفونه بمباردکړل خوپه شپږم خل مي چي کله بمبارد وکړ په دوربینونو کي راته څرګنده شوه چي امریکایي دافع هوا په ما پسی مرمی راولیږلي له خان سره مي وویل:چي اوس خومرګ یقیني دی هیڅوک مي هم زره ته نه راتلل خویوڅه مي په زره کي راتیرشول چي یاالله تعالی ته ماله دي مرمیو څخه وژغورې هغه وه چي الله تعالی ماته نجات راکړ خپله هلوتکه مي په هوایي ډګرکي بنکته کره چاته مي داکیسه بیان کره اوپوښتنه مي وکره چي الله تعالی څوک دی؟هغه راته وویل:چي الله تعالی دمسلمانانومعبوددی.داپیلوټ وايي چي مادخان سره فکروکړچي دسختي ویرې پر مهال ولي یوڅوک خپلي موریاپلار یاهم ملګري ته آوازنه کوي چي الله ته یي کوي؟ له دي څخه معلومه شوه چي الله تعالی زمونږخالق اومعبوددی په دي دول د پیلوټ مسلمان شو.

اویوبل کتاب دی الممتع الکبیردعلامه عصفور الشبلي چي له نن څخه زرکاله وړاندې تالیف شویدی هلته یې لیکلي دي چي لکه څرنګه چي په ذات دالله تعالی کي خلک حیران دي همدارنګي په نوم دالله تعالی کي هم خلک حیران دي.علامه موسی خان بازي په خپل کتاب فتح الله في خصائص اسم الله کي لیکلي دي چي دالله تعالی نوم په اعتباردحروف ابجد وسره(۶۶) دی؛هریونوم چي کله په حروف ابجدوباندي شمارکړی شي حاصل یې چي څومره راووځي هغه چي په (۲) کی ضرب شي له ضرب وروسته (۱) ورسره زیات شي ترهغه وروسته یې په (۳) کي ضرب کړي له حاصل وروسته یې چي په (۶) باندی تقسیم کړي آخرکي (۳) پاتي کیږي بیاچي دایه (۲۲) کي ضرب کړي بیرته یې حاصل (۶۶) راځي؛په دنیا کي چي څومره نومونه دي هغه ټول دعلم ریاضي له لحاظه بیرته دالله تعالی نوم ته راګرځي لکه څرنګه چي علم ریاضي کي ټول اعداد له یوه څخه جوړیږي همدارنګي دټولي دنیا انشعاب له الله تعالی څخه شویدی که الله تعالی نه وی نودادنیا به هم نه وه داټول ددي دلائل دي چي الله تعالی واجب الوجودذات دی.

## د اوداسه بیان

زمونږ داحنافو،شوافعو اوددنیا دجمهوروعلماؤ رایه داده چي د:بسم الله الرحمن الرحیم لوستل په سرداوداسه کي سنت دی.کذاقال ابن حجر العسقلاني في فتح الباري وتلخیص الحبیر.یو له هغو احادیثو څخه چي په دي اړوند یی روایت شویدی هغه دابي هریره رضي الله عنه حدیث دی ؛نوموړی وایي چي ماته رسول اللهﷺ وفرمایل:چي کله اودس کوی نوپه پیل کي به بسم الله الرحمن الرحیم لولي؛ابوهریره وایي چي به دي باندي ماته رسول اللهﷺ په دي باندي امر وکړ.ددي حدیث نسبت علماؤ معجم الکبیر دامام طبراني ته کړیدی؛اومجمع الزواندچي داهم په احادیثو کي مشهور کتاب دی هلته علامه هیثمي په دي اړوند خانګړی باب ذکرکړیدی «باب التسمیه في الوضوء»هلته یی هم داحدیث راوړی دی بیا یې لیکلي دي چي اسناد هذالحدیث اسناد حسن.[1]

علامه ابن حجرهم په خپل کتاب تلخیص الحبیر کي لیکلي دي چي کوم حدیث داوداسه په پیل کي دبسم الله ویلو په اړوند راغلی دی هغه صحیح حدیث دی. په مونږ احنافو کي لوی عالم علامه بدرالین عیني په خپل کتاب بنایه کي چي دایه هدایي باندي شرحه ده لیکلي دي چي داکوم حدیث په معجم الکبیر کي امام طبراني روایت کړیدی ددي حدیث سند حسن دی.اوعلامه ظفراحمد عثماني په

[1] عن ابي هريره رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يا اباهريره اذا توضأ فقل بسم الله،والحمد لله فان حفضتک لاتبرح تکتب لک الحسنات حتى تحدث من ذالک الوضوء.رواه طبراني في الصغير واسناده حسن- مجمع الزوائد- ۱/۲۲۰ – رقم الحديث ۱۱۱۲

اعلاءالسنن کې ليکلي دي چې داحديث بلکل ثابت دی.اوپه دې اروند بل حديث شريف په ترمذي کې راغلی چې نبي کريمﷺفرمايلي دي لاوضوء لمن لم يذکر اسم الله عليه.[1] يعنې نشته اودس دهغه چالپاره چې بسم الله الخ پکې ونه وايي.داحديث امام احمدبن حنبل په خپل مسند کې روايت کړيدی اوعلامه هيثمي مجمع الزوائد کې هم نقل کړيدي؛دې ټولوعلماؤ ليکلي دي چې رجال هذالحديث رجال ثقات.نودبسم الله الخ لوستل په پيل داوداسه کې له دې دارو حديثونوڅخه ثابتيږي.دلاښه تحقيق لپاره الفتوحات الربانيه في الاذکار النوويه دعلامه ابن علان الشافعي البکري ته مراجعه وکړی.

## استعانت في الوضوء(له بل چاڅخه مددغوښتل):

استعانت في الوضوء دې ته ويل کيږي چې يو څوک په اوداسه کې له بل چاڅخه مرسته اوکومک غواړي دبيلګې په توګه يوڅوک بل چاته اوبه وراچوي آيا داپه شرعه کې جوازلري؟پدې اروندپه مسلم شريف کې يوحديث راغلی حضرت مغيرة بن شعبه رضی الله عنه وايي چې زه يوه شپه له رسول اللهﷺ سره وم نبي کريمﷺ دخپل حاجت دپوره کولو لپاره صحراګښت ته لاړ کله چې بيرته راغی په اوداسه يې پيل وکړاوما اوبه وراچولې تردې چې خپل مخ مبارک يې ومينځه چېنه يې اغوستې وه له هغې څخه يې خپل لاسونه راوويستل نوموړی وايي چې ما اراده وکړله چې درسول اللهﷺ ماسی وربانددې وباسم اوپه پښو يې اوبه وراچوم رسول اللهﷺ راته وفرمايل:دعهما يعنې پريږده په داسې حالت کې مې اغوستي چې زه په اوداسه باندې وم تراوسه يې وخت ندی پوره شوی.[2]

له دې حديث شريف څخه بعضې علماء استدلال کوي چې استعانت فی الاضوء جوازلري.داحديث امام نسايي هم په خپل کتاب سنن الکبری کې راوړيدی.دیادوني وړده چې دنسايي په نوم دوه کتابونه دي يوسنن الصغری دامام نسايي ده کوم چې اوس مهال په صحاح سته و کې لوستل کيږي اوبل سنن الکبری دامام نسايي ده. که غواړئ چې داستعانت في الوضوء په اروندپه مکمل تحقيق باندې واقف شی زمونږ داحنافو دمذهب دمحققينو کتابونوته مراجعه وکړی چې يوله هغو څخه اعلاء السنن دی هلته علامه ظفراحمد صاحب ليکلي دي چې استعانت في الوضوء دوه صورته لري يوداچې يواځې اوبه وراچوي.اوبل داچې اوبه هم وراچوي اواندامونه هم ورباندې موښي.لومړی صورت چې يواځې اوبه وراچوي اونور اودس

---

[1] جامع التر مذي ابواب الطهارة باب في تسمية عند الوضوء۱۲/۱-

[2] - قال اخبرني عروة بن المغيرة عن ابيه قال:كنت مع النبي صلى الله عليه وسلم ذات ليلة في مسيرة فقال لي امعک ماء قلت نعم فنزل عن راحلته فمشى حق توارى في سواد الليل ثم جاء فافرغت عليه من الاداواة فغسل وجهه وعليه جبة من الصوف فلم يستطع ان يخرج ذر اعيه منها حتى اخرجها من اسفل الجبة فغسل ذراعيه ومسح رأسه ثم اهويت لا نزع خفيه فقال:دعهما فاني اد خلتها طا هرتين .صحيح مسلم- ۱/۱۳۴

خپله اودس کوونکی کوي ،اودس کونکي استعانت کوونکي ته ویلي وي اوکه یي نه وي ویلي په دواړوصورتونوکي استعانت جائزدی.ډیرومحققینو احنافو دامسئله لیکلي ده منهم:علامه شامي في ردالمحتار[۱] وعبدالغني النابلسي في النهاية المراد،وامام حلبي في شرح منية المصلي المسمي بالحلبي الكبير،وعَلَم ابن علا في فتاوی تاتارخانيه،وعلامه زکریا کاندهلوي في الفيض السماوي على النسايي.

اودویم صورت داچي اودس کوونکي ته اوبه هم وراچوي اواندامونه یي هم موښي که اودس کونکی معذوروي بیا داصورت هم جائز دی اوکه عذرنه وي بیاناجائز دی.داخبره هم په دې ذکر شویو کتابونوکي لیکلي ده الذي قد سميت لكم اساميها فلترجعوا الى هذالكتب في هذالمسئله.

## دګیرې خلالول:

په دې اړوند علامه عبدالله ابن احمدبن حنبل لیکلي دي چي زماپلار به ویل:چي دګیرې دخلالولوپه اړه صحيح احاديث نشته آیادنوموړي داخبره صحيح ده اوکنه؟زمونږ دفقهي حنفي په ټولوکتابونوکي لیکلي دي چي که دچاګیره وي هغه به په اوداسه کي دخپلي ګیرې خلال کوي دامسئله بلکل ثابته ده.خپله امام احمد بن حنبل په خپل مسند کي یوحديث راوړی چي رسول الله ﷺبه دخپلي ګیرې مبارکی خلال کاوه.بیاعلامه هیثمي لیکلی دي چي رجال هذالحديث رجال ثقات.اوصحیح ابن خزیمه کي هم داحدیث شته چي رسول اللهﷺ به خپله ګیره مبارکه خلالوله نورودیرو علماؤ هم په خپلو کتابونوکي احاديث راوړیدی منهم علامه ظفراحمد عثماني فی اعلاء السنن وعلامه بنوري في معارف السنن [۲] وايضا علامه ابن حجر في تلخيص الحبير.

همدارازامام ترمذي هم په خپل کتاب جامع الترمذي کي ددې لپاره مستقل باب ذکرکړیدی«باب التخليل اللحية» [۳]له دې څخه څرګنده شوه چي دګیرې خلالول ناروانه بلکه سنت دی کومه خبره چي امام عبدالله ابن احمد کړیده هغه داعتبار وړنده.

---

۱-ان الاستعانة في الوضوء ان كانت بصب الماءاو استقائه او احضاره فلا كراهة بها اصلا ولو بطلبه وان كانت بالغسل والمسح فيكره. ردالمحتار- ۱/۲۷۱

۲-الاحاديث فی تخليلها:اخرج الحافظ الزيلعي الاحاديث فيه من اربعة عشر صحابيا مع الكلام عليها وقال:كتبها مد خولة وامثلها حديث عثمان رواه الترمذي،وبن ماجه،وابن حبان في الصحيحه،والحاكم في المستدرک الخ. راجع نصب الراية (۲۳-۱) معارف السنن ۱/۱۷۳

۳- عن عثمان بن عفان رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم كان يخلل لحيته -جامع التر مذي ۱/۱۴-

# مسحه درقبي

زمونږ دفقهي حنفي په کتابونو کې مسحه درقبې(غاړې)ته مستحب ویل شویدي خوپه مونږ احنافو باندې ځینې علماء خصوصاً حنابله اوغیرمقلدین اعتراضونه کوي اووایي چې داکومه مسحه درقبې تاسې کوئ ددې لپاره په اسلام کې څه اصل نشته آیاددوی داخبره صحیح ده؟ په دې اړوند علماؤدیرعلمي تحقیقات کړیدي منهم علامه عبدالحی الکنوي نوموړي په دې اړوندمستقل کتاب لیکلئ دئ چې نوم یې دی تحفة الطلبة في مسح علی الرقبة هلته یې لیکلي دي چې مونږ دامنوچې په دې اړوند روایتونه ضعیف دی خوضعیف احادیث هم په فضائلو دعمالو کې استعمالیدلای شي.نوموړي لیکلي دي چې مونږهم مسحې درقبې ته مستحب وایو دوجوب مرتبه خو مونږهم نه ورکوو.علامه سخاوي هم په خپل کتاب القول البدیع في الصلوة علی النبي الشفیع کې لیکلي چې ضعیف حدیث باندې هم په فضائلو داعمالو کې عمل کیدلای شي.خوځینې علماء دې حدیثونوته موضوعي وایي کوم چې په دې اړوند راغلي دي خوموضوعیت یې ندی صحیح هسې چا له تعصب څخه کاراخیستی دی.

امام شوکاني غیرمقلد عالم دی هغه ددې مسئلې لپاره په خپل کتاب نیل الاوطارکې ددی مسئلې لپاره خانګړی باب راوړیدی.[1] اوعلامه ابن حجرهم په تلخیص الحبیر کې ددې لپاره خانګړی باب ایښی دی کوم حدیثونه یې چې هلته راوړیدي هغه ټول ضعیف دي خودضعیفواحادیثو په اره دټولې دنیا دعلماؤ رایه داده چې ضعیف حدیث هم په فضائلو داعمالو کې استعمالیدلای شي نومسحه درقبې بلکل جواز لري خومسحه دحلقوم بیا دټولو علماؤ په اتفاق سره بدعت ده.

# اذکارعلی اعضاءالوضوء

ځینې خلک چې کله اودس کوي دهراندام مینځلوپر مهال بیلا بیلې دعا ګانې وایي آیا ددې لپاره په دین کې څه ثبوت شته اوکنه؟

یو خو داشهد الااله الاالله الخ.... لوستل دي چې دا په احادیثوکې ثبوت لري.[2] له دې پرته دهر اندام لپاره خانګړې دعا یا ذکرچه فقه حنفی په کتابونو کی شته لکه نورالایضاح او شرحه یې امدادالفتاح کې . همدا اذکارپه فقه د شوافعو کې هم شته. خوبیرته شافعي مذهبه او نورو علماؤپه دې باندې

---

[1] - عن طلحة بن مصرف عن ابيه عن جده رأى رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح رأسه حتي بلغ القذال ومايليه من مقدم العنق. رواه احمد....فيه ليس بن ابي سليم وهو ضعيف. نيل الاوطار باب مسح العنق۲۰٦/۱-

[2] - عن انس بن مالک رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم من توضأ فقال اشهد الااله الاالله وحده لاشريک له واشهدان محمدا عبده ورسوله ثلاث مرات فتحت له ثمانية ابواب الجنة .مصنف ابن ابي شيبه۱۲/۱-

ردونه کړی، منهم امام نووی په الازکار او شرح المهذب اوعلامه ابن حجر هیثمی فی تحفةالمحتاج اوعلامه ابن قیم په منارالمنیف اوزادالمعاد .په دې تولو کتابونوکې لیکلي دي چې دادول اذکار په اسلام کې څه اصل نه لري.خودي عاجزبنده په کنزالعمال کې یوحدیث وموندچې ددې حدیث نسبت یې کتاب دالمستغفري ته کړیدی چې بوموری هم په علم احادیثو کې لوی عالم تیرشویدی هغه حدیث شریف په دې دول دی چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي چې کله تاسي اودس کوی په هره عضوه باندې اشهدالااله الاالله الخ وایی بیا یې لیکلي دي چې اسناده حسن غریب.[1] له دې څخه پرته نور اذکار په احادیثو کې ندی ثابت؛ سره له دې چې زمونږ دفقهي حنفي په ځینوکتابونوکې شته خواحادیثو کې اصل نه لري.خو علامه ظفراحمد صاحب اعلاءالسنن کې لیکلي دي چې که څوک یې وایي لابأس به ده ځکه چې عبدالله ابن مسعودرضي الله عنه فرمایي چې (ومارأه المسلمون حسناً فهوعندالله حسنا).[2] خولازم به یې نه ګڼي ځکه چې په احا دیثو کې ثبوت نه لري.

## اوداسه ماتونکي:

یو دول هغه شیان دي چې په څغوسره دعلماؤ په اتفاق باندې اودس ماتیږي دبیلګې په دول غانطي،بولي،وینه وتل، نوم المستغرق اوداسې نور.اوبل دول هغه شیان دي چې هغه اختلافي دي دبیلګې په دول خپل ذکرته لاس وروړل،وضوء من ماسة الناراوداسې نور.زمونږداحنافو په مذهب خپل ذکرته په لاس وروړلواودس نه ماتیږي.اوهغه چې په اورباندې پخ شوي وي دهغي په خوړلوهم زمونږ احنافو ،شافعیانواوحنابله وپه مذهب اودس نه ماتیږي.خومالکي مذهبه علماء وایي چې په دې سره اودس ماتیږي.[3]

## داعضاء الوضوپه څادریاهم دسمال باندې دوچولوحکم:

کله چې یوڅوک اودس وکړي نوبیایي چې خپل اندامونه په څادر یاهم دسمال باندې وچ کړي ځکه چې اعضاء الوضومسحه کول په منادیلو باندې ددصحابه ومعمول وه.له علامه عیني څخه علماؤ نقل کړیدی چې هغه وایي چې صحابه وبه خپل مخونه په څادرونو یاهم خپلو لمنو باندې وچول. په یوه

---

[1] -مامن عبد یقول حین یتوضأ بسم الله ثم یقول لکل عضو:اشهد ان لااله الاالله وحده لاشریک له واشهدان محمدا عبده ورسوله ثم یقول حین یفرغ:اللهم اجعلني من التوابین واجعلني من المتطهرین الافتحت له ثمانیة ابواب الجنة یدخل من ایها شاء- کنزالعمال۹/۲۹۹- رقم الحدیث ۲۶۰۸۹

[2] -رواه حاکم في المستدرک علی الصحیحین۳/۷۸- وایضارواه احمد في مسنده۱/۲۷۹-

[3] -عن جابررضي الله عنه قال:خرج رسول الله صلی الله علیه وسلم واناامعه فدخل علی امرأة من الانصار [illegible] له شاة فاکل واتته بقناع من رطب فاکل منه ثم توضأ للظهر وصلی ثم انصرف فاتته بعلاله من علالة الشاة فاکل ثم العصر ولم یتوضأ جامع الترمذي۱/۱۸-

حديث كي له رسول اللهﷺ څخه هم ددي عمل ثبوت راغلی دی.[۱] خو بل حديث شريف كي راځي چي رسول اللهﷺ غسل يا هم اودس وكړ بيا څادر وروړل شو خو نبي كريم ﷺ خپل اعضاء ورباندي وچ نه كړل.[۲] په مونږه احنافو كي ځيني علمار داعضاء الوضو وچول جائز ګڼي. اوځيني نور علماوددي په نه جواز باندي فتوی كوي.

خوصحيح خبره داده چي نه افراط وي پكي اونه تفريط هغه داچي اعضاء الوضوء وچول په څادر يا دسمال باندي نفس جوازلري.په مونږه احنافو كي علامه عبدالحی الكنوي په دي اړوند مستقل كتاب جوړ كړيدی چي نوم يي دی الكلام الجليل في مايتعلق بالمنديل هلته يي په دي مسئله باندي مكمل تحقيق كړيدی بيا يي ليكلي دی چي وچول يي نفس جواز لري خوغوره داده چي ډير تنشيف «وچ والی» ونه شي.نورو ډيرو علماو هم دامسئله ليكلي منهم علامه عبدالحق في اللمعات،وعلي القاري في المرقاة،وعلامه ابوالاخلاص في امدادالفتاح،وعلامه نابلوسي في نهاية المراد وايضاً علامه شامي في ردالمحتار.[۳]

## له اوداسه څخه دپاتي شويو اوبوڅښنل:

كله چي يوڅوک اودس وكړي له هغه چي كومي زياتي اوبه په كوزه كي پاتي شي ځيني علماء وايي چي ددي اوبو په ولاړه باندي څښنل مستحب دي.اوبعضي علماء وايي چي ددي اوبو په ولاړه باندي څښنل نفس جواز لري.په مونږ احنافو كي علامه ظفراحمد عثماني په خپل كتاب اعلاء السنن كي ددي لپاره خانګړی باب ذكركړيدی باب استحباب فضل الوضوء قياماً نوموړي په دي اړوند ښه مكمل تحقيق كړيدی بيا يي ليكلي دي چي په ولاړه څښنل يي مستحب دی.اوعلامه زكريا كاندهلوي په الفيض السماوي على النسايي كتاب كي ليكلي دي چي پاخوددي اوبو په ولاړه باندي مستحب دي اوياهم نفس جوازلري.خواكثره محققين احناف وايي چي له اوداسه څخه پاتي شوی اوبه په ولاړه باندي څښنل مستحب دي. والله اعلم

---

[۱] -عن عائشة رضي الله عنها قالت لرسول الله صلى الله عليه وسلم خرقة ينشف بها بعدالوضوء. جامع الترمذي۱/۱۸-

[۲] -عن ميمونه رضي الله عنها ...انها جاءته بخرقة بعد الغسل فرد ها وجعل ينفض الماء بيده- صحيح مسلم -رقم الحديث ۳۳۷ وايضا رواه النسائي في كتاب الغسل باب الاستتارعندالاغتسال۱/۲۰۰-

[۳] -ولابأس به للمتوضي والمغتسل...الاانه ينبغي ان لايبالغ ولا يستقصي فيبقي اثرالوضوء على اعضائه-ردالمحتار ۱/۲۷۹- طبع مكتبه فريديه بشاور

## داوداسه په واسطه الله ﷻ له انسان څخه ګناهونه تویوي:

په یوه حدیث شریف کي راځي چي کله څوک په اوداسه کي خپل مخ مینځي هغه ګناهونه یي الله تعالی له اوبو سره تویوي کوم چي ده دمخ اوستر ګو په واسطه کړي وي. همدارنګه کله چي یوڅوک خپل لاسونه مینځي هغه ګناهونه یي الله تعالی له اوبو سره تویوي کوم چي ده دلاسونوپه واسطه کړي وي. اوکله چي اودس کوونکی خپلي پښي مینځي هغه ګنا هونه یي الله تعالی له اوبوسره ختموي کوم چي ده دخپلوپښو په واسطه کړي وي. [1]

میزان الکبري په علم فقهه کي دعلامه عبدالوهاب الشعراني کتاب دی نوموړی په دونیا کي له لویو اولیاءالله و څخه شمیرل کیږي دی په دي خپل کتاب کي څلورواړه مذاهب په علم تصوف اوعلم کشف سره تلی، نوموړي لیکلي دي چي یووخت کي الله تعالی په ماباندي داسي حالت راوست چي کله به مي دچامخ ته کتل دهغه دګناه اظهار به ماته دهغه له مخ څخه کیده بیا مي الله تعالی ته دوعاوکړه چي یا الله تعالی مادچاپه عیبونو باندي مه خبروي؛نوموړی وایي چي بیا زما دادوعاقبوله شوه اوهغه حالت مي بیرته منتفي شو.زمونږ په فقهه حنفي کي یوه مسئله ده چي مستعملي اوبه طاهري(پاکي)دي خومطهري(پاکوونکي)نه دي.نوموړي په دي سئله کي هم خپله دکشف تله راخیستي ده تول مذا هب یي پکي تللي دي؛ بیا یي لیکلي دي چي په دي مسئله کي دعلم کشف له لحاظه دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب حق دی .

نوموړي لیکلي دي چي په دي اړوند زما فتوی هم داده چي مستعملي اوبه طاهري دي خومطهري ندي.نوموړي لیکلي دي چي امام صاحب اودده صاحبین صاحب الکشف دي څکه چي کله څوک اودس کوي صاحب الکشف چي کله هغه ته اوګوري کوم مکروبونه چي دهغه له اندامونو څخه تویږي هغه تول ورته معلومیږي.

بیا یي له امام صاحب څخه نقل کړیدی چي یوه ورځ امام ابوحنیفه رحمه الله په کوفه کي یوه جومات ته لاړ هلته یوه سړي اودس کاوه کومي اوبه چي دهغه له اندامونوڅخه تویدلي په هغو کي دزنا مکروبونه وه.په ربښتیا هم داسړی زاني وه لکه اوس چي دمایکرسکوف شیشي ته دچاوینه کیښودل شي په هغه کي چي کوم مرض وي دهغه مرض مکروبونه پکي څرګندیږي؛دبیلګي په دول که دچا ژیړی مرض

---

[1] -عن ابي هريره رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذاتوضأ العبدالمسلم اوالمؤمن فغسل وجهه خرجت من وجهه كل خطيئة نظرالیها بعينيه مع الماء او مع اخر قطرة الماء؛واذاغسل يديه خرجت من يديه كل خطيئة بطشتها يداه مع الماء او مع اخر قطرالماء حتى يخرج نقيا من الذنوب. جامع الترمذي ۱/۲-

## داوداسه په واسطه الله جل جلاله له انسان څخه ګناهونه تویوي:

په یوه حدیث شریف کي راځي چي کله څوک په اوداسه کي خپل مخ مینځي هغه ګناهونه يي الله تعالی له اوبو سره تویوي کوم چي ده دمخ اوستر ګو په واسطه کړي وي. همدارنګه کله چي یوڅوک خپل لاسونه مینځي هغه ګناهونه يي الله تعالی له اوبو سره تویوي کوم چي ده دلاسونوپه واسطه کړي وي.اوکله چي اودس کوونکی خپلي پښي مینځي هغه ګنا هونه يي الله تعالی له اوبوسره ختموي کوم چي ده دخپلوپښو په واسطه کړي وي. [۱]

میزان الکبري په علم فقهه کي دعلامه عبدالوهاب الشعراني کتاب دی تومورې په دونیا کي له لویو اولیاءالله و څخه شمیرل کیږي دی په دې کتاب کي ځلورواړه مذاهب په علم تصوف اوعلم کشف سره تلی، نوموړي لیکلي دي چي یووخت کي الله تعالی په مابانديِ داسي حالت راوست چي کله به مي دچامخ ته کتل دهغه دګناه اظهار به ماته دهغه له مخ څخه ګیده بیا مي الله تعالی ته دوعاوکړه چي یا الله تعالی مادچاپه عیبونو بانديِ مه خبروې؛نوموړی وایي چي بیا زما دادوعاقبوله شوه اوهغه حالت مي بیرته منتفي شو.زمونږ په فقهه حنفي کي یوه مسئله ده چي مستعملي اوبه طاهرې(پاکي)دي خومطهرې(پاکوونکي)نه دي.نوموړي په دې سئله کي هم خپله دکشف تله راخیستي ده تول مذا هب يي پکي تللي دي؛ بیا يي لیکلي دي چي په دې مسئله کي دعلم کشف له لحاظه دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب حق دی .

نوموړي لیکلي دي چي په دې اروند زما فتوی هم داده چي مستعملي اوبه طاهرې دي خومطهرې ندی.نوموړي لیکلي دي چي امام صاحب اودده صاحبین صاحب الکشف دي ځکه چي کله څوک اودس کوي صاحب الکشف چي کله هغه ته اوګوري کوم مکروبونه چي دهغه له اندامونو څخه تویيږي هغه تول ورته معلومیږي.

بیا يي له امام صاحب څخه نقل کړيدی چي یوه ورځ امام ابوحنیفه رحمه الله په کوفه کي یوه جومات ته لاړ هلته یوه سړي اودس کاوه کومي اوبه چي دهغه له اندامونوڅخه تویدلي په هغو کي دزنا مکروبونه وه.په رښتیا هم داسړی زاني وه لکه اوس چي دمایکرسکوف شیشي ته دچاوینه کیښودل شي په هغه کي چي کوم مرض وي دهغه مرض مکروبونه پکي ځرګندیږي؛دبیلګي په دول که دچا ژیړی مرض

---

[۱]-عن ابي هريره رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذاتوضأ العبدالمسلم اوالمؤمن فغسل وجهه خرجت من وجهه كل خطيئة نظراليها بعينيه مع الماء او مع اخر قطرة الماء؛واذاغسل يديه خرجت من يديه كل خطيئة بطشها يداه مع الماء او مع اخر قطرالماءحتى يخرج نقيا من الذنوب. جامع الترمذي۱/۴-

وي دهغه یو دول مکروبونه وي،که دچاشکررض وي دهغه بل دول مکروبونه وي لنده داچي دهر رض خپل خانګړي مکروبونه وي.اوکله چي یوڅوک دمایکرسکوف په شیشه کي مکروبونه ګوري هریو مکروب دیوه ژوندي حیوان په شکل.وي سم حرکت کوي څومره دالله تعالی عجیب نظام دی.نوامام صاحب چي کله دې سړي ته وکتل ورته ویې ویل:چي بیا زنا ه کوه هغه سړي وویل:چي ته څه خبر یې چي زه زناکوم؟ امام صاحب ورته وویل:تا چي کله اودس کاوه کومي اوبه چي ستا له اندامونوڅخه تویدلي په هغو اوبوکي ماته داسي مکروبومعلوم شول چي په هغوکي دزنا علامي وې؛ هغه سړی حیران شو الله تعالی ته ی توبه وویستله اوله امام صاحب سره یې بیعت وکړ.بل اودس کوونکی یې ولیده چي هغه خپل والدین ازار کړي وه؛امامصاحب ورته ووبل چي تردی وروسته خپل والدین مه ازاروه هغه سړي ورته وویل چي ته چاخبر کړې چي زه خپل والدین ازاروم؟امام صاحب ورته وویل:تاچي کله اودس کاوه ستا له اندامونوڅخه چي کومي اوبه تویدلي په هغو اوبو کي ما دعقوق الوالدین مکروبونه ولیدل.هغه هم توبه وویستله اوله امام صاحب سره یې ددي ګناه په نه کولوبیعت وکړ.

همدارنګه امام صاحب بل اودس کوونکي ته وویل چي نوره غلامه کوه هغه ورته وویل چي تاته چاوویل چي زه غلاکوم؟امام صاحب ورته وویل:تاچي کله اودس کاوه کومي اوبه چي ستا له اندامونو څخه تویدلي په هغواوبو کي ما دغلا مکروبونه او وایرڅونه ولیدل؛بیا هغه هم له خپلې ګنا څخه تو به وویستله.په دې سره خویودده حدیث شریف مصداق راځي چي دانسان ګناهونه له اوداسه سره توییږي اوبل داچي مایکرسکوف هم مونږ مسلمانانو اختراع کړیدی.

علامه شعراني په دې خپل کتاب کي دخپل استاذ شیخ علي الخواص حکایت نقل کړیدی نوموړی وایي چي یو وخت کي زه له هغه سره په یوه سفر باندي مصر ته لاړم هلته زما استاذ یوه ځای ته داوداسه لپاره ننوت چي ګورم استاذ مي بیرته راووت اورنګ یې هم تغیر شوی وه ماورته وویل: چي استاذه څه چل شویدی؟هغه راته وویل: چي هلته داستنجا په ځای کي دزنا مکروبونه وه.علامه شعراني چي زما داستاذ له داخلیدو مخکي له دې ځای څخه یوسړی راووت چي هلته یې غسل کړی وه زه هغه پسي ورغلم ورته ومي ویل چي له دې وروسته زنامه کوه هغه راته وویل چي ته څه خبر یې چي زه زناکوم؟ماورته وویل:په کوم ځای کي چي تا غسل کړی دی هلته زما استاذ اودس کاوه تاهلته دزنا کروبونه پرېښي وه.نوموړي لیکلي دي چي دا سړی بیاراغی زما له استاذ سره یې بیعت وکړ.علامه شعراني وایي چي سره له دې چي زما استاذشافعي مذهبی دی خودحوض په اوبویې اودس نه کاوه ځکه چي مکروبونه یې په خپلو سترګو لیدل په دې مسئله کي چي مستعملي اوبه

طاهري دي خومطهري ندی دامام صاحب په مسلک وه.نوموړی لیکلي دي چې زه هم په دې مسئله کې دامام صاحب مقلد یم.

اوس چې په معاصره نړۍ کې اطباء دمایکرسکوف په واسطه دانسان په وجودکې دهرډول مرض ځرګندوالی کوي ددی اختراع هم په اصل کې مونږ مسلمانانوکړیده؛ځکه چې په سلګونو کاله وړاندې زمونږ دفقهاوپه سترګوکې الله تعالی دمایکرسکوف شیشې اینبې وې چې دهغو په واسطه یې په اوبوکې دباطني امراضومعلومات کاوه نویومعاصرواطباوته مونږ چلینج ورکووچې دوی دې داوداسه په اوبوکې دادول مکروبونه معلوم کړي.

## دیوه بزرګ حکایت:

په یوه زمانه کې یو بزرګ وه په غرونو کې به اوسیده اوداالله تعالی عبادت به یې کاوه.دابزرګ یوه ورځ له غره څخه راکوز شواویوه جومات ته لاړ هلته دماسپښین دلمانځه جمعه ولاړه وه ده هم په امام پسې اقتدا وکړه اوپه لمانځه ودریدکله چې لمونځ خلاص شو او ټول خلک له جومات څخه ووتل دې بزرګ دجومات امام ته وویل:چې یوه خبره درته ګوم خفه کیږې خوبه نه؟امام ورته وویل چې نه؛بزرګ ورته وویل:چې کله دې خلکوته دجمعې لمونځ ورکاوه همدلته په جومات کې له خلکوسره اوسیره امام ورته وویل چې داڅه پیرياتې خبرې کوې زه خوهم څه دباندې نه وم وتلی.بزرګ ورته وویل چې په لومړیودو رکعتونوکې دریم رکعت دې چې کله پیل کړ له دې ځای څخه ملتان ته لاړې هلته دې له فلانکي دوکاندار څخه فلانکی شی واخیستل بیا بیرته مظفرابادته راغلې هغه دې په خبل کور کې ورکړل ترڅو چې بیرته راتلې لمونځ هم ختم شواوسلام دې وګرځاوه.اصل کې خو دا امام په خیال اوفکر کې تللی وه اودابزرګ صاحب الکشف وه ټول معلومات ورته کیده امام حیران شوچې داڅه عجیب سړی دی.اخبارلاخیار کتاب کې علامه عبدالحق صاحب داحکایت لیکلی دی.

علامه ابن تیمیه﷫ لیکلي دي چې حضرت عمررضي الله عنه به ویل چې زه کله لمونځ کوم نوبه لمانځه کې جهادي لښکرې تنظیموم دادول عمل که غیراختیاري وي څه پروانه کوي؛خوښایي چې په لمانځه کې دانسان ټول خیال اوفکر دالله تعالی په لوري وي اوپه ډیرې عاجزی سره عبادت وکړي ځکه چې یوه حدیث شریف کې راځي چې ان تعبدالله کانک تراک فان لم تکن تراه فانک یراک.[1]

---

[1]-عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه قال:بینما نحن عند رسول الله صلی الله علیه وسلم ....قال فاخبر ني عن الاحسان قال:ان تعبدالله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک. صحیح مسلم کتاب الایمان ۱/۲۷-

## دوینبتانو بیخونو ته اوبه رسول:

کله چې یوڅوک غسل کوی نودخپلو وینتانو بیخونو ته به خامخا اوبه رسوي خوکه مسترسل وینتان لانده هم نشي څه پر وانه کوي.

## دبیت الخلاءبیان

بیت الخلاء په هره اصطلاح کې یو خانګړی نوم لري.علامه بنوری په خپل کتاب معارف السنن شرح جامع الترمذي کی

دبیت الخلانومونه ذکرکریدی.[۱] دمصر خلک بیت الادب وره وایي،زمونږ په وطن کې کینه به ارام الخلاکې دقضای حاجت لپاره کیني نو دقبلې لوري ته به نه مخ وراړوي اونه څت (شا) هغه که په کور کې وي اوکه په دشته اوصحرا کې وي،هغه که دغائطولپارره وي اوکه دبولو کونو لپاره،دتولو حکم یودی.همدازمونږه احنافومذهب دی کنی تول په دي مسئله کې اته مذاهب دی چې یوپکې دظاهریانو مذهب دی هغوی وایي چې هرلوري ته کیناستل جوازلري خواکثره جمهورر په دښتو اوصحراګانو کې فرق کوي هغوی وایي چې په صحراکې به خپله شا اومخ دواړه دقبلې په لوري نه کوي اوونبنیانو کی لاباس به ده.خوزمونږ احنافو رایه ددیروصحابه واوتابعینورایه هم ده لکه حضرت ابی ایوب انصاري رضي الله عنه اوداسي نور. اوبل داچې دقضای حاجت پرمهال دلمر اوسپوږمی په لوري کیناستل هم نارروادی. اوخیني خلک خاک انداز ورته وایي په دي روند دهرچا خپله اصطلاح ده.کله چې یو څوک په بیت

## دبیت الخلاء دوعا:

کله چې یوڅوک بیت الخلا ته داخلیږي وراندې تردې به دادوعا لولي چې:اللهم اني اعوذ بک من الخبث والخبائث.[۲] ژباړه:یا الله زه پناه غواړم په تا باندې له نرانو اوښخوشیطانانوڅخه.بیابه لومړی خپله چپه پښه بیت الخلاته داخلوي؛بیاچې کله بیرته راوخي لومړی به خپله ښی پښه راباسي.

---

[۱] -وهوالكنيف،والحش،والمرفق،والمرحاض،وبالقصرالحشيش الرطب.....ويسمى بيت الخلاء وفي الحجاز اليوم بيت الماء وبيت الطهارة وفي المصر بيت الادب. معارف السنن- ۱/۷۶

[۲] -عن انس بن ملک رضي الله عنه قال:كان النبي صلى الله عليه وسلم اذادخل الخلاء قال اعوذ بالله من الخبث والخبائث. مصنف ابن ابي شية - ۱/۱۱

## آیاپه ولاړه متیازې کول جوازلري؟

په دې اړوند سعیدبن جبیرالصحابي رضي الله عنه،سعیدبن المسیب التابعي رح او امام احمد بن حنبل رح وایي چې په ولاړه متیازې کول جوازلري.امام مالک رح وایي چې که داسې ځای وي چې جامونه نه ورباديږي بياجواز لري. خو زمونږ احنافو مذهب په دې اړوند داسې دي چې که عذر وي بيا جواز لري اوکه عذرنه وي بيا په ولاړه متيازې کول مکروه تنزيهي دي.په مونږ احنافوکې دامسله علامه بنوري معارف السنن کي ليکلي،علامه زکرياکاندهلوي الفيض السماوي کې ليکلې او علامه رشيداحمدالګنګوهي هم ليکلي ده؛خو علامه بنوري په معارف السنن کې ليکلي دي چې ښايي چې په اوسني دور کې په ولاړه متيازې کول مکروه تحريمي وګرځول شي ځکه چې په اوسني عصرکي په ولاړه متيازې کول دکفارو عادت جوړشويدی.[1]

## دکاغذ تشناب استعمال:

آيادکاغذتشناب استعمال جوازلري اوکنه؟په دې اړونديه مونږاحنافوکی علامه وهبت الزحيلي په خپل کتاب الفقه الاسلامي وادلته کې ليکلي دي چې په کاغذ تشناب استنجاکول څه باک نه لري ځکه داهغه کاغذ ندی چې په هغه ليکنه کيږي.

**دمسواک بيان:** آيا دمسواک وهل سنت دي اوکه واجب؟په دې اړوند ځينوعلماو ليکلي دي چې دمسواک وهل واجب دي خوصحيح خبره داده چې مسواک وهل سنت مؤکد دی.[2]

چې همدازمونږه احنافو اواکثره علماو مذهب هم دی.اوبل اختلاف په دې اړوند دادی چې مسواک داوداسه سنت ده که دلمانځه؟ شافعيان اوظاهريان وايي چې مسواک لمانځه سنت ده؛ځکه چې حديث شريف کې راځي عن ابي هريره رضي الله عنه قال:قال رسول اللهﷺ لولا اشق علی امتي لامرتهم بسواک عند کل صلوة.[3] دوی وايي چې دې حديث شريف کې لفظ د«صلوة» راغلی دی نوځکه مسواک دلمانځه سنت ده.خوزمونږاحنافو مذهب په دې اړونددادی چې که څوک يې دلمانځه لپاره وهي لابأس به ده؛کني اصل کې داوداسه سنت دی.والله اعلم بالحال.

---

[1]- ثم ان البول قائماً وان كانت فيه رخصة،والمنع للتأديب لا لتحريم كما قاله الترمذي ولكن اليوم الفتوي على تحريمه حيث اصبح شعاراً لغير المسلمين من الكفار واهل الاديان الباطله . معارف السنن – ١/١٠٦

[2]- اتفق العلماء على انه سنة مؤكدة لحث الشارع ومواضبته عليه وترغيبه وندبه اليه – (الاحاديث الواردة في السواک/١٠)

[3]- جامع الترمذي ابواب الطهارة باب ماجاء في السواک – ١/١٢

# آیاپه برش باندې سنت اداکیږي؟

پدی ارونډ مفتي تقي العثماني درس ترمذي کې لیکلي دي چې پاک والی.وربانـدې راخـي خوسنت نه وربانـدې اداکیږي؛ځکه چې له رسـول الله څخه لرکـی ثابت دی.[1]نوپدی ارونـد حکم دادی چې کوم ثواب اوفضیلت چې الله تعالی خپل بنده ته دمسواک دوهلوپه واسطه ورکوي هغه په برش کې نشته.اوبل دا چې مسواک به له داسې ونو څخه هم نه وي چې دهغواصل نه وي معلوم ځکه چې کیدلای شي چې کومه زهري ماده پکې موجوده وي ځکه چې دونیا کې دیرې داسې ونې شته چې هغه دانسان معدې ته تاوان رسوي.

اوپدی ارونډ بله مسئله داده چې مسواک به په ابتداء کې یوه لویشت وي اودبل والی به یې دکوچنۍ ګوتې په اندازه وي؛ددی لپاره هم علماؤ ضعیف احادیث له ترمذي شریف څخه نقل کړیدي خوداحکم استحباباً دی.اوبل داچې مسواک به دوهلوپرمهال په قبضه کې نه نیسي ځکه چې له دی څخه دبواسیرو مرض بیداکیږي؛ علماو لیکلي دي چې دوه ګوتې به لاندی طرف ته کړي اودرې بادي طرف ته؛طولاً اوعرضاً دواړه دوله وهل یې جوازلري؛په دې اروندهم امام نسایي په سنن الکبری کې ضعیف احادیث روایت کړیدي اوپه فضائلو داعمالو کښې ضعیف احادیث هم داعتبار وړوي نودمسواک طولاً اوعرضاً دواړه دوله وهل جوازلري.

# آیا دبل چا مسواک وهل جوازلري؟

په دې ارونډ علامه عبدالحی الکنوي مستقل کتاب جوړکړیدی چې نوم یې دی افادة الخیرفي الاستیاک باالسواک الغیر هلته یې په دې ارونډ ډیر احادیث نقل.کړیدي چې یوله هغو حدیثونوڅخه داده چې حضرت عائشة رضي الله عنها وایي چې کله به رسول اللهﷺ مسواک وواهه بیا به یې هغه ماته راکړچې دا ومینځه؛مابه یوځل درسول اللهﷺ مسواک وواهه بیا به مې ومینځه اورسول اللهﷺ ته به مې ورکړ.[2]همدارنګه یوبل حدیث شریف کې راځي چې یوه ورځ رسول اللهﷺته حضرت جبرئیل اوحضرت میکائیلؑ راغلل نبي کریمﷺ مسواک واهه په دې وخت کې نبي کریم ﷺ خپل مسواک

---

[1] - درس ترمذي باب ماجاء في السواک ۱/۱۳۴-

[2] - عن عائشة رضي الله عنه انها قالت:کان النبي صلی الله علیه وسلم یستاک فیعطیني السواک لاغسله فابدابه فاستاک ثم اغسله وادفعه الیه. سنن ابي داود ۱/۴۴-

حضرت جبرئیل ﷺ ته ورکړ هغه ورته وویل کبر الکبر یعني مشرته یې ورکړه چې هغه حضرت میکائیل ﷺ دی.[۱]

اوپدې اړوند یوبل حدیث هم راځي هغه داچې کله رسول الله ﷺ دمرض الموت په حالت کې وه؛حضرت عبدالرحمن ابن ابي بکر په داسې حالت کې دنبي کریم ﷺ حجرې ته داخل شوچې په لاس کې یې مسواک وه؛رسول الله ﷺ هغه ته وکتل عائشة رضي الله عنها وایي چې مارسول الله ﷺ ته وویل:چې مسواک غواړې هغه راته وفرمایل چې هو عائشه رضي الله عنها وایې چې ماهغه مسواک راواخیسته رسول الله ته مې ورکړخوهغه مسواک دیرکلک وه حضرت عائشة وایي چې مانبي کریم ﷺ ته وویل:چې زه یې په خپله خوله کې درته لوندکړم؟هغه راته وفرمایل چې هو بیا ماهغه مسواک په خپله خوله کې نرم کړ بیامې رسول الله ﷺ ته ورکړ.[۲] دتول ددې لپاره دلائل دي چې دبل چا سواک وهل جواز لري خو په دې شرط چې څوک یې بد اومستقزر نه ګڼي.ان شئتم على ان تقفو ببسط هذالمسئله فلترجعوا الى كتاب المسمى بافادة الخيرقي الاستياك باالسواک الغير.

اوبل داچې که یوڅوک دبل چاترمخ مسواک وهي اوهغه یې بد ګڼي نو په دې صورت کې یې هم وهل ندي صحيح كذا قال علامه زكريا كاندهلوي في الفيض السماوي.اوکله چې څوک له خوب څخه راویښ شي په دې وخت کې به هم مسواک وهي؛که دچا خوله بد بویه شي هغه به هم مسواک وهي علماؤ دمسواک اویا فوائد ذکرکړیدی دلا سه تحقیق لپاره په دې اړوند جوړو شویو کتابونوته مراجعه وکړی.

## په ګوته باندې مسواک وهل:

په دې اړوند هم ضعیف احادیث په سنن الکبری دامام نسایي کې روایت شویدی چې ګوتې هم دمسواک قائم مقام دریږي سره له دې چې داحدیثونه ضعیف دي خوپه فضائلو داعمالوکې په ضعیفو احادیثو باندې هم عمل کیدلای شي.اوزمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې راځي چې که څوک زیږه توته له خپلې ګوتې څخه تاوکړي داهم جوازلري.

---

[۱] - عن ابن عمر رضي الله عنه قال:اراني اتسوک بسواک فجاءني رجلان احدهما اکبر من الاخرفناولت السواک الاصغرمنهما فقيل لي کبر فد فعته الى الاكبر منهما. صحيح البخاري – ۱/۳۸ رقم الحديث ۲۴۶ .

[۲] -عن عائشة رضي الله عنها دخل عبدالرحمن ابن ابي بكر رضي الله عنه على النبي صلى الله عليه وسلم وانا مستند ته الى صدري ومع عبدالرحمن سواک رطب يستن به فابده رسول الله صلى الله عليه وسلم بصره فاخذت السواک فقضمته ونفضته وطيبته ثم دفعته الى النبي صلى الله عليه وسلم الخ. صحيح البخاري ۲/۶۳۸- رقم الحديث.۴۲۵۹

## آیادښحولپاره دژاولوژویل دمسواک قائم مقام کرخي؟

داخبره چې دژاونو زدویل دښخولپاره دمسواک قائم مقام کرځي زمونږدفقهي حنفي په خینو کتابونوکی شته؛خوپه ابوداودشریف باندی چې علامه عیني کومه شرحه کړیده په هغې شرحي باندی بل عالم خوندور تعلیق کړیدی هلته یې لیکلي دي چې په حدیث شریف کی خو دښځي اوسږي څه توپیرنه دی بیان شوی لولامتي لفظ راغلی دی چې داتر اوښځي دواړوته شاملیږي.له دی څخه معلومه شوه چې ښځه به هم مسواک وهي سره له دی چې دژاولوزدویل هم ورته جائز دي خودژاولوپه زدویلوسره دمسواک ثواب نه اداکیږي کذا فی البریقة.

## دمسواک په غوږکې کیښودل:

په غوږ کی هم دمسواک کیښودل جواز لري نبي کریمﷺ به هم په خپل غوږ کی مسواک کیښوده دصحابه وهم دغه معمول وه له سنن الکبری دامام نسایي څخه علامه عیني نقل کړیدی چې صحابه و به په خپلو پګړیو کي هم مسواکونه تومبل که دڅابه جیبونه وه هغوی به په خپلو جیبونوکي کیښودل.

همدارنګه په غوږ کي دقلم کیښودل هم جواز لري علامه ابن کثیر په البدایه والنهایة کی دحضرت معاویه رضی الله عنه په مناقبو کی لیکلي دي چې نوموړي به قلم په خپل غوږ کی کیښوده نورو احادیثو کی هم راځي چې معاویه رضي الله عنه به په خپل غوږ کي قلم کیښوده ځکه چې دی هم دنبي کریمﷺ دوحی کاتب وه.[1]

## دآذان بیان.

ایاله آذان څخه وروسته تثویب جائزدی؟ له آذان څخه وروسته خبرداري ته تثویب ویل کیږي.په دې اړوند علامه لکنوي مستقل کتاب جوړکړیدی"التحقیق العجیب في التثویب"هلته یې لیکلي دي چې دسهار دلمانځه لپاره خو یوتثویب دادی چې الصلوت خیرمن النوم له دی پرته په تثویب کي دری مذهبه دي؛یو مذهب دادی چې یواځي دسهار دلمانځه څخه وروسته تثویب جائز دی په نورو وختونو کي نه دی جائز ؛ددې لپاره علماء یوحدیث شریف هم دلیل راوړي چې ابو بکرة رضي الله عنه وایي چې زه یوه ورځ سهار له رسول اللهﷺ سره را ووتلم رسول الله به په خینو خلکو باندی غږ کاوه چې پاڅئ دلمانځه وخت دی له دی حدیث شریف څخه خیني علماء استدلال کوچې تثویب یواځي

[1] -عن عائشة قالت:لما کان یوم ام حبیبة من النبي صلی الله علیه وسلم دق الباب داق،فقال النبي صلی الله علیه وسلم انظرو من هذا؟قالو: معاویه قال ائذنوله،فدخل وعلی أذنه قلم یخط به فقال:ماهذاالقلم لی أذنک یا معاویه؟اعددته لله ولرسوله،فقال:جزاک الله عن نبیک خیراً. البدایة والنهایة – ٥/٥١٥

دسهاردلمانخه لپاره دی په نورو لمونځونوکي نه دی جائز [۱] چي دازمونږ احنافو مذهب هم دی. خینوشافعي مذهبه علماؤ لیکلي دي چي دسهار دلمانځه لپاره تثویب دټولو علماو رایة ده خو احناف يي نه مني؛داخبره ځکه غلطه ده چي زمونږ دفقهي حنفي ټول کتابونه په دی باندی ګوا دي چي دسهار دلمانځه لپاره تثویب جوازلري.

په دی اړوند دويم مذهب دامام ابو يوسف رحمه الله دی؛هغه وايي چي دامام،قاضي،يابل داسي چا چي لپاره چي هغه دمسلمانانو په کارونو باندی مشغول وي دهغه لپاره تثويب جواز لري نه يواځي دسهار په لمانځه کي بلکي په ټولو لمونځونوکی.په هدايه کي علامه مرغناني له امام محمد رحمه الله څخه نقل کړيدی چي هغه وايي چي خلک ټول په دی کي سره برابر دي خو په نوموړي باندی بيرته علماو ردونه کړيدي.علامه لکنوي په التعليق الممجد او علامه بنوري په معارف السنن کی ددی لپاره له يوه حديث شريف څخه استدلال کړيدی چي کله رسول الله ﷺ په مرض الموت باندی وه حضرت بلال اذان وکړبيا رسول الله ﷺ ته راغی په هغه يي سلام وکړاو ورته وي ويل چي دلمانځه وخت دی.[۲] اوبل داچي حضرت ابو بکر رضی الله عنه،حضرت عمررضي الله عنه اوحضرت معاويه رضي الله عنه دخپلو ځانونولپاره خلک مقررکړي وه کله به چي دجمعي دلمانځه وخت شو هغوی به دوی ته تثويب کاوه.

او په دی اړوند دريم مذهب دادی چي هغوی وايي په ټولو وختونو کي تثويب جائز دی؛ځکه چي په اوسني دور کي شغل اوسستي په خلکوکي ډيره شويده اوس مهال خلکو ته تثويب کول دمعاونت علی البر والتقوی سبب جوړيږي چي دمتأخرينو فتوی هم په دی باندی ده ډيرو علماو په خپلو کتابونوکي دامسئله ذکر کړيده منهم علامه عبد الحی لکنوي في التعليق الممجد،وعلامه محمد يوسف کاندهلوي في نيل الاماني شرح معاني الاثار،وعلامه بنوري في معارف السنن.[۳]

۱-عن بلال رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتثوبن في شئ من الصلوات الافي صلوة الفجر. جامع الترمذي- ۱/۴۹

۲- اخرج عبد الرزاق عن معمر عن الزهري عن سعيدبن المسيب ان بلال رضي الله عنه اذن ذات ليلة ثم جاء يؤذن النبي صلى الله عليه وسلم فنادى الصلوة خير من النوم فاقرت في الصلوةالصبح حكاه الشيخ لكنوي في تعليق الموطاء وفي الصحيحين عن عائشة رضي الله عنها قالت: ثقل رسول الله صلى الله عليه وسلم جاء بلال يؤذن باالصلوة مروا ابابكر فليصل باالناس- معارف السنن ۲/۲۰۶

۳- واستبعده محمد لان الناس سواسية في امرالجماعة،وابويوسف خصهم بذالك لزيادة اشتغالهم بامور المسلمين كيلا تفوتهم الجماعة،فكان هذالاعلام من باب التعاون على البر والتقوى،وعلى هذالقاضي والمفتي والمدرس ومن يعمل المعامة لاختصاصهم بزيادة شغل بسبب التطرق من الرعية والدين. معارف السنن۲۰۶-۲۰۵/۲-

## آذان سنت مؤکد دی:

په دی مسله کی دعلماو اختلاف دی چي آذان سنت مؤکد دی که واجب؟په دي اړوند داکثرو علماو مذهب دادی چی په دوی کي زمونږ احناف هم دی چي اذان سنت مؤکد دی.

په دی اړوند بل اختلاف دادی چي آذان په مکه مکرمه کی سنت ګرځيدلی دی که په مدينه منوره کي؟په دی اړوند هم علماو اختلاف دی په ځينو احاديثو کي راځي چي اذان په مکه مکرمه کي سنت ګرځيدلی وه خو دهغو حديثونوپه سندونو باندی علماو تحقيق کړيدی منهم علامه ابن حجر في فتح الباري نوموړي ليکليدي چي داحديثونه داستدلال وړنه دي.په دی اړوند دجمهورو علماو رايه داده چی آذان په مدينه منوره کی سنت ګرځيدلی دی.[1] کذا قال حافظ ابن حجر في فتح الباري،وعلامه زکريا کاندهلوي في الفيض السماوي،وعلامه بنوري في معارف السنن.[2]

اوبل اختلاف داذان په اړوند په دي کي دی چي اذان په کوم کال دهجرت باندي پيل شويدی؟په دی مسئله کی هم علماو ځيني خبری کړيدي خو صحيح خبره داده چی اذان په لومړي کال دهجرت باندي په مدينه منوره کي پيل شويدی همدا دجمهورو علماو مذهب دی.

اواصل کي اذان دلمانځه لپاره روا شويدی خو کله ناکله دنورو مقاصدولپاره هم جوازلري دبيلګي په دول دماشوم په غوږ کي آذان کله چی ماشوم نوی پيداشي نو خلک دهغه په ښي غوږ کی اذان کوي او په چپ غوږ کی يي اقامت لولي؛ياهم دغوسي پر مهال آذان:کله چی يو چاته ډيره غوسه ورشي بيا کله چي بل څوک دهغه په غوږ کی آذان وکړي الله تعالی يي ددی اذان په واسطه غوسه ختموي؛اويا دغم اوفکرپه حالت کي آذان:کله چي يوڅوک مغموم اومحزون وي بل څوک چی دهغه په غوږ کي اذان وکړي الله تعالی يي سوچ اوغم لري کوي.

مسند الفردوس کی امام دويلمي له حضرت علي کرم الله وجهه څخه حديث نقل کړيدی او علي القاري صاحب هم داحديث ميرقاة کي راوړيدی هغه داچي حضرت علي رضي الله عنه وايي چي زه يوه ورځ ډير غمجن وم رسول الله چي کله زه اوليدم راته وي ويل چي ای علي ولي داسي مغموم او

---

[1] - قال اخبرني ان ابن عمر رضي الله عنه قال: يكون كان المسلمون حين قدم المدينة يجتمعون فيتحنون الصلوة ليس ينادى لها فتكلمو يوماً ذالك فقال بعضهم اتخذوا ناقوساً مثل ناقوس النصارى وقال بعضهم بل بوقاً مثل قرن اليهود فقال عمررضي الله عنه اولا تبعثون رجلا ينادي با الصلوة فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم يا بلال قم فناد بالصلوة. صحيح البخاري - ۱/۸۵

[2] - ثم ان بعالاذآن كان بالمدينة كما هو في حديث ابن عمر في الصحيحين واخرجه التر مذي وقد اشار اليه في الترجمه(باب بدء الاذان) بايراد آيتين ۱ واذاناديتم الى الصلوة.۲- اذا نودى للصلوة من يوم الجمعة. وكلت الايتين مدنية. معارف السنن ۲:۱۶۸

محزون یی؟ما ورته وویل چي نه پوهیږم رسول اللهﷺ راته وویل:چي ورشه اهل ته دي وو ایه چي په غوږ کی دی اذان وکري په دی سره به دي الله غم لري کړي حضرت علي رضي الله عنه وایی چي بیا ما همداسې وکړل په دی سره الله تعالی ټول غمونه راځخه لری کړل.ددی حدیث راویان وایي چي مونږ په دي باندی تجربه کړیده چي داذان په واسطه الله تعالی له مونږ ځخه غمونه ختم کړیدی.[۱] نوکه څوک غمجن وي خپل اهل ته دي ووایي دبیلکي په ډول پلار،مور،ورور حوی اویاهم خپله ښځه چي په غوږکي یي آذان وکړي الله تعالی به یي غمونه ختم کړي.علامه ابن حجر الهیثمي په تحفة المحتاج کي لیکلي دي چي که څوک بد اخلاقه وي دهغه په غوږ کي دی اذان وکړی الله تعالی به یي اخلاق سم کړي یاکومه دابه ډیره شوخي کوي دهغی په غوږ کي دی اذان وکړي الله تعالی به یي شوخي ختمه کړي علامه شامي هم ردالمحتار کي داخبره لیکلي ده.[۲]

او په دي اړوند بل اختلاف داذان په کلماتو کي دی چي څه ډول تلفظ په ورباندي کول کیږي الله اکبر به په فتحي دراء سره لولي اوکه په ضمي دراء سره؟اوکه په سکون دراء؟په دي اړوند علامه علي القاري په میرقات کي لیکلي دی اوعلامه ابن حجر په فتح الباری کي لیکلي دي چي غوره داده چي وقف وکړی شي.[۳]

یوحدیث شریف هم کتابونوکي راغي چي الاذان جزم.[۴] خو داحدیث صحیح حدیث ندی دابراهیم نخعي اثر دی چي نوموړی دتابعیانو له ډلی څخه دی.بیا که څوک په دي الفاظو باندی وقف نه کوي غوره داده چي په ضمي سره یي ولولي چي دادجمهوروعلماو مسلک دی.خو علامه مبرد اوعلامه نابلوسي لیکلي دي چي په فتحي سره به یي وایي.والله اعلم بالحال.

## اذان الجوق:

ددویاهم دریو کسانو په یوه خل اذان کولو ته اذان الجوق ویل کیږي ایا دادول اذان په شرعه کي جواز لري اوکنه؟هو دادول اذان په شرعه کي ثابت دی ټولو مذاهبوپه دي باندي دجواز فتوی کړیده.

---

[۱]- ویسن ایضاً عند الهم وسوء الخلق لخبر الدیلمي عن علي رأني النبي صلى الله علیه وسلم حزینا فقال:یا ابن ابي طالب اني اراک حزینا فمر بعض اهلک یؤذن في اذنک فانه درءالهم.قال:فوجدتهم کذالک وقال کل من رواته الی علي انه جربه فوجده کذالک. وروی الدیلمي عنه قال:قال رسول الله صلى الله علیه وسلم من ساء خلقه من انسان او دابة فأذنو في أذنه. میرقاة المفاتیح ۲/۳۱۰-

[۲]-ومن ساء خلقه من انسان او بهیمة – ردالمحتار ۲/۳۶-

[۳]- (الله اکبر)بسکون الراءوترفع الذکر في النهایة والغریبین ان الراء في الاکبر ساکنة في الاذان والصلوة کذا سمع موقوفاً غیر مغرب في مقاطعة،کقولهم حي علی الفلاح.قال ابن حجریسن للمؤذن الوقف علی کل کلمة من هذه الاربعة وکذا ما بعدها لانه روي موقوفا. میرقاة المفاتیح ۲/۳۱۲-

[۴]-الاذان جزم والاقامة جزم والتکبیر جزم. رواه سعید بن منصورفي سننه عن ابراهیم النخعي،انظرمنتخب کنزالعمال ۳/۴۲۲-

کذاقال علامه خیرالدین الرملي في فتاوي الخیریه،وعلامه نابلوسي،وعلامه زکریا کاندهلوي في الفیض السماوي،وعلامه محمد یوسف في نیل الاماني،وایضاً علامه شامي في ردالمحتار.[۱]

ددی لپاره علماوپه خپلو کتابونوکي ګڼ شمیر دلائل وړاندی کړیدي هدایه کي هم یوځای راځي چي(اذان المؤذنون) له دی څخه هم علماء داذان الجوق استدلال کوي.علامه لکنوي په خپل کتاب سعایه کي لیکلي دي چي اوس مهال په حرمینو کي هم اذان الجوق کیږي؛نوداډول اذان بلکل جواز لري.

## داذان په پای کي الصلوة والسلام یارسول اللهﷺ ویل:

ایا داذان په پای کي الصلوة والسلام یا رسول الله ویل جوازلري اوکنه کماهوالعادت لفرق البریلویه؟په دې اړوند امام سخاوي چي دامام شافعي رحمه الله دمذهب لوی عالم دی القول البدیع في الصلوة علی النبي الشفیع کتاب کي لیکلي دي چي دا الفاظ په اتمه هجري پیړی کي رواج شویدی ویل یي بدعت دي خوبدعت حسنه که څوک یي ولولي څه پروانه لري.

علامه ابوالعباس قسطلاني شارح البخاري په خپل کتاب مناسک الحنفافي الصلوة علی النبي المصطفی کي لیکلي دي چي ددې الفاظو ویل بدعت حسنه دي.علامه سیوطي په جمع الوسائل في معرفة الاوایل کتاب کي لیکلي دي چي ددې الفاظو لوستل په ووم هجري قرن کي په دونیا کي رواج شول دجواز یاهم نه جاز فتوی یي نه ده ورکړې خونورو ډیرو علماو ددې په جواز باندې فتوی کړیده منهم علامه شامي في ردالمحتاروایضاً علامه ابن علان في فتوحات الربانیة علی اذکار النوویه.سره له دې چي ددې الفاظو لوستل جواز لري خو چونکه اوس دباطلې ډلې(بریالویانو)شعار ګرځیدلی دی اوپه اسلام کي څه اصل هم نه لري نوغوره داده چي ونه لوستل شي.

## دډیروجوماتونولپاره یواذان:

کله چي په یوه محله اوکلي کي په یوه جومات کي اذان وشي اوپه نوروجوماتونوکي ونشي ایا دغه یو اذان دنورو جوماتونولپاره هم کافي دی؟غوره داده چي په ټولو جوماتونوکي اذانونه وشي خو که ټولو جوماتونوکي ونکړای شي یو اذان هم دټولو لپاره کافي دی؛ځکه چي درسول اللهﷺ په زمانه کي په مدینة المنوره کي نه(۹)جوماتونه وه یواځي په مسجدنبوي کي به حضرت بلال رضي الله عنه اذان

---

۱ -واختلفو في کراهیته....واذا اذن المؤذنون الاذان الاول ترک الناس البیع ذکر المؤذنین بلفظ الجمع....ففیه دلیل علی انه غیرمکروه-ردالمحتار-۲/۷۱

گاوه توروتولوبه په همدی اکتفاکوله.کذافي السنن دار قطني،وعمدة القاري للعلامه عینی،ووفاء الوفافي اخبار دار المصطفی للعلامه سمهودي،وایضاً معارف السنن للعلامه بنوري.[۱]

## په اذان کولو باندې اجره اخیستل:

آیا داذان په کولو باندي اجره اخیستل جوازلري؟په دې اړوند دمتقدمینو علماو فتوی داده چې په داذن کولو باندی اجره اخیستل ناروادي.خومتأخرینو علماو لیکلي دي چې په اذان کولوباندي اجره اخیستل جوازلري.کذافي ردالمحتار للعلامه شامي.[۲]

## له اقامت څخه وړاندې درود لوستل:

په دې اړوند علامه ابی سعود الحماوي په فتح المعین کتاب کې لیکلي دي چېمخکی له اقامت څخه ددرود ویلو په اړه ضعیف احادیث راغلي دي خوپه هغو روایتونو باندی ددې ثبوت نه راځي.علامه قسطلاني په مسالک الحنفا اوعلامه هیثمي په تحفة المحتاج کتابونوکي لیکلي دي چې داقامت په مینځ کې ځینې اذکار ثابت دي خو مخکې له اقامت څخه درودویل په اسلام کې څه اصل نلري.

## رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی:

په دې اړوند هم دعلماو اختلاف دی چې آیارسول الله ﷺ په خپله اذان کړیدی اوکنه؟ په دی اړه امام نووي په خپل کتاب شرح المهذب کې لیکلي دي چې رسول الله ﷺ په خپله اذان کړیدی.علامه سیوطي هم دامام نووي درایې تأیید کړیدی.په تر مذي شریف کې یوباب راځي چې (باب الصلوة علی الدابة)هلته امام ترمذي یوحدیث شریف روایت کړیدی چې رسول الله ﷺ اذان وکړ په دابه باندي اودلمانځه لپاره یې اقامت هم وویلې څکه چې باران شوی وه څکه خټه وه.[۳]

له دې حدیث څخه امام نووي اوعلامه سیوطي استدلال کوي چې رسول الله ﷺ په خپله باندې اذان کړیدی علامه سیوطي په بخاري شریف باندې شرحه کړې دالتوشیح په نوم باندې اوپه تر مذي

---

[۱] - ان بکیر الا شج حدثه انه کان بالمدینة تسعة مساجد مع مسجد رسول الله صلی الله علیه وسلم یسمع اهلها تأذین بلال علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصلون في مساجدهم .وفاء الوفا للسمهودي (۲-۶۲)وروی یحی بن بکر عن محمد بن عمر قال:قالو:کان بالمدینة تسعة مساجد یسمعون فیاموذن النبي صلی الله علیه وسلم فیصلون في مساجدهم. معارف السنن۲/۲۱۸-

[۲] - ان عدم حل اخذ الاجرة علی الاذان والامامة رأی المتقدمین والمتاخرون یجوزون ذالک. ردالمحتار۲/۷۴-

[۳] - عن عمروبن عثمان بن یعلی بن مره عن ابیه عن جده انهم کانو مع النبي صلی الله علیه وسلم في سفر فانتهوا الی مضیق فحضرت الصلوة فطروالسماءمن فوقهم والبلة من الاسفل منهم فاذن رسول الله صلی الله علیه وسلم وهو علی راحلته واقام فتقدم علی راحلته فصلی بهم یومي.جامع الترمذي – ۱/۹۴

شریف یی حاشیه کریده له دی څخه علماو نقل کریدی چی هلته علامه سیوطی لیکلی دی چی رسول الله ﷺ په خپله باندی اذان کریدی له همدی حدیث څخه یی استدلال کریدی له نوموړي څخه علماو نقل کریدی چی هغه وایي چې ما په دې اړوند یوبل حدیث هم په سنن دسعید بن منصور کې وموند چې رسول الله ﷺ په خپله باندی اذان کریدی.دادوه علما چي یو امام نووي اوبل علامه سیوطي دی دوی داختلاف په یوه طرف کې دي اوددونیا نور علماء بل طرف ته دي دټولی نړی دعلماو رایه داده چې رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی کوم حدیث شریف چې په ترمذي کې روایت شویدی همداحدیث په مسند دامام احمدبن حنبل کی مکمل ذکردی هلته داسي راځي چې رسول الله ﷺ په خپله اذان ونکړحضرت بلال ته یي امر وکړ چې اذان وکړي نو له دې څخه په ډاګه شوه چې رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی.

علامه قسطلاني په المواهب الدنیه کتاب کی لیکلي دي چې رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی.همدغه رایه دعلامه ابن حجراوعلامه شامي هم ده.همدارنګه علامه بنوري هم معارف السنن کې لیکلي دي چې رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی.[1]

په موږ احنافو کي علامه لکنوي په دې اړوند مستقل کتاب جوړ کریدی «خیر الخبر في اذان خیر البشر» هلته یي هم لیکلي دي چې رسول الله ﷺ په خپله اذان نه دی کړی.ان شئتم علی ان تقفوا ببسط هذالمسئله فلترجعوا الی کتاب المسمی بخیر الخبرفي اذان خیر البشر هناک تحقیق المسئله وایراد الادلة من الجانبین.که څوک پوښتنه وکړی چې سره له دې چې داذان په اړوند په احادیثوکي ډیر زیات فضائل ذکرشویدی دبیلګي په ډول کله چې څوک وه کاله اذان وکړی الله تعالی به په هغه باندي دجهنم اور حرام کړي؛[2] اوداسي نور. نوولي رسول الله ﷺ په خپله باندي اذان نه دی کړی؟ددې پوښتنې لپاره دعلم احادیثو شارحینو ګڼ ځوابونه کریدي؛لومړی ځواب داچي که چیرې رسول الله ﷺ په خپله باندي اذان کړی وی اوحي علی الصلوة اوحي علی الفلاح یي ویلي وی نو په خلکوبه لمانځه ته راتلل واجب شوي وه ځکه چې درسول الله ﷺ امرواجب دی نوپه دی سره به خلکوته لوی حرج اوتکلیف جوړشوی وه.

---

[1] - قوله:فاذن رسول الله ظاهره انه صلى الله عليه وسلم با شرالاذان بنفسه وجزم النووي بذالک....ولکن يقول الحافظ في الفتح (٢-٦٤)وجدناه في مسند احمد من الوجه الذي اخرجه الترمذي ولفظه فامر بلالا فاذن فعرف ان في رواية الترمذي اختصاراً- معارف السنن-٤/٢٤

[2] - عن ابن عباس رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:من اذن سبع سنين محتسبا كتبت له برائة من النار- جامع التر مذي-١/٥١

دویم داچي کچیرې رسول اللهﷺ په خبله اذان کړی وی اوپه اذان کي يې داسي ويلي وی چي اشهدان محمدرسول الله نو دلته تزکیه دنفس راتلله اوالله تعالی په قرآنکریم کي فرمايلي دي چي.﴿ فَلَا تُزَكُّوٓاْ أَنفُسَكُمۡ ﴾النجم: ٣٢يعني تاسي دخپلوځانونوصفت مه کوی.

اودریم داچي کچیرې رسول اللهﷺ په خپله اذان.کړی وی نوداذان په کلماتو کي تغيرراتله کله چي رسول اللهﷺ داالفاظ لوستلای چي اشهد ان محمدرسول الله نوددي پرځای به يي ويل چي اشهد اني محمدرسول الله نوځکه رسول اللهﷺ په خپله اذان نه دی کړی.

## له لسوڅخه زياتوصحابه وته په خوب کي آذان وربنودل شوی وه:

ډيرصحابه کرام ددي لپاره راټول شوی وه چي دلمانځه لپاره خلک څه ډول خبرکړوډيروصحابه په دي اړوند رسول اللهﷺ ته خپل اندونه وړاندي کړل ځينوصحابه وويل چي ناقوس به وهو،ځينو نورو وويل چي اور به بلووهرچاخپله رايه بيان کړه.عبدالله بن زيد رضی الله عنه وايی چي کله بيګاره خپل کورته لاړم اوويده شوم په خوب کي مي وليدل چي يوه سړي ناقوس بار کړيدی ماورته وويل چي داناقوس په ماباندی خرڅ کړه هغه راته وويل چي آيا له دي څخه بنه شی درته ونه ښايم چي تاسي دهغه په واسطه دلمانځه لپاره خلک خبرکړی؟ما ورته وويل چي ولي نه راته ويي ښايه هغه راته وويل چي الله اکبرالی آخره عبدالله بن زيدرضي الله عنه وايي چي کله مي داخوب وليده نورسول اللهﷺ ته راغلم اوخپل خوب مي ورته بيان کړنبي کريم ﷺ راته وفرمايل چي داکلمات بلال رضي الله عنه ته وښايه چي اذان وکړي ځکه چي دحضرت بلال اواز ستا له غږڅخه لوړدی.[1]

که څوک اعتراض وکړي چي په خوب باندي څرنګه آذان ثابتيږي؟مونږ ځواب ورته کووچي اصل کي داخوب الهامي وه له لسوڅخه زياتو صحابه و داډول خوب ليدلی وه؛حضرت عمر رضي الله عنه هم داخوب ليدلی وه کله چي آذان پيل شو نوموړي دجومات په لوړي مندي کړی او ويي ويل چي داکلمات اوالفاظ خوماته هم په خوب کي راښودل شويدي؛ نوددي اصل وحيه وه ځکه يي رسول اللهﷺ هم تصديق وکړپه دی ډول په دونيا کي اذان پيل شو.

---

[1] - عن محمدبن عبدالله بن زيد عن ابيه قال:لمااصبحنا اتينا رسول الله صلى الله عليه وسلم فاخبرته بالرؤيافقال:ان هذه الرؤيا حق فقم مع بلال فانه اندى وامد صوتامنک فالق عليه ماقيل لک وليناديذالک قال:فلماسمع عمربن الخطاب نداءبلال بالصلوةخرج الى رسول الله صلى الله عليه وسلم وهويجر ازاره وهويقول يا رسول الله والذى بعثه بالحق لقد رايت مثل الذي فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم فالله الحمدفذالک اثبت. جامع الترمذي١/٤٨-

## دنبي کریمﷺ مؤذنین:

دنبي کریمﷺ پنځه مؤذنین وه چې یوله هغوی څخه حضرت بلال ابن رباح الحبشي رضي الله عنه وه نوموړی اصل کې جبشي وه چې حبشه اوس مهال داتوپیاپه نوم یادیږی سومالیاته نږدی دیوه هیوادنوم دی.په اسلام کې ترټولولومړی آذان هم حضرت بلال رضي الله عنه کړیدی.ځینوکتابونوکې لیکلي دي چې نوموړی به شین په سم دول نه شواداکولای په دي اړوند یوحدیث هم کتابونوکي راغي خوعلامه ابن کثیر البدایه والنهایه کې لیکلي دي چې داحدیث اصل نلري [1] نورو ډیروعلماو هم داخبره لیکلي ده منهم علامه عجلوني في کشف الخفا،وعلامه سخاوي في المقاصدالحسنة،وایضا علامه علي القاري في المصنوع في معرفة حدیث الموضوع.[2]

دویم صحابي: چې درسول اللهﷺ له مؤذنینوڅخه شمیرل کیږي هغه عبدالله بن مکتوم یاهم عمربن مکتوم رضي الله عنه دي دنوموړي په نوم کي دعلماو اختلاف دی.دریم صحابي: چې درسول اللهﷺ له مؤذنینوڅخه وه هغه زیاد بن الحارث رضي الله عنه دی. څلورم صحابي:حضرت سعدالقرز رضي الله عنه دی.اوپنځم صحابي:حضرت ابي محذوره رضي الله عنه دی.داهغه صحابه دي چې دوی درسول اللهﷺ له لوري په آذان کولوباندي کمارل شوي وه.

## امامت غوره دی که آذان؟:

په دي اړوند علامه ابن الهمام فتح القدیر کې لیکلي دي چې دامامت ثواب دآذان له ثواب څخه زیات دي.

علامه ابو الاخلاص الشرنبلالي په خپلودوکتابونو"نورالایضاح"[3]او"امدادالفتاح" کې لیکلي دي چې په دي اړوند زمونږه احنافورایه داده چې له آذان څخه امامت غوره دی. خوپه شافعي مذهبه علماو کې علامه ابي ذرعه العراقي لیکلي دی چې که څوک دامامت حق پرځای کولای شي دهغه لپاره امامت غوره دی اوکه څوک دامامت حق نشي اداکولای بیا دهغه لپاره اذان غوره دی.دنوموړي له دي خبري څخه هم څرګندیږي چې په نسبت سره اذان ته امامت غوره دی.

---

[1] - وکان من افصح الناس لاکمایعتقده بعض الناس ان سینه کان شیناً،حتی ان بعض الناس یروی حدیثاً في ذالک لااصل له عن رسول الله صلی الله علیه وسلم انه قال:ان سین بلال شیناً،وهواحد المؤذنین الاربعة-البدایه والنهایه۵/۳۴۷-

[2] - حدیث:ان بلالاًکان یبدل الشین في الاذان سیناًلیس له اصل-(المصنوع في معرفة الحدیث الموضوع/۷۵)

۳- وهي افضل من الاذان-وذکر في ذیل هذاالکتاب المحشي:ان الامامة افضل لمواضبة النبي صلی الله علیه وسلم وکذاالخلفاءالراشدون بعده-(نورالایضاح/۷۵)

# دآذان په دعا کي دخینو الفاظو تحقیق:

داذان په دوعا کي خیني داسي الفاظ دي چي هغه په احادیثوکي نه دي ثابت ایا دهغولوستل حوازلري اوکنه؟چي هغه الفاظ په دی دول دي:والدرجة الرفیعة،ورزقنا شفاعته یوم القیامه،انک لاتخلف المیعاد اویاارحم الراحمین.[1]

لومړی والدرجة الرفیعة:په دی الفاظوکي دعلماو اختلاف دی خیني علماء ددي الفاظو دنه ثبوت خبره کوي منهم علامه ابن حجر في التلخیص الحبیر،وعلامه سخاوي في المقاصد الحسنه،وعلامه شهاب الدین الخفاجي في النسیم الریاض،وایضاً علامه علي القاري في المرقاة.[2] دي تولو علماو لیکلي دي چي داالفاظ په احادیثوکي څه اصل نه لري.خوپه مالکي مذهبه علماوکي علامه عبدالباقي الزرقاني په شرح دالمواهب الدینه کي ددي الفاظو دثبوت خبره کړیده.اوپه مونږاحنافوکي علامه شاولي الله په الحجة الله البالغة کي لیکلي دي چي والدرجة الرفیعه لفظ په احادیثو کي نه دی ثابت خومعنی یې ثابته ده.په کتاب الدعا دعلامه ابوالقاسم الطبراني کي هم دغه خبره لیکلي ده.

داذان په دوعا کي بل زیادت دلاتخلف المیعادالفاظ دي:خوداپه احادیثوکي ثبوت لري په سنن الکبری دامام بیهقي کي داالفاظ راغلي دي علماو هم دي په ثبوت خبره کریده منهم علامه ابن حجر،وعلامه عینی في العمدة القاري،وعلامه ابن الهمام في فتح القدیر،وعلامه بنوري في معارف السنن.[3]

بل زیادت داذان په دوعا کي دورزقناشفاعته یوم القیامه الفاظ دي:په دي اړوند علماو لیکلي دي چي داالفاظ په احادیثوکي څه ثبوت نلري منهم علامه ابن حجرفي التلخیص الحبیر،وعلامه بنوري في معارف السنن،وعلامه ابوالفتاح في التاریخ،وایضاً علامه علي القاري في المصنوع.خوعلامه هیثمي په تحفة المتاج کي لیکلي دي چي لوستل یې لابأس به دي خوغوره داده چي ونه لوستل شي ځکه چي ددي لپاره په احادیثوکي څه ثبوت نه دي راغلی.

---

[1] - والدرجة الرفیعه وختمه بیا ارحم الراحمین لااصل لهما- ردالمحتار۲/۸۴-

[2] - واما زیادة والدرجة الرفیعه المشتهره علی السنه،فقال السخاوي:لم اره في شئ ن الروایات – مرقاة المفاتیح -۲/۳۳۱

[3] - وزادالبیهقي وغیره انک لاتخلف المیعاد وقال الطیبي المرادبذالک قوله تعالی(عسی ان یبعثک ربک مقاما محمودا)واطلق علیه الوعدلان عسی من الله کماصرح به ابن قتیبة وغیره-معارف السنن۲/۲۴۶-

# دجومات بيان.

خلكوكي مشهوره ده چي كله يوڅوک دجومات تهداب پيل كوي چي عربي كي ورته انحطاط ويل كيږي بيادهغه كار دپيل لپاره يوروحاني شخصيت راولي په هغه باندي دتهداب لومړنی دبره ږدي ايادذي لپاره په اسلام كي څه اصل شته؟ هو:دادول عمل په اسلام كي اصل لري علامه سمهودي وفاءالوفاكتاب كي ليكلي دي چي دبني مازن ابن نجارقبيلي ته رسول الله ﷺ دجومات تهداب كيښود خولمونځ يي په كي ونكړ.[1]

بل حديث شريف په كنزالعمال كي علاءالدين بن حسام الدين المشهور باالمتقي الهندي راوړيدی دحضرت جابر بن اسامه الجهني په روايت سره هغه وايي زه يوه ورځ په بازاركي روان وم چي رسول الله ﷺ اوصحابه تيرشول ما له صحابه وڅخه پوښتنه وكړه چي رسول الله ﷺ چيرته تللی وه؟هغوی راته وويل چي ستاسي قبيلي(جهني)ته هلته يي دهغوی لپاره دجومات تهداب كيښود اودقبلي لوري ته يي يوه لښته ودروله.[2]

په هغه زمانه كي به چي چاجومات جوړاوه نورسول الله ﷺ بهد لومړی تهداب ورته كيښوده؛حيات الصحابه كتاب كي هم داحديث شريف روايت شويدی.اوس هم چي كله څوک جومات جوړوي نوښايي چي دبنسټ لومړنی دبره يي په يوه روحاني شخصيت باندي كيږدي ځكه چي دادرسول الله ﷺ سنت ده.تاريخ الملوک المشهور باالتاريخ الطبري كي دحضرت عمر رضي الله عنه په مناقبوكي ليكلي دي چي هغه به هم خلكوته دجوماتونوتهداب كيښوده له دي څخه څرګنده شوه چي دادصحابه و معمول هم وه.

# له جومات څخه دباندي كوټه جوړول:

اكثره سيموكي داسي عادت وي چي خلک له جومات څخه دباندي كوټه جوړوي ددي لپاره چي خلک هلته مجلس وكړي ياهم هلته هلكانوته درس وايي آيادذي لپاره په اسلام كي څه اصل شته اوكنه؟ هو: ددي لپاره په اسلام كي اصل شته كنز العمال،مجمع الزوائد،جمع الجوامع،او وفاءالوفاكتابونوكي په دي اړوند يوحديث راخي چي حضرت عمر رضي الله عنه دخپل خلافت په دور كي مسجدنبوي ته نږدي يوځای جوړكړی وه چي هغه ته يي بطيحاويلي كله به چي لمونځ اداشو چابه چي دمجلس

[1] - روى ابن زبالة عن يعقوب بن محمدان النبي صلي الله عليه وسلم خط مسجدبني مازن ولم يصل فيه-وفاءالوفا ٣/٦٥-

[2] -عن جابربن اسامه الجهني رضي الله عنه قال:ذهبت الى السوق فلقيت النبي صلى الله عليه وسلم في اصحابه فسألتهم اين يريد؟فقالو:يتخط لقومک مسجداً،فرجعت فوجدت قومي قياماً فقلت ماشانكم؟فقالو:خط لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم مسجداًبرجله وغرزه في القبلة خشبة اقامهافيه-كنزالعمال٨/٣٧٢- رقم الحديث ٢٣١٣٤

خواهش درلوده هغوى ته به يي ويل چي لارښى بطيحانومي كوتي ياهم برندې ته هلته مجلس كوى نوداډول حاى جوړول هم ثابت دي.[1]

## جومات باندې نوم كيښودل:

بنايي چې هريوجومات بوخانګړى نوم ولري ځكه چي درسول اللهﷺ په زمانه كي به دهرقوم جومات بوخانګړى نوم درلود دبيلګي په ډول:مسجدفتح،مسجدبني زُريب،مسجدابي ذر غفاري،مسجدقباءاوداسي نور.خوآياهغه څوک چي جومات جوړګري دهغه لپاره داجوازلري چي خپل نوم وربانديکيږدي؟هو:داهم جوازلري خوداډول عمل بعيد من الاخلاص دى كيدلاى شي چي په دې عمل سره يي په نيت كي تغير راشي داخبره فتح الملهم دعلامه شبيراحمدعثماني اوالتبليس ابليس دعلامه ابن جوزي كي ليكلي ده.

په دي اړوند امام ترمذي په خپل كتاب جامع الترمذي كي هم روايت كړيدى چي:عن عثمان بن عفان رضى الله عنه سمعت رسول اللهﷺ يقول:من بنى لله مسجدابنى الله له مثله في الجنة.[2] زباره:څوک چي په اخلاص باندى دالله تعالى درضالپاره جومات جوړكړى نوالله تعالى به دده لپاره په جنت كي ددي په مثل كور جوړكړي.نورهم دجومات جوړولودفضيلت په اړونداحاديث راغلي دي خودافضائل هلته يو انسان ترلاسه كولاى شي چي نيت يي خاص دالله تعالى درضالپاره وي.

## آياپه جومات كي دماشومانولپاره تعليم جائزدى؟:

افتتاح المكاتب في المساجد ياتعليم الصبيان في المساجد آيادي لپاره په شرعه كي څه اصل شته اوكنه؟په دي اړوند غيرمقلدعالم علامه جمال الدين الفاسي الدمشقي كتاب جوړكړيدى هلته يي لومړنى مسئله همداليكلي ده چي مكتبونه خلاصول په جوماتونوكي ياهم عسكراوسيدل په جوماتونوكي شرعا جوازنلري.اوپه مونږاحنافوكي له علامه ابن الهمام څخه پوښتنه شويده چي په جومات كي خط زده كول څرنګه دي؟نوموړي په خواب كي ليكلي دي چي داسم كارنه دى ځكه چي په دى باندي اجره اخيستل كيږي كه په دې مسئله باندې قياس وشي داكوم مكتبونه چي اوس مهال په جوماتونوكى لوستل كيږى ددې حكم هم دغه ډول دي.

---

[1] - روى ابن شيبة بسند جيد عن سالم بن عبدالله ان عمررضي الله عنه(عمربن الخطاب) اتخذ مكاناً الى جانب المسجديقال له البطيحا وقال:من اراداىلغط اويرفع صوتاً اوانشد شعراً فليخرج اليه-وفاءالوفا٢/٧٩-

[2] - جامع الترمذي ابواب الصلوة باب ما جاءفي فضل بنيان المسجد١/٧٣-

بیا پوښتنه ورځخه شویده چي تعلیم دقرانکریم په جوماتکي څرنګه دی؟نوموړ... په جواب کي لیکلي دي چي که اجره ورباندي اخیستل کیدله داهم جواز نلري لنده داچي علامه ابن الهمام وایی چي هرهغه تعلیم چي په هغه باندي اجره اخیستل کیږي هغه په جومات کي ناجائز دی.حوحینو علماولیکلي دي چي په ګرمي یاهم یخني کي ماشومانوته په جومات کي تعلیم کول جوازلري؛زماپه خپله دارایه ده چي دنارواحکم خونشي ورباندي کیدلای خومکروه ده ځکه چي په شرعه کي دجومات دپاک والي اوتنظیف حکم شویدی کوچني ماشومان چي کله جومات ته راځي نوخامخاله ځان سره یوڅه ګندګي راوړي چي په دي سره دجومات بي عزتي کیږي نوغوره داده چي په جومات کي ماشومانوته تعلیم ونکړای شي.

## دجومات اورسیونه پردي اچول:

دجومات اورسیواودروازونه پردي اچول جوازلري علامه نورالدین السمهودي لیکلي دي چي نبوي جومات ته دسلفوپه زمانه کي پردي اچول کیدلي.

## په نبوي جومات کي یولمونځ په زروشمیرل کیږي:

په یوه حدیث شریف کي راځي چي په مسجد نبوي کي یولمونځ په پنځوس زروباندي حسابیږي؛خوپه دي اړوندحقیقت داده چي په نبوي جومات کي یولمونځ په پنځوس زره نه بلکه په زروباندي حسابیږي.[1] کوم حدیث شریف کي چي پنځوس زره زیات والی ذکردی هغه حدیث ضعیف دی؛همدارنګه په بل حدیث شریف کي راځي چي په لس زره حساب دی خوپه دي اړوند صحیح خبره داده چي په نبوي جومات کي یولمونځ دزرولمونځونوثواب لري.

اوداکوم عبادت چي مضاعف کیږي هغه یواځي فرضي لمونځ دی اوکه نفلي لمونځ هم پکي شامل دی؟په دي اړوند وفاء الوفاکي علامه سمهودي لیکلي اوعلامه عبدالحق په لمعات کي لیکلي دي چي زیادت یواځي ترفرضوندی خاص بلکه نفلي عبادت هم مضاعف کیږي(زیاتیږي).[2]

اوبل دازیات والی یواځي ترلمانځه پوري خاص دی که نورو عبادتونوته هم شامل دی دبیلګي په ډول روژه،صدقه،یاداسي نور؟په دي اړوند داکثره علماورایه داده چي په ټولواعمالوکي زیات والی راځي

---

[1] -عن ابي هريره رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم صلوة في مسجدي هذاخيرمن الف صلوة في غيره من المساجدالى المسجدالحرام-صحيح مسلم ١/٤٤٦-

[2] -وهذه المضاعفة المذكورةفي هذه المساجدلاتختص بالفريضة بل تعم الفرض،والنفل،كماقال النووى في شرح مسلم-وفاءالوفاء٢/٢٦

کذاقال شاه عبدالحق في اللمعات.دیادوني ورڅ دي چي د بیت الله په حرم کي یولمونځ په یولک باندي حساب دی دامسئله هم په صحیح احادیثوباندي ثابته ده.

## لاتشدالرحاله الی آخره حدیث شریف کي تحقیق:

له رسول اللهﷺ څخه یوحدیث شریف روایت شویدی چي:لاتشدالرحالة الاالی ثلاثة مساجد.[1] ژباړه:ناسي خپل بارونه مه تړی اودسفرنیت مه کوی مګر یواځي دغودریوجوماتونوته چي هغه:دبیت المقدس جومات،نبوي جومات اومسجدالحرام دی.له دي حدیث شریف څخه علامه ابن تیمیه استدلال کوي چي پرته له دي دریوجوماتونوڅخه نوروځایونوته دعبادت په نیت باندي سفرکول ناروادي.نوموړي لیکلي دي چي دلته استثنا مفرغه ده اومستثنی منه محذوفه ده اواصل په مستثنی کي داده چي مستثنی منه به له جنس دمستثنی څخه وي نوموړی وایي چي دلته مستثنی منه «شئ»دی یعني لاتشدالرحاله الامن شئ الی ثلاث مساجد.

مونږداسي خواب ورته کووچي اصل کي داسي ده چي مستثنی به له جنس دمستثنی منه څخه وي مونږدلته مستثنی منه «مسجد»راباسویعني لاتشدالرحاله الامن مسجد الی ثلاث مساجد مغنی داچي که چیري ناسي جوماتونوته سفرکوی نوپرته له دغودریوجوماتونوڅخه نوروجوماتونوته سفرمه کوی خکه که مستثنی منه "شئ"راویاسو بیا خومطلق سفرله دي دریو ځایونوڅخه پرته نوروځایونوته ندی جائزاوحال داچي دعلم لپاره سفرکول علماءجائزګڼي همداراز دتجارت لپاره سفرکول یاهم دنوروامورولپاره سفرونه کول بلکل جوازلري.خوبحمدالله ومنته په مسند دامام احمدبن حنبل په مسند دابي سعیدالخدري کي دی عاجزبنده داحدیث شریف صراحة وموندچي هلته مستثني منه صراحة مسجدراغلی دی کماهومذهب الجمهور.

همدارنګه له دي حدیث شریف څخه علامه ابن تیمیه یوبل استدلال هم کوي هغه داچي درسول اللهﷺ زیارت نه تلل هم حرام ګڼي خکه چي علامه ابن تیمیه په دي حدیث کي مستثنی منه "شئ"ګڼي نوموړی لیکلي دي چي که څوک مسجدنبوي ته سفرکوي داجوازلري خوکه دنبي کریمﷺ دزیرت لپا ره سفرکوي داحرام ده.بیرته علامعه ابن تیمیه ته ددونیاجمهوروعلماو خوابونه کړیدي شفاءالسقام في زیارة سیدالانام په دي کتاب کي یي ټول هغه احادیث راټول کړیدی کوموباندي چي درسول اللهﷺ

[1] - عن ابي هريرة رضي الله عنه يبلغ به النبي صلى الله عليه وسلم قال:لاتشدالرحال الاالى ثلاثة مساجد مسجدي هذا،مسجدالحرام،مسجدالاقصى-صحيح مسلم باب فضل المسجدالثلاثه ١/٤٤٧- -وايضاًرواه الترمذي عن ابي سعيدالخدري رضي الله عنه مثله باب ماجاء في المساجدافضا ١/٧٥-

زیارت ته تلل ثابتیږي چې پوله هغواحادیثوڅخه داده چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي:من زارقبري وجبت له شفاعتي.[1] داحدیث شریف شعب الایمان کې امام بیهقي روایت کړیدی اوسنن دارقطني کې هم داحدیث رویت شویدی.بیاپه دی حدیث باندي دعلامه ابن تیمیه خاص شاګردعلامه ذهبي چې په اسماءالرجالوکي الله تعالی دلوی علمیت خاوند ګرځولي دی هغه په میزان الاعتدال کې لیکلي دي چې داحدیث په ډیروسندونوسره راغلی دی هغه تول سندونه ضعیف دي خوپه اعتبار دمجموع طرقوسره مرتبی دحسن ته رسیږي اوقابل داستدلال دی.

علامه سیوطي هم په مناهل الصفا في تخریج احادیث الشفا کې لیکلي دي چې اسنادهذالحدیث باعتبار مجموعة الطرق اسناد حسن.علامه سمهودي هم وفاءالوفاکي همداخبره لیکلې ده.[2] نورودیروعلماو په دي اړوند تحقیقات کړیدي درسول اللهﷺ دزیارت له ثبوت سره يي دي ته غوره دمستحباتوهم ویلي دی.[3]

## دمحراب بیان.

بعضی علماو لیکلي دي چې درسول اللهﷺ په زمانه کې محراب وه منهم علامه ابن الهمام في فتح القدیر،وعلامه محمدزاهد الکوثري في التعلیق اعلام لاریب ،دوی دخپلي مدعی لپاره له یوه حدیث شریف څخه استدلال کوي چې هغه حدیث امام بیهقي په خپل کتاب سنن الکبری کې له حضرت وائل بن حُجر څخه روایت کړیدی هغه وایي چې زه رسول اللهﷺ په داسي حالت کې ورغلم چې نبي کریمﷺ پورته شو دلمانځه لپاره اویه محراب کې ودریده.[4] له دي حدیث شریف څخه دوی استدلال کوي چې درسول الله ﷺ په زمانه کې محراب وه.علامه ترکماني په الجوهر النقي کې لیکلي دي چې داپه احادیثو دسنن الکبری باندی تحقیق دی چې داحدیث ضعیف دی،علامه هیثمي هم مجمع الزوائد

---

1- عن ابن عمررضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من زار قبري وجبت له شفاعتي-شعب الايمان ۶/۵۱- رقم الحديث ۳۸۶۲.

وعن انس بن مالک رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم من زارني بالمدينة محتسباً كنت له شهيدا وشفيعاً يوم القيمة-شعب الايمان ۶/۵۰- رقم الحديث ۲۸۶۰. وعن ابن عمرمرفوعاً:من حج فزارقبري بعدموتي كان كمن زارني في حياتي-شعب الايمان۶/۴۸- رقم الحديث ۳۸۵۹

2-واقل درجات هذالحديث الحسن ان نوزع في صحته لماسياتي من شواهده وتضافيرالاحاديث يزدها قوة حتي ان الحسن قد يرتقي بذالک الى درجة الصحيح.وقال الذهبي:طرق هذالحديث كلها لينة يقوي بعضها لانه مافي رواتها متهم بالكذب-وفاءالوفاء۴/۱۶۸-

3-قال:مشائخنا من افضل المندوبات وفي مناسک الفاسي وشرح المختار انهاقريبة من الوجوب لمن له سعته-(الفوزالكبيربالتوسل بالنبي المنير/۴۷)

4-عن وائل بن حجررضي الله عنه قال:حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم حين نهض الى المسجدفدخل المحراب ثم رفع يديه باالتكبير ثم وضع يمينه على يسراه على صدره-سنن الكبرى للبيهقي۲/۴۶- رقم الحديث ۲۳۳۵

کي لیکلي دي چي داحدیث ضعیف دی اوپه ضعیف حدیث باندي دکوم شي ثبوت نه راځي.په دی اروند ډیروسحققینورایه داده چي درسول الله ﷺ اوخلفاء اربعه و په دورکی محراب نه وه منهمعلامه سیوطي،وعلي القري،وایضاعلامه سمهودي.

په اسلام کي په لومړي ځل باندي حضرت عمربن عبدالعزیزپه دویمه صدی کي محراب جوړکړیدی؛داخبره ډیروعلماو لیکلي ده منهم:علامه سیوطي في اعلام الاریب في حدوث بدعم الحاریب،وعلامه شوکاني في فتح الرباني،وعلامه مقریظي في کتاب الخطط والاثار،وعلامه ابوبکربن ابي شیبه في سننه.

اوځیني حدیثونه هم دمحراب په بدي کي راغلي دي سنن الکبری کي امام بیهقي یو حدیث روایت کړیدی چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي:اتقواهذالمذابیح یعني الحریب.[1] علامه سیوطي ددي حدیث په سند کي لیکلي دي چي یاخوصحیح دی دعلامه ابي ذرعه په رایه اویاهم حسن دی دعلامه ابن عدي په رایه بناپه هرتقدیر دعلامه سیوطي رایه داده چي داحدیث داستدلال وړدی.اوعلامه ناصرالدین الباني هم په السلسلة الاحادیث الضعیفه کي لیکلي دي چي داحدیث قابل داستدلال دی.همدارازعلامه شوکاني په الفتح الرباني کي لیکلي دي چي داحدیث حسن لغیره دی لنده داچي په دی اړوند دجمهورو علماو رایه داده چي داحدیث داستدلال وړدی.

اوبل حدیث شریف چي داهم په ددي دلیل دی چي درسول اللهﷺ په دور کي محراب نه وه هغه دحضرت عبدالله بن مسعودرضی الله عنه څخه روایت دی چي مصنف ابن ابي شیبه اومسنددبزارکي روایت شویدی هغه داچي حضرت عبدالله بن مسعود به دابده ګڼله چي په محراب کي لمونځ وکړي.اصل کي داحدیث موقوف دی اوله مراسیلو دابراهیم نخعي څخه دی خوپه مرتبه دمرفوع کي دی.[2] ددی حدیث په اړه علامه سیوطي لیکلي دي چي داحدیث صحیح دی،علامه هیثمي لیکلي دي چي رجاله ثقات اوعلامه ناصر الدین الباني لیکلي دي چي اسناد هذالمرسل اسناد صحیح.ابراهیم النخعي الکوفي تابعي دی دنوموړي مراسیل داکثره علامو په نزد داستدلال وړدي اودی خپله به هم په محراب کي نه دریده.

---

۱ - عن عبدالله بن عمرورضي الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اتقوا هذالمذابح یعني المحاریب-سنن الکبری للبیهقي- ۲/۶۱۶ رقم الحدیث ۴۳۰۴

۲ - عن ابراهیم قال:قال عبدالله رضي الله عنه اتقوا هذالمحاریب وکان ابراهیم لایقوم فیها-مصنف ابن ابي شیبه کتاب الصلوة باب الصلوة في الطاق- رقم الحدیث ۴۷۰۰

اوپه دي اړوند یوبل حدیث شریف هم په مصنف ابن ابي شیبه کي روایت شویدی دحضرت موسی الجهني په روایت سره چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي چي:لایزال هذه الامة بخیر مالم یتخذوا في مساجدهم مذائح کمذائح النصاری.[1] ژباړه:زما امت به پخیر باندي وي ترهغوچي دوی په خپلوجوماتونوکی مذانح نه وي جوړکړی لکه مذانح دنصاری و.علامه سیوطي لیکلي دي چي داحدیث هم مرسل دی واسنادهذالمرسل اسناد صحیح.

اویوبل حدیث شریف هم په مصنف ابن ابي شیبه کي روایت شویدی چي:ان اشراط الساعة ان تتخذالمذانح في المساجد.[2] ژباړه:دقیامت له علامو څخه یوه داده چي جوماتونوکي به محرابونه جوړشي.نور هم دمحراب دبدی په اړه په مصنف ابن ابي شیبة،مصنف عبدالرزاق اوسنن الکبری دامام بیهقي کي له صحابه واوتابعینوڅخه ډیر آثارنقل شویدي چي داټول په دي باندی دلالت کوي چي درسول اللهﷺ په زمانه کي محراب نه وه.

بیاځینوعلماو لیکلي دي چي له دی حدیثونوڅخه محراب ندی مراد منهم علامه مناوي وعلامه ابن الاثیرندوی وایي چي له مذانح اومذابح څخه محراب ندی مراد خوداخبره نده صحیح ځکه چي په احادیثوکي کوم مذابح لفظ راغلی دی له هغه څخه همدامحرابونه مرادی.علامه شوکاني لیکلي دي چي غوږه داده چي په جومات کی محراب جوړنشي اوعلامه ناصرالدین الباني لیکلي دي چي دمحراب جوړول بدعت دي.

زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي یوه مسئله راغلي چي امام به دننه په محراب کي نه دریږي که امام له محراب څخه دباندي ولاړوي اوسجده په محراب کي کوي دابیا جوازلري.علامه شرنبلالي دامسئله په نورالایضاح کي دلمانځه په مکروهاتوکي بیان کړیده نوموړي لیکلي دي چي: وقیام الامام في المحراب؛یعني داهم مکروه ده چي امام په محراب کي ودریږي؛اوپه مراقي الفلاح کی چی داهم دعلامه شرنبلالي کتاب دی اوپه نورالایضاح باندي شرحه ده هلته یي لیکلي دي چي ځکه به امام په محراب کي نه دریږي چي دامام حالت له خلکوڅخه پټ نشي.خونوموړي په خپل بل کتاب امدادالفتاح کي لیکلي دي چي امام به په محراب کي ځکه نه دریږي چي مشابهت له اهل کتابوسره راځي؛همداخبره علامه طحطاوي هم په شرحه دمراقي الفلاح کي لیکلي ده.اوعلامه ابن الهمام په فتح

---

[1]- مصنف ابن ابي شیبة کتاب الصلوة باب الصلوة في الطاق- رقم الحدیث ۴۶۹۹

[2]- عن ابي ذر رضی الله عنه قال:من اشراط الساعة ان تتخذالمذانح في المساجد-مصنف ابن ابي شیبة کتاب الصلوة باب الصلوة في الطاق- رقم الحدیث ۴۷۰۱

القدیر کی لیکلي دي چي امام به په محراب کی دننه نه درېږي که له محراب څخه دباندی ودرېږي اوسجده په محراب کي وکړي دابیا جوازلري خودازدحام په صورت کي دننه په محراب کی هم دامام دریدل جائزدي.ردالمحتاراوفتاوای تاتر خانیه کي لیکلي دي چي که له محراب پرته امام په داسی حال کی ودرېږي چي له مقتدیانوسره برابروي داهم جوازنلري[1] خکه چي دادول عمل دامت له تعامل څخه خلاف کاردی تعامل دامت سلفاعن خلف داسي راغلی دی چي امام به له مقتدیانوڅخه وړاندی درېږي.

اوخینی نور شیان هم علماوپه محراب کي ناجائزبللي دي دمثال په دول محراب بایسته کول،په محراب دقرآن ایتونه لیکل اوداسي نور.علامه برهانپوري په دې اړوند له امام محي السنة څخه نقل کریدی چي هغه وایي:تاسودخپلوجوماتونودبنکلا لپاره دیهودواوانصاری و کړنلاره مه تعقیبوی خکه هغوی چي کله دخپل دین تحریف کوي نوبه خپلو جوماتونوکي آیني لګوي .[2] په دي اړه که احادیثوته کتنه وشي نوښایي چي په جوماتونو کي له سره محراب جوړنشي ښایي که څوک جوړوي هم له یوه څخه دي زیات نه جوړوي.والله اعلم باالحال.

## یوځل چي جومات جوړشي هغه بیا له تحت الثری څخه ترفوق العناپوري جومات دی:

دیروسیمو کي داسي عادت وي چي خلک له جومات څخه لاندي اویاپه جومات برسیره دوکانونه یاهم نورشیان جوړوي او دجومات ملاامام ته کورورباندي جوړوي آیادایه شرعه کي جوازلري؟په دي اړوند علامه شامي ردالمحتارکي لیکلي دي اودرالمختارکي هم دامسئله ذکرده چي یوځل جومات جوړکړای شي بیا له تحت الثری څخه آن ترفوق العناپوري جومات دی [3]

حتی چي خینوکتابونوکي لیکلي دي چي جومات ته به څوک نږدي دوکانونه یاهم کورنه جوړوي خکه چي بیا دجومات بي حرمتي کیږي.کذافي البحرالرائق،وفتاوی الهندیه.خوعلامه اشرف علي په امدادالفتاوی کي له علامه لکنوي رڅخه نقل کریدی چي هغه وایي که دضرورت په بنا له جومات

---

[1] - السنة ان يقوم الامام ازاء وسط الصف....واظاهر ان هذافي الامام الراتب لجماعة كثيره لئلايلزم عدم قيامه في الوسط-ردالمحتاركتاب الصلوة مطلب في كراهية قيام الامام في غيرالمحراب- ٣/٣٧٢

[2] - قال امام محي السنة في شرح السنة كانت اليهود والنصارى يزخرف المساجد عندماحرفوا امردينهم وانتم يتصرون الى مثل حالهم في المراة باالمساجدوتزينها كذافي نجم العلم شرح عين العلم للعلامه برهانپوري١/٢٩٨- مخرج حماسي.

[3] - لانه مسجد الى عنان السماء وكذا الى تحت الثرى-ردالمحتار٢/٥١٧- طبع مكتبه فريديه پشاور.

څخه لاندې یابرسیره دوکانونه یاهم نورې ودانۍ جوړې شي څه پروانه کوي نوموړي داقیاس دبیت المقدس په جومات باندې کړیدې دبیت المقدس دجومات لاندې تاخانې دي نوموړي لیکلي دي چې دسلفو په زمانه کې هم داتاخانې موجودې وې خوهیڅ چاهم ردندې وربانديې کړې نودادي دجواز لپاره یودلیل کیدلای شي اوله نوروکتابونوڅخه داسې معلومیږي چې له جومات څخه لاندې اوبانديې ودانۍ جوړول جوازنلري خویوه خبره کتابونوکې شته هغه داچې که یوڅوک دخپلې ځمکې دوقف په حالت کې داورسره شرط کړي چې زه به ددې جومات لاندې یاهم برسیره دوکانونه یاهم کورجوړوم دابیا باالاتفاق جوازلري.

## په جوماټ کې دننه دالوتونکوځالې:

کچیرې په کوم جومات کې دننه مرغان ځالې جوړې کړي آیادهغورنګول جوازلري؟ علماو ایکلي دي چې که هګۍ یې اچولې وي یابې بچیان زیږولي وي بیا یې دمرحمت په خاطر رنګول نه دي جائز.خوپرته له دې یې رنګول غوره دي څکه چې شتون یې په جومات کې دننه دجومات پاک والي ته ضرر رسوي.

اوکه دجومات پاک والي ته یې ضررنه رساوه بیایې رنګول ښه کارنده.کذافي الشامي ،وطحطاوي علی الدرالختار، واعلاءالسنن،وبحرالرائق.

## دلمانځه دوختونوبیان:

پنځه وخته لمونځ فرض دی:سهار،ماسپښین،مازدیګر،ماښام اوماخوستن.

دسهاردلمانځه وخت:له صبح صادق څخه پیل دلمرترختلوپورې دی.

دماسپښین دلمانځه وخت:دامام ابوحنیفه په مذهب له زوال څخه پیل له اصلي سیوري پرته دسیوري تردوه چنده کیدلوپورې دي.[1]خودجمهورویه مذهب چې امام ابویوسف اوامام محمد هم ورسره ملګري دي دسیوري تریوچند کیدلو پورې دی.په دې اړه زمونږداکثره احنافوفتوی دامام صاحب په مذهب باندې ده خوځینواحنافودجمهوررایه مختاره کریده؛ خوترټولوښه خبره مفتي غلام قادر اومفتي فریدکریده هغه داچې احتیاط په دې کې دی چې دسیوري له دوه مثله کیدلوڅخه وراندې

---

[1] - وفي قول ابي حنيفه رحمه الله ان يصيرظل كل شئ مثليه-(النتف في الفتاوی/٣٨)

لمونځ اداکړی شي خوکله که ناوخته شي بیا ترمثلینویوری هم جوازلري؛ورعه اونفوی په دی کی ده چې وړاندي له مثلینوڅخه اداشي کماقال:علیه السلام دع مایریبک الی مایریبک.[1]

دمازدیگر دلمانځه وخت:له مثلینوڅخه پیل دلمر ترلویدلوپوری دی.[2]

دماښام دلمانځه وخت:دلمر له لویدلوڅخه پیل ترغروب دشفقه پوری دی.[3] خوپه شفق کی دعلماو اختلاف شته دجمهوروعلماو په نزدله شفق څخه حمرة(سوروالی)مراددی خوزمونږدامام صاحب په مذهب له شفق څخه سفرة(سپین والی)مراددی کوم چې وروسته له سوروالي څخه په اسمان کي پيداکيږي، چې دادحضرت ابوبکرالصدیق رضي الله عنه مذهب هم دی اوهمدا زمونږ احنافومفتی به مذهب هم دی علامه قتل بغا الحنفي په تصحیح دقدوري کی لیکلي دي چې داکثرومحققینواحنافوپه همدی باندی فتوی ده منهم ابن نُجیم في البحرالرائق وعلامه شامي في ردالمحتار.[4] خوبعضواحنافو دجمهورو مذهب اختیارکړیدی منهم شرنبلالي في نورالایضاح وایضاً امام ابي جعفرالطحاوي.

اودماخوستن دلمانځه وخت:له شفق څخه پیل ترصبح صادقه پوری دی.[5]

اوزمونږداحنافودامذهب دی چې بین البین وخت نشته خوشوافع وایي چې ددوختونوترمینځ یوڅه فاصله اوواټن شته.

## دماښام دلمانځه په وخت کې تحقیق:

علماو دعلم هیئت لیکلي دي چې کله لمر په کوم خای کی پریوځي صباچې کله بیالمر هغه خای ته رسیږي نودلته (۳۶۰)درجي اوښتي وي چې هره درجه څلوردقیقي ده نولي (۳۶۰)درجي (۲۴)ساعته کیږي.کله چې لمرغائب شي (۱۸) درجي وروسته په اسمان کي دلمرلویده لوري ته

---

[1] - رواه البخاري۱/۲۷۵- وایضاً رواه الترمذي۲/۷۸- .

[2] - اول وقته لاخلاف فیه (علی حسب هذه الاختلاف)وآخروقته الی غروب الشمس والغروب لیس من وقته-(النتف/۳۸).

[3] - اول وقته غروب الشمس واخروقته الی غروب الشفق وفي الشفق اختلاف قال:ابویوسف ومحمد وسائرالصحابه والشافعي وابو عبدالله هوالحمرة-(النتف/۳۸)

[4] - الشفق البیاض وهومذهب الصدیق ومعاذبن جبل وعائشة رضي الله عنهم-ردالمحتار۲/۲۳-

[5] -عن ابي هریرة رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان للصلوة اولا وآخرا واول وقت الظهر حین تزول الشمس واخر وقتها حین یدخل وقت العصر،وان اول وقت العصرحین یدخل وقتها حین تصفر الشمس،وان اول وقت المغرب حین تغرب الشمس وان آخر وقتها حین یغیب الشفق،وان اول وقت العشاء الاخرة حین یغیب الافق وان آخر وقتها ینتصف الیل،وان اول وقت الفجر حین یطلع الفجر وان آخروقتها حین تطلع الشمس-جامع التر منی۱/۳۹-

سپین الی پیداکیږي چي دا(۱۸)درجي یوساعت اودولس دقیقي کیږي.کذافي التصریح ومعارف السنن للعلامه بنوري.(۱) وهیئة الکبری للعلامه موسی خان بازي ومنهاج السنن للعلامه مفتي محمدفرید.کله چي داشفق غائب شو تر ی وروسته دماخوستن دلمانځه وخت پیل کیږي.

دسپین اوسورشفق ترمینځ ... درجي توپیردی لومړی سورشفق وي چي په دي باندی دجمهورو دمذهب فتوی ده تردی وروسته سپین شفق راځي چي په دي باندي زمونږداحنافودمذهب فتوی شویده نودجمهوروعلماو په مذهب دماښام دلمانځه پوره یوساعت وخت دی اوزمونږ ره احنافوپه مذهب دماښام دلمانځه وخت یوساعت اونولس دقیقي ده.خلکوکي مشهوره ده چي دماښام دلمانځه وخت ډیرکم دی خوداخبره څکه نده سمه چي له یوه ساعت څخه خوبیخي کم ندی اوزمونږاحنافوپه مذهب خو لایوساعت اودولس دقیقي دی خو ورعه اوتقوی په دي کي ده چي له یوه ساعت څخه مخکي وشي اوکه ضرورت وي بیاتر یوه ساعت اونولسودقیقوپوري هم جائزدی.مفتي فریدصاحب داخبره لیکلي ده اودایي هم لیکلي دي چي بنایي دماخوستن آذان له ماښام وروسته تریوساعت اودولسودقیقوپوري ونشي.

## دسهاردلمانځه په وخت کي تحقیق:

دسهار دلمانځه وخت له صبح صادق څخه پیل کیږی چي دصبح صادق اوصبح کاذب ترمینځ هم دری درجي توپیردی چي دادری درجي دولس دقیقي کیږي.اودلمرختلواوصبح کاذب ترمینځ (۱۸) درجي توپیردی چي یوساعت اودولس دقیقي کیږي خوپه غرنیوسیموکي دلمرختل له نوروسیموسره توپیرلري دمثال په ډول:په افغانستان کي تقریباً دوه ساعته وروسته له صبح کاذب څخه لمرراخیږي.

علامه زبیدي په خپل کتاب اتحاف کي لیکلي دي چي دصبح صادق اوصبح کاذب ترمینځ دوه منزلي توپیردی. لمراوسپوږمی خپل منزلونه لري دمثال په ډول:سپوږمی دیزخلسم په شپه دماښام په پیل کي راخیږي خوصباته بیا له هغه وخت وروسته راخیږي تر چي په یوه منزل کي راوخیږي صباته بیا په بل منزل کي راخیږي نوځینو علماو لیکلي دي چي دصبح صادق اوصبح کاذب ترمینځ هم دوه منزله توپیراوفرق دی.

---

(۱)- انه عرف بالتجربة ان اول الصبح واخرالشفق انمایکون اذاکان انحطاط الشمس ای من الافق ثمانیة عشرجزء من دائرة الارتفاع الشمس المارة بمرکزها....واذااقسمنا(۳۶۰)جزء علی(۲۴)ساعة علمنا ان الشمس تقع في خمس الساعة الواحدة-معارف السنن۲/۲۸-

## حضرت جبرئيل عليه السلام نبي كريم ﷺ ته امامت كريدى:

حديث شريف كي راځي چي حضرت جبرئيلؑ په رسول اللهﷺ ته امامت كاوه.[۱]

زمونږ احنافو،مالكيانواوحنابله و دامذهب دى چي دمفترض اقتداء ترمتنفل پورى نده صحيح اوحديث شريف كي راځي چي جبرئيلؑ دوه ورځي نبي كريمﷺته امامت وكړ؟ددى لپاره علماوكڼ شميرځوابونه كړيدى يوځواب علامه بنوري په معارف السنن كي كړيدى هغه وايي جبرئيلؑ چي كوم امامت نبي كريمﷺ ته كړيدى هغه په عالم دمثال كي وه په عالم ددنياكى نه وه.[۲]

حجة الله البالغه كي علامه شاولى الله هم په دي اړه مكمل تحقيق كړيدى حوترتولووبه ځواب قاضي ابوبكربن العربي په عارضة الاحوذي كي كړيدى چي همداځواب علامه عيني هم نقل كړيدى هغه داچي هلته جبرئيلؑ متنفل نه بلكه مفترض وه ځكه چي موطا دامام مالک كي بو حديث شريف راځي چي جبرئيلؑ وايي:بهذا امرت.[۳] يعني ماته الله تعالى په دى باندى امركړيدى.نودلته جبرئيلؑ هم مامور وه دالله تعالى له لوري امرورته شوى وه نواقتدا دمفترض په مفترض پسي راغله.

## پربښتي اوپيري پسي لمونځ:

آياپيريانو اوملانكوپسي لمونځ صحيح كيږي اوكنه؟په دي اړه علامه لكنوي مستقل كتاب جوړكړيدى چي نوم يي دى «تنويرالفلک في حصول جماعة بجن الملک»په دى كتاب كي يي ليكلي دي چي

---

[۱] - اخبرني ابن عباس رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:امني جبريل عليه السلام عندالبيت مرتان فصلى الظهر في الاولى منهاحين كان التي مثل الشراک،ثم صلى العصر حين كان كل شئ مثل ظله،ثم المغرب حين وجبت الشس وافطرالصائم،ثم صلى العشاءحين غاب الشفق،ثم صلى الفجرحين برق الفجر وحرم الطعام على الصائم،وصلى المرة الثانية الظهرحين كان ظل شئ مثله لوقت العصر،ثم صلى العصر حين كان ظل كل شئ مثليه،ثم صلى المغرب لوقته الاول،ثم صلى العشاء الاخر حين ذهب ثلث الليل،ثم صلى الصبح حين اسفرت الارض،ثم التفت الى جبرئيل فقال:يامحمدهذاوقت الانبياء من قبلک والوقت فيمابين الوقتين-جامع الترمذي۱/۳۸-

[۲] - ان امامة جبرئيل للنبي صلى الله عليه وسلم كان مثاليأفي عالم المثال لم يكن امرامشاهداًمحسوسا للصحابة في عالم الشهادة،وانماكان رسول الله صلى الله عليه وسلم اماما للصحابة في عالم الحس،والناس اقتدوابالنبي صلى الله عليه وسلم فكانت امامة جبرئيل امرامثاليا تكوينيأفي الحقيقة-معارف السنن۲/۴-

[۳] - ان المغيرة بن شعبة اخرالصلوة يوماًوهوبالكوفة فدخل عليه ابومسعودالانصاري فقال:ماهذايامغيره؟اليس قدعلمت ان جبرئيل صلى الله عليه وسلم نزل فصلى فصلى رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم صلى فصلى رسول الله عليه وسلم....ثم قال:بهذا امرت-موطأ امام مالک كتاب وقوت الصلوة رواية ابي مصعب الزهري۱/۳- رقم الحديث ۱

پیري پسي لمونځ کول صحیح دي.علامه شبلي په خپل کتاب آکام امرجان کي ددی لپاره باب ځانګړی کړیدی چي پیریانو پسی لمونځ صحیح کیږي.(۱)

همداراز علامه سیوطي هم لقط المرجان کتاب کي لیکلي دي چي:که پیریان مسلمانان وي نولمونځ وروپسي کیږي ځکه هغوی هم دالله تعالی له لوري مکلف دي؛علامه ابن نجیم هم په الاشباه والنظائر کتاب کي همداخبره لیکي ده.

اوپرښتي پسي هم اقتداکول جوازلري ځکه چي رسول الله ﷺ په حضرت جبرئیل پسي اقتداکړی ده.علامه سیوطي له کتاب الجنیات دعلامه سبوکي څخه نقل کړیدی چي هغه وایي کچیری یوڅوک په دښته اصحراکي آذان وکړي اولمونځ په جمعه باندي وکړي بیاقسم وکړي چي ما په جمعه باندی لمونځ کړیدی پیریانو اوملکوته می جمعه ورکړي نودی په دي خپل قسم کي نه ځانثیږي.لنده داچي پیري اوپرښتي دواړوپسي لمونځ صحیح کیږي.

## په لمانځه کي مراوحه کول:

مراوحه دي ته ویل کیږي چي یوڅوک په لمانځه کي په خپله یوه پښه دمه کوي کله یې چي هغه پښه ستړي شي بیاپه بله پښه دمه کوي.په مونږاحنافوکي خیني علماءدی ته مکروه وایي اوخیني علماءداستحباب مرتبه ورکوي یوله هغوعلماوڅخه چي مراوحه مستحبه ګڼي علامه طحطاوي دي نوموړي په شرحه دمراقي الفلاح کي لیکلي دي چي:مراوحه له مندوباتوڅخه ده.

بیاددي دواړوقولونوترمینځ علماداسي تطبیق کوي چي مکروه په هغه صورت کي ده چي ژر،ژرپه خپله یوه اوبله پښه دمه کوي اوکه لږپه خپله یوه پښه دمه کوي بیاچي هغه ستړی شي په بله پښه دمه کوي دابیاڅه باک نلري.

نسايي شریف کي امام نسايي یوباب راوړیدی(باب الصف فی الصلوة)په لمانځه کي دپښوجخت نیولوته صف ویل کیږي هلته یي یوحدیث شریف روایت کړیدی چي عبدالله ابن مسعودرضي الله عنه

---

۱- هل تصح الصلوة خلفه؟فقال نعم لانهم مكلفون والنبي صلى الله عليه وسلم مرسل اليهم-(آكام المرجان-الباب السادس والعشرون في حكم الصلوة خلف الجني/۷۴)

وايي: چي کاشکي يې مراوحه کړې وی له دی څخه چي صف يې کړيدی.[۱] له دي حديث څخه حيني علمااستدلال کوي چي مراوحه مستحب ده.

خوعلامه زکرياکاندهلوي په الفيض السماوي کي ليکلي دي چي ښايي چي په فرضي لمونځونوکی مراوحه ونکړای شي اوپه نفلي لمونځونوکي يی کول غوره دي.اوعلامه شامي هم په مقدمه دردالمحتارکی په دي اړوندمکمل تحقيق کړيدی ببايی ليکلي دي چي امام صاحب به هم په لمانځه کی مراوحه کوله؛نوپه نفلي لمونځونوکی مراوحه کول بلکل جوازلري.[۲]

## په لمانځه کي ددريدوپرمهال دپښوترمينځ فاصله:

په دي اړوند زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي ليکلي دي چي په لمانځه کي به دقيام پرمهال ددواړوپښوترمينځ څلور کوتي فاصله وي.اوشافعيان وايي چي يوه لويشت به وي.والحق احق ان يتبع:خوپه دي اړوند حقه خبره داده چي په احاديثوکي ددي لپاره څه تقديرنشته خويوه خبره ده هغه داچي عبدالله بن مسعودرضي الله عنه وايي چي:ومارأه المسلمون حسنا فهوعندالله حسنا.[۳] يعني کوم شی چي مسلمانان غوره ګڼي هغه دالله تعالی په نزدهم غوره وي.علماوليکلي دي چي هرڅوک به دخپل ضرورت په اندازه دريږي په تنګ حالت کي به له څلوروګوتوڅخه کم نه وي اودغت والی پرمهال به دخپل حال مطابق دريږي.

په بخاري شريف کی يوحديث شريف راغلي دحضرت نعمان بن بشيرپه روايت سره هغه وايي چي:کنانلزق الکعب بالکعب الخ.[۴] داحديث په ډيروکتابونودعلم احاديثوکي روايت شويدی منهم:صحيح ابن خزيمه،مسنداامام احمدبن حنبل،سنن ابي داودالسجستاني وسنن الکبری للامام بيهقي.

غيرمقلدين له دي حديث شريف څخه استدلال کوي چي په لمانځه کي به دقيام پرمهال بيدی له بيديوسره جنګوي هغوی ددي حديث شريف په ظاهر باندی عمل کوي؛خومونږوايوچي له دي حديث

---

[۱] - عن عبدالله رضي الله عنه انه رای رجلاًقدصف بين قدميه قال:اخطاالسنة،ولوراوح بينهما کان اعجب الی-سنن النسايي۱/۴۶۳- رقم الحديث ۹۶۹

[۲] - وتفسيرالتراوح ان يعتمد المصلي على قدم مرة وعلى الاخرى مرة اى مع وضع القدمين على الارض....وقديقال للامام مقصدحسن:وفي ذالک نفي الکراهة عنه-ردالمحتار۱/۱۲۶-

[۳] - المستدرک على الصحيحين۳/۷۸- -ورواه احمد في مسنده۱/۳۷۹-

[۴] - سمعت نعمان بن بشيررضي الله عنه يقول:قال النبي صلى الله عليه وسلم لتسوّن صفوفکم اوليخالفن الله بين وجوهکم رأيت الرجل منايلزق کعبه بکعب صاحبه-صحيح البخاري۱/۱۰۰-

ښخه مساوات مراددی اودلته په دي حدیث کي دوه لفظه نورهم زیات دي تاسي خویواخي ددي حدیث په یوه جز باندی عمل کوی اوپه نورحدیث باندي عمل نه کوی؟مکمل حدیث په ابوداودشریف کي په دي تول دی چي:سمعت نعمان بن بشیریقول:اقبل رسول الله علی الناس بوجهه فقال:اقیمواصفوفکم ثلاثا والله لتقیمن صفوفکم اولیخالفن الله بین قلوبکم؛قال:فرأیت رجل یلزق منکبه بمنکب صاحبه،والرکبة بالرکب صاحبه،وکعبه بکعبه.(١)

ژباړه:حضرت نعمان بن بشیروایي چي رسول اللهﷺ خلکوته مخامخ شواوویی فرمایل چي تاسي خپل صفونه مخ برابرکړی زمادی قسم په الله تعالی وي چي یابه تاسي خپل صفونه برابروی اویابه الله تعالی ستاسوپه زړونوکي مخالفت پیداکوي؛نوموړی وایي چي ماصحابه ولیدل چي خپلي اوږی یی له یوبل سره یوځای کولی،خپل زنګنونه یي دخپلوملګروله زنګنونوسره یوځای کول اوخپلي بیدی یي دخپلوملګروله بیدیوسره سرینولی.دلته په دي حدیث شریف کي دوه جزه نورهم ذکرشویدی چي هغه داوږواوزنګنونوله یوبل سره سرینول اویوځای کول دي.

غیرمقلدینوته مونږوایوچي تاسي خوددي حدیث شریف په یوه جزباندي عمل کړیدی اوپه نورحدیث موعمل ندی کړی؛که له دي حدیث شریف ښخه حقیقت مرادشي نودوه کسان هم داسي نشي دریدلای چي خپله اوږه دملګري له اوږي سره،خپل زنګون دهغه له زنګون سره،اوخپلي بیدی دهغه له بیدیوسره برابری کړي؛ځکه چي دیوه سړي به قدجګ وي اودبل به ټیټ وي یابه دلته جګ سړی خپل خان راټیټوي اویابه ټیټ سړی دکوم شي په واسطه خپل خان ورپورته کوي تردي چي دداوږواوګي سره برابری شي.که ځوک ددي حدیث په ظاهرباندی عمل کوي نوبیابه دحدیث په ټولواجزاوعمل کوي اوحال داچي په ټولواجزاوباندي عمل کول ناممکن دي.داځرنګه کیدلای شي چي دحدیث په یوه جزدي عمل وشي اونورحدیث دي متروک شي؟سره له دي چي ټول یوحدیث شریف دی.

مونږاحناف وایوچي له دی حدیث ښخه حقیقت ندی مراد بلکه مساوات ورښخه مراددی.اویوبل حدیث شریف کي راځي چي تاسي دشیطان سوري بندکړی نوکله چي یوځوک خپلي بیدی دملګري له بیدیوسره یوځای کړي نودلته خودپښوترمینځ ښه دیرازادوالی راځي چي په دي سره دشیطان لاره نوره هم ښه ازادیږي.والله اعلم

---

(١)- سنن ابی داود باب تسوية الصفوف ١/٩٧-

# دتراویح لمونځ:

په دې باندې دعلماؤاجماع راغلی ده چې تراویح شل رکعاته دي.[۱] غیرمقلدین وایي چې دتراویحولمونځ اته رکعاته دی شل رکعاته نه دی؛دوی وایي چې نبي کریمﷺ اته رکعاته کړیدی؛دوی په مونږاعتراض کوي چې شل رکعاته خوعمررضي الله عنه کړیدي رسول الله ﷺ شل رکعاته ندي کړي نوتاسي ولې درسول اللهﷺ اقتدانه کو چې دعمررضي الله عنه اقتداکوی؟ مونږورته ځواب کووچې رسول اللهﷺ خودرې شپې تراویح کړیدي نوتاسي ولې توله روژه کې تراویح کوی؟توله میاشت کې خوتراویح کول دحضرت عمر اونوروصحابه وعمل دی.[۲]

داځرنګه کیدلای شي چې یوځای دصحابه واتباع کوی هغه داچې توله روژه کې تراویح کوی اوبل ځای بیادهغوی خلاف کوی.اوبل داچې په دې شلورکعتونوباندې دټولوصحابه واوټولوعلماؤاجماع راغلی ده چې داهم څه وړه خبره نده.[۳] اوس مهال هم په دواړوحرمینوکې شل رکاته تراویح کیږي

خویوه خبره چې دیادوني وړده هغه داچې دتراویحوپه لمانځه کې دځلورورکعتونوڅخه وروسته دراحت لپاره کیناستلوته ترویحه ویل کیږي کله چې یوڅوک ځلورکاته تراویح وکړي بیابه وروسته ترهغه لږڅه دتفریح لپاره کږخیدا کوي. ځراوس علماء ددی لپاره چې خلک له جوماتَ څخه دباندې لاړنشي څکه چې بیایي بیرته راجمعه کول ګران دي ترویحه په دې دول کوي چې تول خلک په خپلوځایونوباندې کیني دقرانکریم تلاوت یاهم نور څه اذکاروایي که بیخي ونه ویل شي هم څه باک نلري.

خواکثره خلک(سبحان ذي الملک والملکوت)په ترویحه کې لولي که ددې پرځای کوم بل ذکروکړي هم څه پروانلري خوله دې ټولوڅخه غوره داده چې دقرانکریم تلاوت وکړای شي څکه چې دقرانکریم تلاوت کول مستحب دي اواوریدل یې واجب دي نوپه دې سره به الله تعالی سامعینو(اوریدونکو)ته دواجبوثواب ورکړي.

---

[۱] - عن عبدالرحمن بن عبدالقاري انه قال:خرجت مع عمربن الخطاب رضي الله عنه ليلة في رمضان الى المسجد فاذاالناس اوزاع متفرقون يصلي الرجل لنفسه ويصلي الرجل فيصلي بصلاته الرهط فقال عمر اني ارى لوجمعت هؤلاءعلى القاري واحدلكان امثل ثم عزم فجمعهم على ابي بن كعب-صحيح البخاري-رقم الحديث ۲۰۱۰.

[۲] - فعليكم بسنتي وسنة خلفاء الراشدين المهديين -سنن ابي داود كتاب السنة۲/۶۳۵-

[۳] - وقدواظب عليها عمر وعثمان وعلي رضي الله عنهم -(مراقي الفلاح/۱۸۹)

# صلوة اشراق اوصلوة ضحی:

زمونږه داحنافو مذهب مفتی به خبره داده چي دا واړه لمونځونه مستحب دي؛کذاقال علامه نابلوسي في نهایةالمراد.اوداچي صلوة الضحی څورکته کول پکاردي د دي اړوندعلامه شاولي الله په حجةالله البالغه کي دری اقوال بیان کړيدي دوه رکعتونه،څلور یاهم اته رکعتونه اویاهم دولس رکعتونه؛خوعلامه بنوري په معارف السنن کی لیکلي دي چي زمونږ احنافو په مذهب صلوةالضحی اته رکاته دي که له دی څخه زیات یاکم وشي هم څه باک نلري.اووقت دي لمنځه وخت نه لمرځنلو څخه پیل ترزواله پوري دی.

اوبل اختلاف په دي اړونددادہ چي صلوة الضحی اوصلوة اشراق یولمونځ دي اوکه بیلابیل لمونځونه دي؟علماولیکلي دي چي که څوک یی په لومړي وخت کی وکړي دي ته صلوة الضحی ویل کیږي اوکه لږوروسته وکړای شي دی ته صلوة اشراق ویل کیږي.والحق وماعلیه التحقیق ان هذین الصلوتین صلوة واحد.سره له دی چي دی ته حینی علما دوه لمونځونه وایی کذاقال علامه سیوطي في جمع الجوامع وعلامه علاءالدین في کنز العمال دوی ددی دواړولپاره جلاجلا بابونه ذکرکړیدي.

خوپه مونږ احنافوکي علامه عبدالحق لمعات کي لیکلی دي چي اصل کی دادواړه لمونځونه یولمونځ دی یواځي نوم یی بدل دی که په لومړي وخت کي اداشي صلوة الضحی ورته ویل کیږي اوکه لږوروسته اداشي بیاصلوة اشراق ورته ویل کیږي.نورونورو علماوهم داخبره لیکلی ده منهم:علامه ابن حجر،علامه نابلوسي،علامه کشمیري،علامه کاندهلوي في التعلیق الصبیح وایضا علامه بنوري في معارف السنن.[1]

# دوتړواجبوبیان:

بعضوخلکوکي مشهوره ده چي دوتروپه دریورکعاتونوکي یورکعات فرض دی،دویم رکعات یی واجب دی اودریم رکعات یي سنت دی آیاداخبره صحیح ده؟

په دې اړوند زمونږدفقهي حنفي په بعضوکتابونوکي لیکلي دي لکه:نخب الافکاراوامدادالفتاح چي کله رسول الله ﷺ معراج ته خوت نوابوبکرصدیق ورته وویل:چي هلته به یو رکعات لمونځ زمالپاره کوی نوکله چي رسول الله ﷺ یورکعات لمونځ دابوبکرلپاره اداکړبل رکعات یي دځپل ځان لپاره وکړ،کوم یی چي دابوبکرلپاره کړی وه هغه واجب وه څکه چي امر ورته شوی وه اوکوم یي چي دځان لپاره

[1] - قال الشیخ:ذهب العلما والمحدثون الی ان الصلوة الضحي والصلوة الاشراق واحدة،ان صلاهامتصلة بارتفاع النهار بعدخروج الوقت المکروهة ف (اشراق)وان ترخي قلیلاًف (ضحی)اقول:ویؤید هذاالقول اثرعن ابن عباس کان یقول:صلوة الاشراق هي الصلوة الضحي-معارف السنن۳/۲۶۶.

وکړهغه سنت وه؛وروسته تردي الله تعالی رسول اللهﷺ ته حکم وکړ چې اوس يو رکعات زماليار ه وکره.بياچي کله نبي کريمﷺ په دريم رکعات کي الحمد لله اوسورت ولوستل نودوزخ ورته ښکاره کړای شونبي کريمﷺ چي کله دوزخ وليده نوبي هوشه شوحضرت جبرئيل يې مخ ته اوبه وروشيندلی بيرته نبي کريمﷺ په هوش کي راغی تردی وروسته يې لاسونه غوږونوته پورته کړل دوعايې قنوت يې وويلي نودريم رکعت دالله تعالی لپاره شو.والله اعلم بصحة هذالحکاية.

اوبل دوترواجبوپه رکعتونوکي هم دعلماو اختلاف دی بعضي علماوايي چي وتريورکعات دی،خيني علما وايي چي پنځه رکعتونه دي،کتابونوکي ددې لپاره ځانګړي بابونه ذکرشويدی اوخيني نور علماوايي چي وترواجب وه رکعتونه دي.خوزمونږ داحنافودفقهاء سبعه ومذهب دادی چي وترواجب دری رکعتونه دي.[1]

## له وتروځخه وروسته دوه رکعاته لمونځ په ناستي کول:

خيني خلک له وترواجبوځخه وروسته دوه رکعاته لمونځ په ناستي کوي نوی وايي چي دادنبي کريمﷺ معمول وه.په دي اړه څه اختلاف نشته چي نبي کريمﷺ به دوه رکعاته لمونځ په ناستي کاوه اختلاف په دي کي دی چي آيارسول اللهﷺ علی الدوام دوه رکعاته لمونځ په ناستي کاوه اوکه خيني وختونه؟

په دي اړه علامه عيني ليکلي دي چي بعضي خلک وايي چي رسول الله ﷺ دوه يادری ورځی له واجبوځخه وروسته په ناستي باندي لمونځ کړيدی خوداخبره ځکه نده صحيح چي په حديث شريف کي دکان لفظ راغلی دی چي داپه دوام اواستمرارباندی دلالت کوي؛کان النبي ﷺ يصلي رکعتين خفيفتين بعدالصلٰوة الوتروهوجالس[2]اوصحيح خبره داده چي نبي کريمﷺ په دوام سره دوه رکعاته لمونځ له وترواجبووروسته په ناستي باندي کړيدی.

اوبله داچي خلکوکي مشهوره ده چي له وتر واجبوځخه وروسته دوه رکعاته لمونځ په ناستي باندي کول دتهجدوثواب لري آياداخبره صحيح ده؟په دي اړوند يوحديث شريف په صحيح ابن حبان کي راغي چي داحديث علامه علي قاري هم نقل کړيدی هغه داچي رسول اللهﷺ فرمايلي دي:که څوک په

---

۱- عن علی رضی الله عنه قال:کان رسول الله صلی الله عليه وسلم يوتربثلاث يقرأ فيهن بتسع سور-جامع الترمذي۱/۱۰۶-

۲- عن ام سلمة ان النبي صلي الله عليه وسلم يصلي بعدالوتروركعتين-رواه الترمذي وزادابن ماجه خفيفتين وهوجالس-مشكاة المصابيح - ۱/۱۱۳

سفرکي وي اوتهجدونه نشي راپاخيدلای نوهغه دي دوه رکعاته لمونځ له وتر واجبوڅخه وروسته وکړي هغه دده لپاره دتهجدوثواب لري.(٢)

خوداحديث مطلق نکردی دناستي قيدندی کي لړول شوی.اواشعة اللمعات کی علامه عبدالحق ليکلي دي چي دطالبٌ العلم لپاره هم له وتر واجبوڅخه وروسته دوه رکاته لمونځ ګول دتهجدوثواب لري ځکه چي طالب العلم هم دمسافرپه مرتبه کی وي.ماپه خپله په دی مسئله کي ډيرتحقيق کړيدی خوتر اوسه مي ددی مسئلي لب اولباب ندی راوپيښلي.اوبعضي علما وايي چي رسول اللهﷺ ځکه دوه رکعاته لمونځ په ناستي کاوه چي هغه په اخر دعمرکی سپين ګيری شوی وه هغه يواځي درسول اللهﷺ خصوصيت وه.

اويوبل حديث شريف کی راځي چي نبي کريمﷺ فرمايلي دي:عن عبدالله بن عمر رضي الله عنه عن النبيﷺ اجعلوا اخر صلوتکم وتر... خوددي اوپورتني حديث ترمينځ معارضه راځي؟ددی لپاره علماودانسي ځواب کړيدی چي يو ...ث شريف کي دناستي خبره ده اوبل کی دولاري؛نودلته هغه نهيه دی ته نه شامليږي.

## دقبلي بيان.

په دی اړه علامه مفتي شفيع مستقل کتاب ليکلی دی"تنقيح المقال في التصحيح استقبال"هلته يې ليکلي دي چي په معاصرو آلاتوباندې ...قبلي معلومولولپاره څه اعتبارځکه نشته چي دمسجد نبوي قبله نبي کريمﷺ ته په وحيه باندي ښودل شوي وه.خواوسني معاصرآلات يې په سلوکی لس درجي کږه معلوموي دامنوچي يوه اله ده خوسل په سلوکی داعتباروړنده نوقبله به څه ډول معلوموو؟په دی اړه علامه عيني اوزمونږدفقهي حنفي په ځينونوروکتابونوکي ليکلي دي چي په سمرقند،بخارا اوماوراء النهر کي قبله بين المغربتين ده.(٣)

بين المغربتين دی ته ويل کيږي چي دسرطان دمياشتي په لومړی ورځ اوجدی دمياشتي په لومړی ورځ چي په کوم ځای کی لمرغورځيږي ددی دواړووختونوترمينځ چي کومه فاصله راځي همداقبله

---

١- عن ثوبان قال:کنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم في سفرفقال:ان هذاالسفرجهد وثقل فاذا اوتراحدکم فليرکع رکعتين فان استيقظ والاکانتا له-صحيح ابن حبان٦/٣١٥- رقم الحديث ٢٥٧٧

٢- صحيح البخاري ابواب الوتر ١/١٣٦-

٣- ان الصحابه فتحوا الخراسان وجعلوقبلة اهلها بين مسوى الصيف والشتاءومنهم توفى فجعل قبره اليها من غير انکار من احدهم وکفى باجتماعهم حجة فليزمن اتباعهم في ذالک کذافي البنايه٢/١٤٧- قال في الملتقط حدالقبلة في بلادنابين المغربين/٥١. وفي تنقيح المقال في التصحيح استقبال للعلامه مفتي محمدشفيع/١٠ ان بين المغربين قبلة في السمرقند،وبخاری،وترمذ،ونسف، ومرو وما والاهاجميع بلاد الهندمع رحبهاوقولهم ذالک ذکره في التجنيس والملتقط واماني الفتاوی والبناية من قول ابي منصور ماتريدي. مخرج حماسي.

ده.غوره داده چې همدادنمر لویدلوله خاینوڅخه دوه وهمې خطونه خانته رانږدی کړي بیادی دری ثلثه ورڅخه جوړکړی بیادی دوه ثلثه ښې طرف ته اویوثلث چپ طرف ته ودرېږي که سم په مینځ کې ودرېږي هم ښه باک نلري.دوضاحت لپاره لاندینی نقشې ته وګوری.

نسرطان دمیاشتې لومړی.     دجدي دمیاشتې لومړی.

\ . . /

دوه ثلثه ښې طرف ته.     یوثلث چپ طرف ته.

## دقبلې معلومولودویمه طریقه:

دعلم جغرافې له لحاظه توله دائره(۳۶۰)درجې ده کوم هیوادکې چې ځوک ژوندکوي لومړی به دهغه ځای طول البلد معلوم کړي دبیلګې په ډول: مونږغواړوچې دکابل قبله معلومه کړونولومړی به دکابل طول البلداوبیا دمکې مکرمې طول البلد معلوم کړو،دکابل ښارطول البلدچې څومره شوله هغه څخه به دمکې مکرمې طول البلد منفي کړوحاصل بې چې څومره پاتې شوهغه به په څلوروکې ضرب کړو،حاصل دضرب چې څومره راووت هغه به په ساعتونوباندې تقسیم کړودمثال په ډول:که دضرب حاصل شپېته راشي نودهغه ځای اومکې مکرمې ترمینځ یوساعت توپیردی اوکه حاصل دضرب نوي راشي نودهغه ځای اوبیت الله ترمینځ به یونیم ساعت توپیردی.

نږدې وروسته دی دمې میاشتې په (۲۹)نېټه یاهم دجولای دمیاشتې په(۱۴)نېټه دورځې په دولسوبجوبه بولږکې ودروي ددې ځای اومکې مکرمې ترمینځ چې څومره توپیراوفرق دی هغومره وروسته چې ددې لرګي سیوری هرطرف ته لاړ هماغه قبله ده.

## دسفردلمانځه بیان:

په څومره اندازه سفرکولوباندې یوځوک مسافرګرځي؟په دې اړوند حدیث شریف کې راځي چې دسفراندازه څلوربرده ده.[1]چې یوبردڅلور فرسخه کېږي اویوفرسخ درې میله راځي چې ټول(۴۸)میله کېږي لنده داچې (۱۶)فرسخه دسفرمسافه ده.

[1]-وکان ابن عمروابن عباس یقصران ویفطران في اربعة بردوهوستة عشرفرسخا-صحیح البخاري١/١٤٧-

زمونږ احناف علماءپه دي مسئله کي اختلاف لري؛خومفتی به خبره داده چي ددریوورځواودریوشپوپه اندازه مزل کول دسفرمسافه ده.پهدي اروندهرعالم خپله رایه بیان کریده ځیني علماوایي چي (۱۵)فرسخه،بعضي وايي چي (۱۶)فرسخه، ځيني وايي(۱۸)فرسحه اوځيني . ريي چي (۲۴) فرسخه دسفردلمانځه مسافه ده؛چي دکیلومترپه حساب یي ځیني علما (۹۸) کیلومتره بولي،بعضي علمایي(۹۶)کیلومتره،بعضي يي(۸۲)کیلومتره،اوځیني نوريي(۸۶)کیلومتر د کني.

په مونږ احنافوکي علامه شامي ردالمحتارکي لیکلي دي اوعلامه رشیداحمدپه احسن الفتاوی کي لیکلي دي (۱۸)فرسخه چي(۵۴)میله راځي چي دکیلومترپه حساب(۹۸)کیلومتره کیږي دسفردلمانځه اندازه ده.[1] په مونږ احنافوکي دهندوستان داکثرهعلماورایه لکه:دعلامه ګنګوهي،علامه اشرف علي،علامه شبیر احمدالعثماني،مفتي محمدشفیع اوله دوی څخه پرته دځینونوروحقیقینورایي همدارنګه شافعیانو، موالکواوحنابله ورایه داده چي الفقه علی مذاهب الاربعه کتاب کي نقل شویده هغه داده چي دوی تول وايي چي دسفر دلمانځه مسافه(۴۸)میله ده.

علامه مفتي محمدشفیع په خپل کتاب جواهرالفقه کي په دي اروند مکمل تحقیق کریدی بیایي لیکلي دي چي همدادهندوستان دعلماومفتی به خبره ده چي دوی وايي چي (۱۶)فرسخه او(۴۸)میله چي دکیلومترپه حساب(۸۷)کیلومتره کیږي دسفردلمانځه اندازه ده.

زماپخپله هم دغه رایه ده کني کتابونوکي نورهم مختلف اقوال نقل شویدی:علامه عبدالحمید محمود طهمان په الفقه الحنفي في ثوبه الجدیدکي لیکلي دي چي دسفراندازه(۸۲)کیلومتره ده.اوعلامه وهبت الزحیلي په تفسیرالمنیرکي لیکلي دي چي (۹۶)کیلومتره دسفر اندازه ده خومفتی به خبره زمونږ داحنافوداده چي دسفر اندازه(۸۷)کیلومتره ده.که څوک(۸۷)کیلومتره سفروکړي نودی به په خپل لمانځه کي قصرکوي.

اودسفرموده(۱۵)ورځي ده که څوک له دي څخه زیات وخت په کوم ځای کي تیروي نودی مسافرنه ګڼل کیږي.

## موټروان به په خپل لمانځه کي قصرکوي:

آیاموټروان به مسافرانه لمونځ کوي که مقیمانه؟په دي اروندعلامه رشیداحمدصاحب په احسن الفتاوی کي لیکلي دي چي مفتی به خبره داده چي موټروان به هره ورځ مسافرانه لمونځ کوي.

---

[1] - ثم اختلفو فقیل احدوعشرون،وقیل ثمانیة عشر،وقیل خمسة عشروالفتوی علی الثاني لانه اوسط-ردالمحتار۲/۷۲۶-

## دمسافرلپاره په فرضي لمانځه کې قصرغوره دی:

آيادمسافرلپاره دسفرپرمهال په فرضي لمانځه کې قصرغوره دی اوکه پوره لمونځ کول؟په دی اروندزمونږه احنافومذهب دادی چې مسافربه دسفر پرمهال په فرضي لمانځه کې قصرکوي.[1] علامه بنوري په معارف السنن کې له زادالمعاد دعلامه ابن قيم څخه نقل کړيدی چې هغه وايي چې ددې لپاره په احاديثوکې هيڅ ډول ثبوت نشته چې رسول اللهﷺ دې دسفرپه حالت کې پوره لمونځ کړی وی.نومسافربه پوره لمونځ نه کوي بلکه په خپل فرضي لمانځه کې به قصرکوي.[2]

## په سفرکې دسنتوحکم:

په دې اروندزمونږمحقيقين في المذهب علما وايي چې سنت مؤکد په حالت دسفرکې له مؤکديت څخه راټيټيږي خوله نفلوڅخه يې مرتبه پورته وي؛حودا پرته دسهارلمانځه له سنتوڅخه ځکه چې هغه په حالت دسفرکې هم هماغسې مؤکد پاتې کيږي. بياعلماو ليکلي دي چې که سفردبيرې وي نوسنت دې نه اداکوي اوکه سفرکړندی نه وي بيادې سنت هم اداکوي.

## آيامسافربه په سنتوکې قصرکوي؟:

په دې اروندمحقيقينوعلماو ليکلي دي چې مسافربه دسفرپه حلت کې په سنتوکې قصرنه کوي.منهم:علامه ظفراحمدالعثماني في اعلاءالسنن،وعلامه زکرياکاندهلوي في الفيض السماوي، وعلامه بنوري في معارف السنن.[3]

ديادونې وړده چې:سفرته ځکه سفرويل کيږي چې دادپټتيا په معنی ده،دوضاحت په معنی هم راځي لکه تفسيرياداسې نور.

## مسافربه له کوم ځای څخه مسافرانه لمونځ پيل کوي:

کله چې يوڅوک له خپلې محلې څخه دباندې شي نوله همدې ځای څخه به مسافرانه لمونځ پيل کوي.اوکله چې بيرته خپلې محلې ته راستون شي بيابه بيرته خپل لمونځ مقيمانه کوي.زمونږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکې دامسئله ليکلې ده.

---

[1] - فاماالصلوة السفرفهي رکعتان عند الفقهاء(النتف/٥٠)

[2] - وماقاله ابوحنيفه هومذهب الجمهورالصحابة والتابعين،وهومنقول عن عمر،وعلي وعبدالله وجابر وبن عباس وابن عمررضي الله عنهم بل ذکرالماودی ان ابن مسعودکان يری القصرفرضاً...تواترت الاخباران رسول الله صلي الله عليه وسلمکان يقصرفي اسفاره حاجا اومعتمرا اوغازيا،وفي الهدي لابن قيم انه لم يثبت عنه صلی الله عليه وسلم انه اتم الرباعية في سفره- معارف السنن٣/٤٥٤-

[3] - ولاکني لااری واحدمنها بل السنة القصر وترک تنفل ومراده النافلة الراتبه...وقوله:هذايدل على ان القصريأتي اداءالسنن.معارف السنن٣/٤٦٩-

## دجُمعي دلمانځه بيان:

دجُمعي ورځ په اسلام کي يوه له هغوورځوڅخه ګڼل کيږي چي په دې ورځ باندي مسلمانان په دلبيزدول دخپل الله تعالی عبادت کوي.په دې ورځ باندي غسل کول سنت دي خوداغسل(ځان مينځل) ددې ورځي لپاره سنت ده که په دې ورځ کي دلمانځه لپاره؟په دې اړوند فتوی داده چي په دې ورځ باندي غسل کول دلمانځه لپاره سنت ده.کذافي معارف السنن للعلامه بنوري.[١]

## احتياطي لمونځ:

زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي دامسئله ليکلي ده چي په کوموسيموکي چي دجُمعي دلمانځه شرطونه نوي موجودهلته دې دجمعي له لمانځه څخه وروسته څلوررکاته لمونځ وکړي ځکه کيدلای شي چي دجمعي لمونځ نه وي صحيح شوی؛دې دول لمانځه ته احتياطي لمونځ ويل کيږي.

شرح الصفرالسعادة کی علامه عبدالحق ددې دول لمانځه په جوازباندي فتوی کريده همدارنګه المحيط البرهاني اوفتاوی العالمګريه کي هم ددې په جوازباندي فتوی شويده؛خوداپه هغوسيموکي چي هلته دجُمعي لمونځ شکمن وي.

په مونږاحنافوکي علامه ابن نُجيم په البحرالرائق کي ليکلي دي چي احتياطي لمونځ ناجائزدی؛ځکه چي کيدلای شي چي عوام ددې دفضيت عقيده وکړي اودجُمعي په لمانځه کي شکمن شي.علامه طحطاوي هم په حاشيه ددرالمختارکي همداخبره ليکلي ده.اوپه فتاوی دارالعلم ديوبندکی هم داحتياطي لمانځه په جوازباندي فتوی شويده.[٢]

په احاديثوکي هم دادول لمونځ څه ثبوت نلري زماپه خپله همدغه رايه ده چي احتياطي لمونځ ندی ثابت.

## له عربي پرته په بله ژبه خطبه ويل:

اياپه پښتوياقارسي ژبه ياهم په مطلق عجمي ژبه باندي خطبه ويل جوازلري؟ په دې اړوند علامه مفتي محمدشفيع مستقل کتاب جوړکړی"الاعجوبه في العربية الخطبة يوم العروبه" نوموړي په دې کتاب کی ليکلي دي چي په عجمي ژبه باپه نوروژبوباندي دجمعي دورځي ياهم داخترونوپه

---

[١]- ثم اختلفو ان الغسل لليوم اوللصلوة،والمختارالثاني-معارف السنن ٣/٣٢١-

[٢]- فتاوای دارالعلم ديوبندکتاب الجمعة ٥/۶-

ورخوباندې خطبه ویل جوازنلري.که څوک اعتراض وکړي چې اصل کې خوخطبه دخلکودافهام اوتفهیم لپاره ده نوځه وجه ده چې په عجمي ژبه باندې خطبه ویل ندي جائز؟

مونږورته خواب کووچې صحابه په عالم اسلام کي خواره شول عجمي هیوادونوته هم راغلل خوچیرته هم له دوی څخه دانقل ندی شوی چې دوی دی له عربي پرته په نوروژبوباندې خطبه ویلي وي که چیرې په عجمي ژبه باندې خطبه جائزه وی نوولې صحابه ودعجمویه هیوادونوکي په عربي ژبه خطبه ویلې؟له دې څخه معلومه شوه چې په عجمي ژبه باندې خطبه ویل جوازنلري.ډیرونورو علماوهم لیکلي دي چې له عربي پرته په نوروژبوباندې خطبه لوستل جوازنه لري.منهم:علامه شاولی الله في المصفی علی الموطا وعلامه رشید احمد في احسن الفتاوی.

## کله چې امام خطبه وایي سامعین به څه دول کیني:

خینوسیموکي داسې عادت وي چې کله امام خطبه وایي نوخلک خپل لاسونه ترنامه لاندې ږدي اودویمه خطبه کي لاسونه په زنکونوباندې ږدي ایاداډول عمل په اسلام کي جوازلري؟

په دې اړون علامه تهانوي اغلاط العوام کي لیکلي دي،علامه رشیداحمداحسن الفتاوی کي لیکلي دي،علامه رفعت قاسمي په مجمع الفتاوی کي لیکلي دي اوهمدارنګه فتاوی حقانیه کي هم لیکلي دي چې داډول عمل شرعاًجوازنلري.اوفتاوای عالمګریه کي لیکلي دي چې دخطبې پرمهال په یوه ډول کیناستل یاهم دیوه حالت التزام کول ندی جائز.خوعلماولیکلي دي چې غوره اومستحسنه داده چې دتشهدپه حالت باندې کیني اودخطبې پرمهال حبوه کیناستل هم ندي صحیح څکه چې په دې کې صراحة دمنعي احادیث راغلي دي.[1]

بیاپه دې احادیثوباندې علامه علی القاري،علامه ابن حجر،علامه عبالحق اوعلامه سیوطي په خپلوکتابونوکي تحقیقات کړیدي ددې مسئلې لپاره یې خانګړي بابونه راوړیدي چې حبوه کیناستل جوازنلري؛خوکراهیت یې تنزیهي دي څکه چې په دې ډول کیناستلو سره سړي ته خوب ورځي که له چا څخه داصفت منتفي وي بیاکراهیت نشته.

[1] - عن مكحول وعطاء والحسن انهم كانويكرهون ان يحتبووالامام يخطب يوم الجمعه-مصنف ابن ابي شيبة-۲/۲۸.

## دخطبې پرمهال په لاس کې لکړه نيول:

ځيني امامان چې کله خطبه وايي په ځپل لاس کې لکړه نيسي آيادې لپاره په اسلام کې څه ثبوت شته؟زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې دامسئله شته خومحققين في الاحناف وايي چې ددې التزام ناجائزاوبدعت دی.که څوک اعتراض وکړي چې رسول اللهﷺ ولې په ځپل لاس کې لکړه نيولې وه؟

مونږورته خواب کووچې نبي کريم ﷺ يوځل ياهم دوه ځلې داعمل ترسره کړی وه نبی کريمﷺ به تل په مدينة المنوره کې خطبه ويلې خودهروخت لپاره يې په لاس کې لکړه نده نيولې.خوکه څوک يې کله کله نيسي بياڅه پروانه کوي کذافي اعلاء السنن للعلامه ظفراحمد واحسن الفتاوی للعلامه رشيداحمد.

## دخطبې په پيل کې سلام کول:

کله چې امام خطبه پيل کوي تردې وړاندې په خلکوباندې سلام کوي ځيني علماودی ته بدعت ويلې دي آياداخبره صحيح ده؟له خطبې څخه وړاندې په خلکوباندې سلام کول بدعت نه ده نبي کريمﷺبه چې کله خطبه پيل کوله ترهغه وړاندې به يې په خلکوسلام کاوه.(۱)

داحديثونه علامه سيوطي په جامع الصغيرکې راوړيدي اوعلامه هيثمي په مجمع الزوائدکې راوړيدي سره له دې چې داحديثونه ضعيف دي خوپه اعتباردمجموع طرقوسره مرتبې دحسن ته رسيږي اوحسن حديث داستدلال وړوي.نوسلام کول وړاندې ترخطبې بدعت نه بلکه سنت ده.

وماکتب ومانقش وماهذالمکتوب في بعض کتب الاحناف هومردودممالااصل له والتحقيق على ان سلام الخطيب يوم الجمعه قبيل الخطبه سنة؛ان شئتمعلى ان تقفواباالتحقيقه فلترجعوا الى هذالحديث في الجامع الصغيروالشرحه ومجمع الزوائد واعلاء السنن في کتاب الجمعه.

## که يوامام خطبه ووايي اوبل امامت وکړي:

که چيرې يوامام خطبه ووايي اوبل امام لمونځ ورکړي اياداول عمل په شرعه کې جوازلري؟په دې اړوندعلامه شامي ردالمحتارکې ليکلي دي چې دادول عمل جائزدی خوپه دې شرط چې داکوم امام

---

۱- عن ابن عمر قال:کان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذادخل المسجديوم الجمعةسلم على من عند منبره من الجلوس فاذاصعدالمنبر توجه الى الناس فسلم عليهم-مجمع الزوائدکتاب الصلوة باب سلام الخطيب۲/۱۸۴- رقم الحديث ۳۱۱۹

دجمعي لمونځ ورکوي هغه به خطبي پرمهال حاضروي که په توله خطبه کي نه وي حاضر دخطبي په یوه برخه کي چي حاضروي بیاهم مع اهلیت دجمعي لمونځ ورکولای شي.[۱]

## دخطبي پرمهال درودویل:

کله چي خطبه کي امام ددي ایت کریمه تلاوت وکړي چي: { إِنَّ ٱللَّهَ وَمَلَٰٓئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى ٱلنَّبِيِّۚ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ صَلُّواْ عَلَيۡهِ وَسَلِّمُواْ تَسۡلِيمًا }[۲] نوخلک په زوره باندي دردووایي

آیاداشرعاجوازلري؟علماولیکلي دي چي ددي لپاره په اسلام کي ثبوت نشته دادول عمل بدعت دی منهم:مفتي محمدفرید،علامه عبدالرحیم لاجپوري في فتاوای رحمیه،وعلامه رشید احمدفي احسن الفتاوی.دعلامه شامي له یوه عبارت څخه هم داسي څرګندیږي چي کله په خطبه کي دنبي کریمﷺ نوم ذکرشي نوبیت په زړه کي به صلی الله علیه وسلم وایي.[۳]نودرودخوبه په طریقه اولی سره په پټه وایي.

دیادوني وړده چي زمونږپه افغانستان یاپه نوروعجمي هیوادونوکي داسي عادت دی چي یوځل امام په پښتویافارسي یاهم په نوروژبوباندي تقریرکوي وروسته تردي بیاسنت کوي اوبیا امام ته مخامخ اذان کیږي ترهغه وروسته بیا په عربي ژبه خطبه لوستل کیږي.درسول اللهﷺ اوصحابه وپه دورکي داسي نه وه دادددي لپاره علماووضعه کړيدي چي خلک یوڅه فائده حاصله کړي څکه چي عجم په عربي ژبه نه پوهیږي.

## له خطبي څخه مخکي اذان:

له خطبي څخه وړاندي چي کوم اذان کیږي په دي کي دعلماو اختلاف دی چي دااذن به په کوم ځای کي کیږي؟مالکي مذهبه علماءوایي چي دا آذان به په مؤذن خانه کي کیږي،په خینواحادیثوکي راغي چي دا آذان به امام ته مخامخ له جومات څخه دباندي کیږي اوبعضي علماءوایي چي دا آذان به بین یدی الخطیب یعني امام ته مخامخ نږدي کیږي.خوکه آذان کونکی دویم یادریم صف کي ودریږي هم

---

۱- واماذاکان قبله بعدالخطبه فیشترط کون الخلیفة قد شهدالخطبة اوبعضها مع اهلیة للاقتداءبه-ردالمحتار-کتاب الصلوة مطلب في جوازاستنابة الخطیب-۳/۱۱

۲- سورة الاحزاب/۵۶

۳- اناذکرالنبي صلی الله علیه وسلم لایجوزابصلوعلیه باالجهربل بالقلب وعلیه الفتوی-ردالمحتار۳/۳۸-

څه باک نلري.خواوس مهال عرف داسي دی چي مؤذن مخامخ امام ته نږدی دریږي په دی اړوندعلامه بنوري په معارف السنن کي بشپړتحقیق کړیدی.[۱]

اوعلامه ظفراحمدالعثماني هم په معارف السنن کي په دي اړه بنه مشبع تحقیق کړیدی دلادیرو معلوماتولپاره ذکرشویوکتابونوته مراجعه وکړی‌په حق به واقف شي.

اوزمونږه احنافوعلماوولیکلي دي چي ددی اذان خواب نشته بیا که څوک خواب ورکوی هم په زوره به یی نه وایي په خلاف دنوروآذانونوځکه په نوروآذانونوکي په جهرباندي خواب ورکول سنت دي.[۲]

## حکایت.

سهل ابن عبدالله التستري وایي چي زه یووخت کي دجُمعي په ورځ یوه جومات ته دجُمعي دلمانځه لپاره لاړم ددی حدیث شریف مخالفت مي وکړچي نبي کریم فرمایلي دي:چي ددوکسانوترمینځ جداوالی مه کوی اودخلکوله اوږوڅخه پښي مه اړوی.[۳]

نوموړی وایي چي زه دخلکولومړي صف ته لاړم کله چي کیناستم نوغایطو(غټومتیازو)دیرسخت پټنګ کړم له شرم څخه بیرته هم نه شوم راوتلای چي په دي وخت کي داامام راباندی فکرشو زماپه حالت باندي پوی شو چي له سنتوڅخه یي خلاف وکړ الله تعالی تکلیف ورباندي راوست هغه هم لوی سړي وه په ماباندي یي خیل څادرواچاوه راته ویي ویل چي خپل حاجت دي پوره کړه.

په دي وخت کي زماحالت بدل شوداسي احساس مي وکړچي زه په یوه باغ کي یم هلته بیت الخلاءهم موجوده وه هلته داخل شوم اوخپل حاجت مي پوره کړاودس مي هم وکړبیرته جومات ته راغلم کله یي چي څادرله ماڅخه لری کړ ګورم چي په خپل ځای باندي ناست یم اوله متوڅخه مي اوبه څڅیدلي کله چي دجُمعي لمونځ اداشو همدی عالم زه له لاس څخه ونیولم اودهغه باغ دروازه یي راته خلاصه

---

[۱] -واماکون الاذان الثاني عندالخطبه فهل یکون داخل المسجداوخرجه؟فظاهر کتب المذاهب الاربعة ان یکون داخلة بین یدی الخطیب ولکنهم لایفصحون به صراحة.ولفظ الکنزمن کتبنا فان جلس علی المنبراذن بین یدیه.ولفظ متن الهدایه اذاصعدالامام المنبر جلس واذن المؤذنون بین یدی المنبر-معارف السنن۲۰۲/۳-

[۲] - عن ابي سعیدالخدوري ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال:اذاسمعتم النداءفقولومثل مایقول المؤذن-صحیح البخاري ۸۶/۱-

[۳] -عن سلمان الفارسي قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من اغتسل یوم الجمعة وتطهرمااستطاع من طهرثم ادهن اومس من طیب ثم راح فلم یفرق بین اثنین فصلی ماکتب له-صحیح البخاري باب مالایفرق بین اثنین یوم الجمعة۱۲۲/۱-

کړه کوم کې چې مااودس کړی وه په کومې کوزې باندی می چې اودس کړی وه هغه هم هغسې ایښې وه او هغه بیت الخلاءهم موجوده وه کومه کې چې ماخپل حاجت پوره کړی وه.سهل ابن عبدالله وایي چې زه په ډیرتحیرکې واقع شوم خوداټونه وجهه ددی وه چې مادرسول اللهﷺ دحدیث مخالفت کړی وه روضة الریاحین کې امام یافعي داحکایت نقل کړیدی.

# ددُعابیان.

دوعا کول غوره دي،که نه کول یې غوره دي اوکه اموراالله تعالی ته سپارل غوره دي؟په دی مسئله کې دعلماواختلاف دی بعضې علماء وایي چې سکوت غوره دی،ځینې علماءوایي چې دوعاکول غوره دي،ځینې علماء وایي چې دوعاکول واجب دي اوځینې نورعلماءوایي چې دوعاکول مستحب دی.

علامه ابن قیم په خپلودواړوکتابونو:الداء والدواء اوجواب الشافي لمن سئل عن دواء الکافي کې لیکلي دي چې دوعاکول کول واجب دی.خوصحیح خبره داده چې دوعاکول مستحب دي؛اوکول یې په نه کولوباندي غوره دي ځکه چې دوعاکول هم عبادت ده؛یوه حدیث شریف کې راځي له حضرت انس بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دی چې:الدعاءمخ العبادة.[۱] یعني دوعاء کول مغز دعبادت ده.تقریباددونیا دجمهوروعلماودامذهب دی چې دوعاکول مستحب دي.کذافي کتاب الاذکارللعلامه نووي،والتحفة المرغوبه في افضلیة رفع الیدین بعدالصلوة المکتوبه.

# دری ډوله دُعاء.

علامه عبدالفتاح ابوغده.په المنح المطلوبه دعلامه محمدصدیق الغماري باندي تعلیق کړیدی هلته یې لیکلي دي چې دوعادری ډوله ده یوډول هغه دوعاده چې کله یوڅوک له الله تعالی نه دځه حاجت دپوره کولوغوښتنه کوي نودی ډول دوعاکې به لاسونه پورته کوي.

بل ډول هغه دوعاګانې دي چې له رسول اللهﷺ څخه په خاصوځایونوکې نقل شویدي اوله نبي کریمﷺ څخه لاس پورته کول هم ثابت دي دمثال په توګه:په لومړي ځل بیت الله ته مخامخ کیدل،په صفااومرواکې دوعاکول،یاداستسقا په لمانځه کې دوعاکول اوداسې نور؛داهغه خاص ځایونه دي چې دلته رسول اللهﷺ دوعاکړی اولاسونه یې هم پورته کړیدی دې ډول دوعاکې لاس پورته کول مستحب دي.

---

۱- جامع الترمذي ابواب الدعوات باب ماجاءفي فضل الدعاء-۲/۱۷۵

اوبل ډول هغه دوعاګاني دي چې له رسول اللهﷺ څخه نقل شويدي خوهغه لاس نه دي پورته کړي دمثال په ډول:له خوراک څخه وروسته دوعا،ياداسې نوري ډيرې دوعاګاني دي چې هلته له رسول اللهﷺ څخه لاس پورته کول ندي ثابت دي ډول دوعاکې لاس پورته کول مستحب نه بلکه مباح دي که څوک يې پورته کوي څه باک نلري اوکه څوک يې نه پورته کوي جبروړباندي نشته.

## کله چې يوڅوک دُعاکوي لاسونه به څه ډول پورته کوي:

په بعضواحاديثوکې راغلي چې کله به رسول اللهﷺ دوعاکوله لاسونه به يې دومره زيات پورته کول چې دتخرګونوسپين والى به يې معلوميده.[1]خوداداستسقاپه لمانځه کې وه.په ډيرونوروراياتوکې راغلي چې نبي کريمﷺ به ډېر لاسونه ددوعاپه حالت کې له ځېلواوږوسره برابرول،ډيرې روايتونه وايي چې سينې ته به يې نيول،اوډيرونورورروايتونوکې راغلي چې ډېر مخ مبارک ته به يې مخامخ نيول.

په دې اړه علماوليکلي دي چې ډيرپورته کول داستسقاء په لمانځه کې جوازلري پرته له دې هرډول لاسونه پورته کول په دوعاکې جائزدي دلاښه تحقيق لپاره فض الوعاءدعلامه سيوطي ته مرجعه وکړئ په نوروا حاديثوبه هم واقف شي.

## درئ خلي دوعاکول:

بعضې خلک درئ خلي دوعاکوي آيادې لپاره په اسلام کې څه اصل شته؟په دې اړه يوحديث له تاريخ الاوسط دامام بخاري څخه علماونقل کړيدی چې نبي کريمﷺ به درئ خلي دوعاکوله.[2]نودرئ خلي دوعا کول هم ثابت دي خوښايي چې ډيرې اوږدې دوعاګاني ونه شي ځکه چې په دې سره خلکوته تکليف جوړيږي.

اوبل داچې په دوعاکې تکلفاسجع برابرول هم جوازنلري اوښايي چې په ډير ادب اوعاجزي سره دوعا وشي ددوعاادب دادی چې مخ دقبلې په لور وګرځول شي اودتشهدپه شکل ورته کيني دبشپړتحقيق لپاره کتاب الاذکاردامام نووي ته مراجعه وکړئ.

---

[1] - عن انس بن مالک قال:کان النبي صلى الله عليه وسلم لايرفع يديه في شئ من دعائه الافي الاستسقاءوانه يرفع حتى يرى بياض ابطيه- صحيح البخاري باب رفع الامام يده في الاستسقاء ۱/۱۴۰-

[2] - عن مغيرة بن شعبه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يدعوا دبركل صلوة ثلاثا-رواه البخاري في تاريخه الاوسط ۳/۸۰-مخرج حماسي.

## خطبه کې دوعاء:

خطبوکي خيني دوعاګاني وي خصوصاصحابه وته دوعاګاني ياهم خيني نورې دوعاګاني آيايه دي دوعاګانوکي لاس پورته کول شته اوکنه؟په دې اره علماوليکلي دي چي په دې دوعاګانوکي لاس پورته کول نشته.کذافي الاتحاف للعلامه زبيدي.

## دسهل ابن عبدالله التستري عبادت:

دسهل ابن عبدالله التستري په مناقبوکي يوکتاب جورشويدی هلته يي له يوبل عالم څخه نقل کړيدی چي دهغه نوم ابوالعباس الخواص دی هغه وايي چي:سهل ابن عبدالله به ډيرزيات عبادت کاوه هروخت به په لمانځه ولاړوه يابه يي دقرانکريم تلاوت کاوه يوه ورځ مله خپل خان سره سوچ وکړچي دی خوهروخت يالمونځ کوي ياهم دقرانکريم په تلاوت بوخت وي دی به څه وخت خوراک کوي اوڅه شی به خوري؟

نومورې وايي چي زه دده دحال معلومولولپاره په يوه ځای کي پټ کيناستم سهل ابن عبدالله په خپل عبادت باندي بوخت وه کله چي دشپې يوه برخه تيره شوه يوه ميږه راغله دده دروازه يي په خپل پوزباندي ووهله خوپه خلاصيدلويي ونتوانيده سهل چي ددروازې غږواوريده نوخپل لمونځ يي ښه په اطمينان سره ختم کړاوسلام يي وګرځاوه ميږي ته يي دروازه خلاصه کړه هلته په تاخچه کي يولوښی ايښی وه هغه يي راواخيست اوميږه يي پکي ولوسله بيايي په فارسي ژبه له ميږې سره يوڅه خبرې وکړي ميږه بيرته راووتله اودصحرا په لورېي حرکت وکړ.

ابوالعباس وايي چي زه پوی شوم چي سهل ته الله تعالی څه ډول رزق ورکوي. په يوه حديث شريف کي راځي چي:من کان مع الله کان الله معه.[1] نوڅوک چي دالله تعالی عبادت کوي هغه ته الله تعالی دحيواناتوپه واسطه هم رزق ورکوي،څوک چي دالله تعالی دين غوره کړي دونياپخپله پسي ځي کني په خپله باندي دميږې راتلل بيا له هغې څخه شودې لوسل له عقل څخه ډيره لرې خبره ده.صفة الصفوه کتاب کي داحکايت ذکردی.

---

[1]- من كان مع الله كان الله معه-كشف الخفاء۲/۲۴۳-قال حماسي اورده عجلوني في كشف الخفاءلكن ماعزاه الى كتاب واوردعلامه خرائطي في مكارم الاخلاق عن ابن عمربمعناه من كان في حاجة اخيه كان الله في حاجته،ورواه الخطيب عن دينار ابن انس بلفظ من قضى لاخيه حاجته من حوائج الدنيا قضى الله له اثنين وسبعين حاجة اسهلها المغفرة انتهى،اورده الخطيب في الترجمة الحسن بن علي التنوخي-۱۳/۱۵.مخرج حماسي.

## څوک چې دالله تعالی عبادت غوره کړي الله تعالی به هغه ته حیوانات تابع کړي:

شیبان الراعي په دونیاکی یوصوفي عالم تیرشوی دی سفیان ورې وایي چې زه یوه ورځ له نوموړي سره په یوه لاره روان وم چې کورم یوزمری زمونږپه لورراروان دی ما هغه ته وویل:چې زمری نه وینې؟هغه راته وویل:چې وینم یې مه ورځخه ویریږه زمری چې کله رانږدی شوخپله لکۍ یې ښوروله شیبان الراعي هغه زمری له غوږځخه ونیوه اوغوږیې وربانڈی وسولاوه،زمری ته یې په غوږکې څه خبری وکړی؛زمري هم ځه. ورته وویل تردی وروسته زمري بیرته حرکت وکړاولاړ.سفیان ثوري وایي چې ماداواقعه په خپلوسترګوولیدله نوڅوک چې داسه تعالی عبادت مختارکړي الله تعالی به هغه ته حیوانات هم تابع کړي.

له همدې شیبان الراعي ځخه علماویوه بله واقعه هم نقل کړی هغه داچې نوموړی وایي چې مابه میرې څرولي کله به چې زه دجمعې دلمانځه لپاره تلم نوله خپلومیروځخه به مې کرښخت تاوکړ اوله ځان سره به مې وویل:چې یاالله تعالی په تامې سپارلي دي له دې خط ځخه یې دباندې نه غوارم؛کله به چې زه بیرته له لمانځه ځخه راوګرځیدم نوله خط ځخه به ګردچاپیره نیوان پراته وه یوه هم دومره قدرت نه درلودچې له حدځ ځخه دننه شي نوڅوک چې دالله تعالی دین غوره کړي الله تعالی به داسې عجیبه معامله ورسره وکړي.

## څوک چې دالله تعالی دین غوره کړي دنیا په خپله ورته راځي:

یووخت کې علامه عبدالقادرجیلاني ته یوې زړې ښځې خپل زوی راوست هغه ته یې وویل:چې دازمازوی به دلته له تاسره اوسیږي دیني تعلیم وربانديې وکړه.بله ورځ بیاداښځه دخپل زوی پوښتنې ته راغله هغه یې په داسې حالت کې ولیده چې په مدرسه کې یې دال خوړل ډیرزړه یې ورته بدشو؛عبدالقادرجیلاني ته راغله چې ګوري هغه چرګه خوړلې ده اوهډوکي یې په کاسه کې پراته دي دې ښځې ورته وویل:چې ته په خپله چرګان خوری اوزمازوی دال خوري داڅرنګه انصاف دی؟

عبدالقادرجیلاني ورته وویل:چې ستازوی به هم چرګان خوري خوچې کله زماپه څیرشي زړې ښځې ورته وویل:چې هغه خوهم ستا په څیردی؛ښځه په دې څه پوهیده چې عبدالقادرجیلاني دځومره لوړی مرتبې خاوندد ی؛دې ښځې وویل:چې زمازوی هم سبق وایې هغه هم ستاپه شان دی عبدالقادرجیلاني ورته وویل:چې ستازوی تراوسه زماپه شان ندی چرګې ته یې خطاب وکړچې:پادجاجه طرفطار.یعني

ای چرګي والوزه هغه والوته نوموري دي ښخي ته وويل:چي کله ستازوی زما په شان شوبيادي چرګان خوري ماډيرتکليفونه تيرکری دی ستازوی لاتراوسه زما په شان نه دی شوی.

اويوه بله واقعه علماوبيان کړي ده چي يووخت کي يوعالم جهادته روان وه چي په لاره کي يي خرمرشودی مجاهدعالم الله تعالی ته سوال وکړچي ياالله تعالی ته دازماخربيرته راژوندی کړی جهادته روان يم که داخرنه وي نوزه به په څه شي باندې جهادته خم کله چي له جهادڅخه بيرته راوګرځيدم بيامی داخربيرته همدلته مرکړی.

خريي الله تعالی بيرته راژوندی کړاودی جهادته وړباندي لاړکله چي له جهادڅخه بيرته راستون شو اوهغه ځای ته راورسيدخپلوملګروته يي وويل:چي له خره څخه کته اونورسامان کوزکړی څکه چي دلته اوس خرمرکيږی بياهمداسی وشول خريي په همدي ځای کي مړشو.نوڅوک چي دالله تعالی درضالپاره دکوم کارازاده وکړي الله تعالی به دهغه په دوعاحيوانات هم راژوندي کړي.

## حضرت عمررضي الله عنه به خپل نفس ذليل کاوه:

اميرالمؤمنين حضرت عمريوه ورځ داوبوزی په شاکری وه ملګرويي ورمندي کړی چي مونږته يي راکړه حضرت عمرورته وويل:چي نه زه يي په خپله باندي وړم څکه چي زمانفس لږکبرجن شويدی په دی سره زه داخپل نفس ذليل کوم.

## دحضرت عمررضي الله عنه هيبت په ځمکي هم تأثيرکاوه:

امام الحرمين يوکتاب جوړکړيدی کتاب الشامل ورته وايي هلته يي ليکلي دي چي يوه ورځ حضرت عمررضي الله عنه په مدينة المنوره کي ناست وه چي په ځمکي زلزله راغله حضرت عمر خپله دره راواخيستله اوځمکه يي ورباندي ووهله ځمکي ته يي وويل:چي بيا ونه ښوري نوموړي ليکلي دي چي وروسته ترهغه بيابه مدينه منوره زلزله نده راغلي اونه به دقيامت تروزځي په مدينه منوره زلزله راشي.[1]

---

۱ - ياابن الخطاب والذی نفسي بيده مالقيک الشيطان سالکافجاً قط الاسلک فجاًغيرفجک-صحيح البخاري مناقب عمربن الخطاب ۱/۵۲۰-

# دمړي بیان.

کله چي يوچاته دمرګ حالت راشي.نوپه اسلام کي داحکم دی چي له هغه سره به نورخلک کيني اوکلمه دلااله الاالله به ورته وايي چي دي ته تلقين ويل کيږي اودي ته علماوسنت ويلي دي يوه حديث شريف کی هم راغي چي:لقنواموتاکم لااله الاالله[1]دلته له موتاکم څخه مجازي معنی مرادده څکه چي محتضرهم لکه مړی داسي وي.

په دي باندي دټولومذاهبوفتوی ده چي مړي ته به تلقين کوي خويواځي لااله الاالله به ورته وايي که محمدرسول الله به هم ورته وايي؟په دي اروندجمهوروعلماورايه داده چي يواځي دلااله الاالله ويل کافي دي؛دوی وايي چي حديث کي يواځي دلااله الاالله ذکرشويدی نوهمدومره کافي ده علامه شامي هم ردالمحتارکي ليکلي دي چي يواځي کلمه دشهادت به ورته وايي.[2] علامه نووي هم دغه خبره کريده خوځيني علماءوايي چي شهادتين به دواړه ورته وايي يعني محمدرسول الله به هم ورسره وايي کذافي طبقات الشافعية الکبری للعلامه ابن سعد.

اوبل داچي محتضرته به امرنه کوي چي ووايه څکه چي هغه ددردپه حالت کي وي هسی نه چي انکاروکړي ناست خلک دي له خان سره وايي نوهغه ته به هم ورپه يادشي.

# دمحتضرمخ قبلي ته کول:

کله چي يوچاته دمرګ حالت راشي نودهغه مخ قبلي ته برابرول سنت دي.غيرمقلدينوکی علامه الباني احکام الجنائزوبدعها کی ليکلي دي چي دمحتضرمخ قبلي ته برابرول بدعت دي ددي لپاره يي دليل دسعيدبن المسيب قول ذکرکړيدی چي هغه وايي چي دمحتضرمخ قبلي ته کول بدعت دي.

خوشوافع،موالک اواحناف وايي چي دمحتضرمخ قبلي ته کول جوازلري.المستدرک علی الصحيحين دامام حاکم کي يوحديث شريف راغي چي حضرت براءابن معرورمديني منوري ته هجرت وکړ هلته وفات شو نبي کريمﷺ دده په اړه له صحابه وڅخه پوښتنه وکړه هغوی ورته وويل:چي هغه وفات شو نبي کريمﷺ وفرمايل:چي اياڅه وصيت يي نه وه کړي؟صحابه و وويل چي وصيت يي داکړی وه چي کله زه مړشوم زمامخ دقبلي لوري ته برابرکړي رسول اللهﷺ وفرمايل اصابتني الفطرة يعني حق

---

[1] عن ابي هريره قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم لقنوموتاکم لااله الاالله-مصنف ابن ابي شيبة۳/۱۲۵-

[2] قلت ويشيراليه تعبيرالهدايه،والنقايه،والوقايه،والکنزبتلقين الشهادة-ردالمحتارکتاب الصلوة مطلب تلقين المحتضر ۳/۹۰-

ته رسیدلی دی.[۱] ددي حدیث لاندي امام حاکم لیکلي دي چي اسنادهذالحدیث علی الشرط الشیخین اوامام ذهبي هم ورسره موافقه کړیده.همدارنګه داحدیث په نصب الرایه کي هم شته،تلخیص الحبیرکي حافظ ابن حجرهم راوړي،سنن الکبری دامام بیهقي کي هم داحدیث ذکردی اونیل الاوطارکي امام شوکاني هم داحدیث راوړیدی.په دنیاکي هیڅ یوه عالم هم په دي حدیث باندي جرحه نده کړي نوله دي څخه څرګنده شوه چي دمړي مخ قبلي ته برابرول بلکل جوازلري.

## دمړي سترګي پټول:

دمړي سترګي پټول هم سنت دي داچي ولی دمړي سترګي خلاصي پاتي کیږي؟په دي اړوندعلامه سیوطي په شرح الصدورکتاب کي لیکلي دي چي کله له انسان څخه روح وځي داانسان په دي خپل روح پسي پورته ګوري نوځکه یي سترګي همداسي خلاصي پاتي شي.[۲]

اوعلماولیکلي دي چي یوه تیره اوسپنه دي هم دمړي په خیټه باندي کیږدي سنن الکبری کي امام بیهقي په دي اړوندحدیث هم روایت کړی چي کله یوانسان مړشي نودهغه په خیټه به یوه تیره اوسپنه ږدي.[۳] حکمت یي دادی چي ددي مړي خیټه بیانه پړسیږي امدادالفتاح کي علامه شرنبلالي هم دغه خبره لیکلي ده.

## دمړي په کفن باندي لیکل:

دمړي په کفن باندي لیکل یاهم په مړي باندي روی جایي اچول چي په هغه کي دقرآن آیتونه وي شرعا جوازنلري کذافي احسن الفتاوی للعلامه رشیداحمد.

## مړي ته عهدنامه لیکل:

کله چي خلک مړی لحدته سپاري په دي وخت کي په ملاصاحب باندي یوه لوټه یاهم تیره لیکي یاهغه لوټه یاتیره له مړي سره په لحدکي ږدي آیاداول عمل شرعاجوازلري؟

---

[۱] عن یحی بن عبدالله بن ابي قتادة عن ابیه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم حین قدم المدینة سأل عن براءابن معرورفقالو:توفي واوصی بثلثه لک یارسول الله،واوصی ان یوجه الی لقبلة لمااحتضرفقال رسول الله صلی الله علیه وسلم اصاب الفطرة وقدردت ثلثه الی ولده-سنن الکبری۳/۵۳۹- رقم الحدیث ۶۶۰۴

[۲] - واخرج ابن سعدعن قبیصة بن ذویب قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان البصریشخص للروح حین یعرج بها-(شرح الصدور/۹۴)

[۳] - عن عبدالله ابن ادم قال:مات مولی لانس ابن ملک عندمغیب الشمس فقال انس:ضعواعلی بطنه حدیدة-سنن الکبری ۳/۵۴۱- رقم الحدیث ۶۶۱۰

په دې اړه متراوسه په کتابونوکې څه ندي لیدلي که څوک وایي چې له عدم دوجدان دشي نه عدم دشي نه راځي،خوسره له دې چې زه ډېره زیاته مطالعه کوم ددې دثبوت لپاره ما په کتابونوکې څه ندي لیدلي یواځې په درالمختارکې دومره لیکلي دي چې دمړي په تنده اوکفن دی عهدنامه ولیکل شي ښکه چې یوچایومړی په خوب باندی لیدلي وه چې له هغه سره ملائکونرمښت کاوه ښکه چې دهغه په کفن باندی عهدنامه لیکل شوی وه.[1] خوخوب څه شرعي دلیل نشي کیدلای؛بیرته لاندی په حاشیه کې علامه شامي وړباندی ردکړیدی اولیکلي یې دي چې دادول عمل په شرعه کې جوازنلري.[2]

اوعلامه حلبي هم په شرحه دمنیة المصلي کې لیکلي دي چې عهدنامه لیکل جوازلري همداخوب یې په دلیل کې راوړیدی. خوعلامه شامي لیکلي دي چې تکره کتابة القرآن علی جدران المساجد وعلی محاریبه؛ببایې لیکلي دي چې ددې لیکل ښکه جوازنلري چې کیدلای شي یووخت کې دادیوال چپه شي بیاددې اېتونوبې عزتي کیږي نوچې دجومات په دیوالونواومحراب دقران آیتونه لیکل جوازنلري دمړي په کفن باندې خوپه طریقه اولی سره ددې لیکل ناجائزدي.کذافي منهاج الطالبین للعلامه سلیمان الجمل اشافعي.

سره له دې چې ددې دجوازلپاره ځینې علماءاستدلال پیش کوي چې علامه علی القاري په فتح باب العنایه کې لیکلي دي چې دحضرت خالدبن الولیداسونه وه په ورنونوباندې یې حبس في سبیل الله لیکلي وه اودا اسونه په کندکیوکې هم ځملاستل؟مونږ ورته خواب کووچې سمه ده علامه علی قاري به لیکلي وي خومونږدلیل غواړواوحال داچې ددې لپاره کوم حدیث دلیل نشته ځینې وختونه دکتاب خالص تقلیدهم نه وي پکار لږبه خپل ځان سره هم فکرکووچې په جومات باندې لیکل علماومکروه ګڼلي نومړی خوخامخا په قبرکې خاورې کیږي آیاپه دې سره به دقرآني اېتونواهانت ونشي؟خوعلامه شامي لیکلي دي چې دمړي په تنده باندې په وهمي خط لیکل جوازلري.

---

[1] - کتب علی جبهته المیت اوعمامته اوکفنه عهدنامه یرجي ان یغفرالله للمیت اوحی بعضهم ان یکتب في جبهته وصدره بسم الله الرحمن الرحیم ففعل ثم روی في المنام فسئل فقال:لما وضعت في القبرملائکة العذاب ....قالوآمنت من عذاب الله-ردالمحتارعلی الدرالمختارکتاب الصلوة-۳/۱۸۵

[2] -وفیه نظر:وقدافتی ابن صلاح بانه لایجوز ان یکتب علی الکفن یس والکهف ونحوهما خوفا من صدیدالمیت ...انه تکره کتابة القرآن واسماءالله تعالی علی الدراهم والمحاریب والجدران ومایفرش وماذالک الالاحترامه وخشیة وطیه ونحوه مما فیه فالنع هنا بالاولی مالم یثبت عندالمجتهد اوینقل فیه حدیث ثابت-ردالمحتارکتاب الصلوة مطلب فیما یکتب علی الکفن المیت ۱۸۶-۱۸۵/۳-

## له مرګ څخه وړاندې خپل ځان ته کفن تیارول:

مخکې له مرګ څخه خپل ځان ته کفن تیارول هم سنت دي، سنن الکبرئ کې امام بیهقي ددې لپاره مستقل باب ذکرکړیدی.[1] اوکفن المبلول بالماءالزمزم داهم دتبرک په نیت باندې ثابت دي تفسیرروح البیان کې هم لیکلي اوفتاوای حقانیه کې هم ددې په جوازباندې فتوای شویده.

## مړي ته پګړۍ وریه سرکول:

ځینوعلماولیکلي دي چې مړي ته په کفن کې پګړۍ وریه سرکول مکروه دي؛خودیروحنفي مذهبه علماولیکلي دي چې مړي ته پګړۍ وریسرکول جوازلري ځکه چې حضرت عبدالله ابن عمرخپل زوی واقدته پګړۍ وریسرکړې وه.[2]

ځینو علماوحولاداهم لیکلي دي چې بنایي عالم ته وریسرکړای شي علامه علی قاري لیکلي،عمدالرعایه اوتعلیق الممجدکې علامه لکنوي لیکلي،نوموړي داحدیث هسنقل کړیدي اوحواله یې په سنن سعیدبن منصورباندې کړیده چې لله الحمدداحدیث مابیاهلته هم پیداکړنومړي ته پګړۍ وریسرکول جوازلري.

خودمړي وینئان کمول بایې نوکان لندول ناجائزدي،دکوموشیانوپه واسطه چې دمړي تزیین راځي هغه ټول دمړي لپاره ناروادي.کذافي فتح باب العنایة للعلامه علی القاري ومالابدمنه للعلامه ثناءالله پاني پتي المظهري.

## دجنازې داعلان کولوشرعي حکم:

ایادجنازې اعلان شرعا جوازلري اوکنه؟په دې اره علماولیکلي دي چې که دریا لپاره وي یاهم ددې لپاره چې مړی خلکوته غټ ښکاره شي بیااعلان کول ناجائزدي؛اوکه ددې لپاره وي چې دجنازې لپاره خلک خبرشي بیاجوازلري؛خوبیاخې دومره به وایې چې فلانکی دفلانکي زوی مړدی اوپه دومره بجویې دجنازې لمونځ اداکیږي له دې څخه زیات الفاظ ویل ندي جائز.کذافي حلبي الکبیروامدادالفتاح.

---

[1] - عن سهل ان امرأة جاءت الى النبي صلى الله عليه وسلم ببردة منسوجة منهاحاشيتها....فقال:والله ماسألته اياها الا ليكون كفني يوم اموت قال سهل:وكانت كفنه يوم مات-سنن الكبرى كتاب الجنائز ۳/۵۶۶- رقم الحديث ۶۶۹۷

[2] - ان ابن عمر كفن ابنه واقدفي خمسة اثواب قميص،عمامه وثلاث لفائف وادارالعمامة انتهى-كذافى البنايه۳/۱۹۸- مخرج حماسي.

## وصیت معتبردی:

که یوځوک له خپل مرگ څخه وړاندې وصیت وکړي چي په مادې فلانکي سړی دجنازې لمونځ اداکړي ایادامري وصیت معتبردی که امام الحی مقدم دی؟

په دې مسئله کې دعلماواختلاف دی زمونږدفقهي حنفي په ځینوکتابونوکي لکه درالمختارکي لیکلي دي چي وصیت باطل دي تقریبا دعلامه شامي هم دغه رایه ده[۱]

اوځیني احناف علما وایي چي وصیت مقدم دی ځکه چي کله حضرت عمر وفات کیده وصیت یې وکړ چي په مادې حضرت صهیب جنازه وکړي سره له دې چي په هغه زمانه کي نور هم ډیرصحابه موجودوه خودحضرت عمرجنازه حضرت صهیب وکړه، ام سلمي وصیت کړی وه چي په مادې سعیدبن زیدمن العشرة المبشره جنازه وکړي سره له دې چي هلته حضرت عثمان حضرت علي اونورصحابه رضي الله عنهم موجودوه خودام سلمي رضی الله عنها جنازه حضرت سعیدبن زیدوکړه،حضرت ابوبکر چي کله وفات کیده وصیت یې وکړچي په مادې حضرت ابوبرده جنازه وکړي سره له دې چي هلته حضرت عمرحضرت عثمان حضرت علي اونورصحابه رضي الله عنهم موجودوه خودحضرت ابوبکرجنازه حضرت ابوبرده وکړه، حضرت عائشي ام المومنین وصیت کړی وه چي زماجنازه دې حضرت ابي هریره وکړي بیادهغي وصیت هم په ځای شو،حضرت عبدالله بن مسعود وصیت کړی وه چي زماجنازه دې حضرت زبیربن العوام وکړي سره له دې چي هلته نورصحابه هم موجودوه خودنوموړي وصیت هم په ځای کړی شو.کذافي محلی لابن حزم وفتح باب العنایه دي دواړوکتابونوکي لیکلي دي چي دمړي وصیت معتبردی،ځکه چي ډیروصحابه ووصیتونه کړي وه اونورووصحابه ومنع نه وه وربانديې کړي نوکیدلای شي چي داداجماع په مرتبه کي وي.

## په جومات کي جنازه کول:

که جنازه له جومات څخه دباندې کېنول شوې وي اوخلک په جومات کي دننه ولاړوي داصورت بالاتفاق جائزدی.علامه شامي،علامه نابلوسي اوعلامه طحطاوي دامسئله په خپلوکتابونوکي لیکلي ده.[۲]

خوکه جنازه هم په جومات کي دننه وي په دې صورت کي بیا دعلماواختلاف دی احناف علمادې مسئلي کي دوه ډلي دي ځیني علماداصورت کراهیت تنزیهي گڼي اوځیني نورعلماداصورت کراهیت تحریمي

---

۱- ولواوصی علی ان یصلي علیه غیرمن له حق التقدم اوبان یغسله فلان لایلزم تنفیذ الوصیة-ردالمختار۳/۱۴۳-

۲- لایکره اذاکان المیت خارج المسجد-ردالمختار۳/۱۳۸-

بولي.خوعلامه نابلوسي په نهاية المرادكى ليكلي دي چې زما په اند په جومات كى دننه جنازه كېښودل اولمونځ وربانډى كول حرام دي.او علامه قتل بغاالحنفي ليكلي چې زما په نزد دا دول عمل كراهيت تحريمي دي.

خوعلامه علی القاري، علامه ابن الهمام اوعلامه محي الدين الكافي جي ليكلي دي چې كراهيت تنزيهي دي چې تقريبا هدادديرومحقيقينوراىه ده هغه هم په دى وجه چې جومات كى تلويث (ككړوالى) رانشي.اوبل ددى لپاره داهم يودليل دي چې رسول الله ﷺ دحضرت سهل بن بيضاءجنازه په جومات كى كړى وه.[1]

## امام به دمري سيني ته دريږي:

كله چې امام دجنازي لمونځ كوي نودمري كوم خاى ته به دريږي؟په دي اړوندزمونږ احناف علماوايي چې امام به دمړي سيني ته دريږي.[2]په دي كي دمړي اوښځي څه توپيرنشته.

علامه شامي دامسئله ليكلي،امدادالفتاح كي هم شته اوعلامه علی القاري په خپلودوكتابونوفتح باب العنايه اومیرقات كى ليكلي دي چې امام به دمري سيني ته دريږي.[3]

## په بوټونوبرسيره دريدل:

خينوخلكوكى عادت دى چې كله دجنازي لمونځ اداكوي نوخپل بوټونه له پښوڅخه باسي اوبرسيره پري دريږي آيادادول عمل په شرعه كي جوازلري؟زمونږدفقهي حنفي په ډيروكتابونوكى دمثال په دول بحرالرايق،فتاوای هنديه،طريقه محمديه،طحطاوي على الدرالمختاردي تولوكتابونوكى ليكلي دي چې كه دچادبوټونولاندي طرف په نجاست باندي وي نوخپل بوټونه دى له خپلوپښوڅخه وباسي اوبرسيره دي پرى ودريږي؛اوكه بوټونه يې پاک وي بيا له سره دبوټونودويستلو ارتياهم نشته.علامه علي القاري په غاية المقال في مايتعلق باالنعال كتاب كي هم دامسئله بيان كريده.

## مړى به څه ډول نقل كوي:

په دي اړوند زمونږداحنافومذهب دادى چې جنازه به دڅلوروكسانوپه واسطه نقل كيږي؛خوشافعي مذهبه علماوايي چې مړى په دوه كسان وړي دوى وايي چې يوتن په كټ له مخى څخه ونيسي اوبل

[1] - ان عائشة امرت ان يمربجنازة سعدبن ابي وقاص في المسجدفتصلي عليه فانكرالناس عليهافقال:مااسرع مانسي ماصلی رسول الله صلی الله عليه وسلم على سهل بن بيضاالافى المسجد صحيح مسلم۱/۳۱۲-

[2] - اماقيام الامام فان الامام يقوم عندصدرالميت لانه معدن القلب والقلب ملک الجسد(النتف/۸۲)

[3] - ثم الامام يقف بحذاءصدرالميت عندناسواءكان رجلااوامرأة -ميرقاة المفاتيح ۴/۱۲۷-

نن به يې دشاله لورې ونيسي په دې ډول به ډمرې نقل کوي؛مونږ احناف وايو چې څلورکسان به کټ له څلوروپښوڅخه ونيسي به دې ډول به ډمرې نقل کوي.

خوداخبره چې خلکوکې مشهوره ده چې ملابانوراشې قدمونه يې پوره کړې دابه کتابونوکې نشته په احاديثوکې يواځې ددې ثبوت شته چې هرسړی به يې څلويښت قدمه وړي چې مجموعه يې څلويښت قدمونه کيږي.[1] هغه هم ددې لپاره چې په دې سره الله تعالی ثواب ورکړې که ملاصاحب يې وړې هم څه باک نلري خوداخبره چې قدمونه يې پوره کړې په اسلام کې څه اصل نلري.

## جنازې ته دريدل منسوخ دي:

داسلام په لومړيوکې داسې حکم وه چې کله به يوڅوک ناست وه جنازه به چې وربانديې راووړل شوه نوهغوی به ورته دريدل خواوس داحکم منسوخ شويدی.اعلاءالسنن کې علامه ظفر احمدعثماني په دې اړه مکمل تحقيق کړی بيايې ليکلي دي چې جنازې ته قيام کول نشته.

څوکه څوک له جنازې څخه وروسته روان وي نوترڅوچې جنازه نه وي کيښودل شوي دوی به هم نه کيني دجازې له کيښودلوڅخه وړاندې کيناستل مکروه دي.[2]

## خلک به له جنازې څخه وروسته ځي:

اوبل داچې غوره داده چې خلک له جنازې څخه وروسته روان وي هغه که په سوارلي باندې وی اوکه په پښوباندې خودسوارلي په واسطه تلل خلاف الاولی عمل دی که عذروي بياڅه باک نلري.

**يادونه:**خينوسيموکي داسې عادت وي چې خلک دجنازې دانتقال پرمهال شورکوي دبيلګې په توګه:په زوره باندې کلمه وايي،يايه زوره باندې ذکرکوي ياهم په زوره تکبيرونه وايي داټول شيان حرام دي په شرعه کې جوازنلري.کذافي التعليق الممجد،احکام القنطرة،امدادالفتاوي،فتح باب العناية وايضا ردالمحتار.[3]

---

[1] لقوله صلى الله عليه وسلم من حمل جنازة اربعين خطوة كفرت عنه اربعين كبيرة-مجمع الزوائد۳/۲۶- وعزاه الى طبراني في الاوسط.

[2] - عن سعيدالمقبري عن ابيه قال:كنافي جنازة فاخذابوهريره بيدمروان فجلسا قبل ان توضع فجاءابوسعيد قال:فاخذبيدمروان فقال قم فوالله لقدعلم هذا ان النبي صلى الله عليه وسلم نهاناعن ذالك فقال ابوهريره صدق-صحيح البخاري۱/۱۷۵-

[3] - وينبغي لمن تبع الجنازة ان يطيل الصمت وفيه عن ظهريه فان اراد ان يذكرالله تعالى يذكره في نفسه-ردالمحتار۳/۱۶۳-

## دجنازې صفونه:

علماولیکلي دي چي دجنازې په لمانځه کي به خلک درې صفه وي په سنن ابوداوداومسنددامام احمدبن حنبل کي یوحدیث راځي چي حضرت مالک ابن هبیره به خلک دجنازې په لمانځه کي درې صفه کول اوویل به یې:چي ماله رسول الله ﷺ ښځه اوریدلي دي چي کله درې صفه خلک په چاباندې دجنازې لمونځ اداکړي نوالله تعالی به هغه ته مغفرت اوبښنه وکړي.[1]

زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي هم راځي چي دجنازې په لمانځه کي به خلک درې صفه وي.خلکوکي مشهوره ده چي دجنازې په لمانځه کي به صفونه طاق وي خو داخبرد هیڅ چاهم نده لیکلي؛علامه شامي ردالمحتارکي لیکلي دي چي درې صفونه مستحب دي.[2]

دیادونې وړده چي په نورولمونځونوکي دلومړي صف فضیلت زیات دی خودجنازې په لمانځه کي دوروستني صف فضیلت اوثواب دیردی په دې اره حدیثونه هم علماونقل کړیدی.

## له دفن څخه وروسته په مړي باندې جنازه کول:

آیاله دفن وروسته په مړي باندې جنازه کول جوازلري؟زمونږداحنافوپه مذهب وروسته له دفن څخه هم په مړي باندې جنازه کول جوازلري.[3] علامه شامي ردالمحتارکي اوعلامه علی قاري په فتح باب العنایه کي لیکلي دي چي له خښیدلووروسته هم په مړي باندې جنازه کول جوازلري خوداترهغه وخته چي مړی خراب شوی نه وي.[4]

که څوک اعتراض وکړي چي څه معلومیږي چي مړی خراب شویدی اوکنه؟چي داتروخت اوزماني پورې اړه لري دژمي په موسم کي مړی ژرخرابیږي اوپه وړي کي ژرنه خرابیږي ترهغو چي دخلکوداګمان وي چي مړی ندی خراب شوي جنازه وربانډې کیږي.

---

۱-عن مالک بن هبیره قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم مامن میت یموت فیصلی علیه ثلاثة صفوف من المسلمین الاوجب-سنن ابي داود ۲/۴۵۱-

۲- ویستحب ان یصف ثلاثة صفوف حتي لوکانوسبعة یتقدم احدهم للامامة ویقف وراته ثلاثة ثم اثنان ثم واحد-ردالمحتار ۳/۱۳۱-

۳- عن ابي هریرة رضی الله عنه ان امراة سوداء اورجلاکان یقم المسجد ففقده النبي صلی الله علیه وسلم فسأل عنه فقیل:مات فقال الاذنتموني به قال:دلوني علی قبره فدلوه فصل علیه-سنن ابي داود۲/۴۵۷-

۴- وان دفن علی غیرصلوةصلی علی قبره مالم یبلغ علی الظن تفسخه -درالمختارللعلامه حصکفي مع حاشیة ابن العابدین الشامي ۳/۱۴۷-

## دمړي په تابوت کې کېښودل:

اېدمړي په تابوت کې کېښودل جوازلري؟زمونږدفقهي حنفي علماوليکلي دي چې دارتيږ مهال دمړي په تابوت کې کېښودل جوازلري اودښځي لپاره خوغوره داده چې په تابوت کې کېښودل شي.کذافي حلبي الکبير ،لمعات وردالمحتار.[1]

## دجنازې په لمانځه کې له سلام ګرځولوڅخه وړاندې لاسونه پرېښودل:

آيادجنازې په لمانځه کې له سلام ګرځولو څخه وړاندې دلاسونوپرېښودل غوره دي اوکه وروسته؟په دې مسئله کې دعلماواختلاف دې علامه لکنوي په سعايه اوخلاصة الفتاوی کې ليکلي دي چې لومړی به لاسونه پرېږدي بيابه سلام ګرځوي همدارنګه علامه رشيداحمدهم احسن الفتاوی کې ليکلي دي چې وړاندې له سلام ګرځولوڅخه به لاسونه پرېږدي.

اوځينې علماوايي چې لومړی به لاسونه پرېږدي بيابه سلام ګرځوي.زمايه خپله هم دعه رايه ده چې لومړی به سلام ګرځوي بيابه لاسونه پرېږدي.

## دقبرونومسائل.

آياشق غوره ده اوکه لحد؟په دې باندې دټولوعلماواتفاق دې چې دواړه جوازلري خولحدغوره دی په نسبت سره شق ته[2] زمونږدفقهي حنفي په ډېروکتابونوکې دامسئله ليکلې ده.

## دمړي قبرته ورکوزول:

په دې اړوندپه مونږاحنافوکې علامه عبدالحی الکنوي کتاب جوړکړيدې"رفع الستر"په دې کتاب کې يې درې مذهبونه نقل کړيدي چې يويې زمونږاحنافومذهب دی هغه داچې مړی به دقبلې لورې ته ږدي ترهغه وروسته به يې قبرته ورکوزوي. کذافي اعلاءالسنن،فتح باب العنايه وردالمحتار.[1]

---

[1] - ولابأس باتخاذالتابوت ای يرخص هناعندالحاجة-ردالمحتار ۳/۱٦۵-

[2] - عن ابن عباس قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم اللحدلنا والشق لغيرنا-جامع الترمذي۲۰۲/۱-

## په لحدکي دمړي مخ قبلي ته برابرول:

کله چي مړی په لحدکي کیښودل شي نومړی به په ښي اړخ کوي اومخ به يې دقبلي طرف ته کوي؛که په اړخ يې نکړي يواځي مخ يې وګرځوي بيايه دي کي دعلماودوه مذهبه دي خوصحيح خبره همداده چي يواځي مخ به يې اړوي.کذای رفع الستر واعلاءالسنن.

اودمړی دسرطرف غوټه به هم خلاصوي زموږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکی دامسئله ليکلي منهم:امدادالفتاح،مراقي الفلاح،طحطاوي علی الدرالمختار،وايضافي ردالمحتار.[۲]

اوحديث شريف کي راځي چي دمړی دخښولوپرمهال به ددي ايت کريمه تلاوت هم کوي { مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ }[۳]داحديث امام احمدبن حنبل په خپل مسندروايت کړی اوتلخيص الحبيرکي هم علامه ابن حجرداحديث روايت کړيدی اسناده ضعيف خويه ضعيف حديث باندي هم په فضائلوداعمالوکی عمل کيدلای شي.

## دقبرژوروالی:

علماوليکلي دي چي دقبرژوروالی به ترنامه پوري وي که له دی څخه زيات غوج کړای شي هم څه پروانلري بلکه مستحب داده چي ډيرژورشي.زموږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکي دامسئله ليکلي ده.

## قبربه څه ډول وي؟:

کله چي مړی دفن شي څه ډول قبربه وربانډي جوړيږي؟په دی مسئله کي زموږاحنافواوشافعيانواختلاف دی؛شافعي مذهبه علماوايي چي قبربه مسطح(له خمکي سره برابر)وي.اوزموږاحناف علماوايي چي قبربه مسنم(دکمان په څير)له خمکي څخه يوه لويشت پورته وي.[۴]

---

۱- ويستحب ان يدخل من قبل القبلة بان يوضع من جهتها ....فيكون الاخذله مستقبل القبلة حال الاخذ ردالمحتار ۳/۲۶۶-

۲-وتحل العقدةللاستغناءلانهاتعقدلخوف الانتشاروعندالحل ردالمحتار ۳/۱۶۷-

۳- سورة طه/۵۵

۴-عن سفيان التمار قال:دخلت البيت الذي فيه قبرالنبي صلى الله عليه وسلم فرايت قبرالنبي صلى الله عليه وسلم وقبرابوبكروعمرمسنمة-مصنف ابن ابي شيبة ۳/۲۱۵-

دازمونږمروج قبرونه هم له فقهي حنفي سره په ټکرکي دي څکه چي زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي ليکلي دي چي قبربه يوه لويشت ياهم لږ زيات له ځمکي څخه پورته وي.[2] اوس مهال خويي خلک په لويشتولويشتوله ځمکي څخه پورته کوي چي دادول قبرونه په شرعه کي جوازنلري.کذافي انوار السنة لرواد الجنة للعلامه شاعبدالحق واعلاء السنن للعلامه ظفر احمدعثماني.

## دقبرونوپاخه جوړول:

دقبرونومجصص کول(پخول)هم په شرعه کي جوازنلري حتی چي په دي کي هم دعلماواختلاف دی چي تطوين(کاګل)يي څرنګه دی؟په دي اړوندچي کوم آثارله تابعينوڅخه نقل شويدي له هغوڅخه داسي څرګنديږي چي دقبرونوکاګل کول څه باک نلري.مصنف ابن ابي شيبه کي ددی لپاره خانګړي ترجمة الباب ايښي په دي اړه يي له تابعينوڅخه ډيراثارنقل کړيدي. [2] امدادالفتاح کي هم علامه شرنبلالي په دي اړه مکمل تحقيق کړيدی.

خومغني لابن قدامه کي يوحديث راغي چي کوم قبرکاګل شي بياهغه مړی آذان نه اوري.[3] خوابن حجرپه تلخيص الحبيرکي ليکلي دي چي اسنادهذالحديث اسنادباطل.بياعلماوليکلي دي چي که قبرددي لپاره کاګل شي چي خراب نشي چي نوڅه پروانه کوي خواولی اوغوره داده چي کاګل نشي.

## دقبرشناخته:

په قبرباندي شناخته اونښه درول ثابت دي څکه چي کله نبي کريمﷺحضرت عثمان بن مظعون دفن کړدهغه په قبريي نښه ودروله.[4]

---

[1] -ويجعل مرتفعا عن الارض قدرشبراواكثربقليل-(مراقي الفلاح/۲۲۱)

۲-سئل عن محمدبن سيرين هل تطين القبور ؟فقال:لااعلم به بأسا-مصنف ابن ابي شيبة باب في تطين القبروماذكرفيه- رقم الحديث ۱۱۸۰۱

۳-عن عبدالله بن مسعودقال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لايزال الميت يسمع الاذان مالم يطين قبره.اوقال مالم يطوقبره-المغني لابن قدامه۲/۲۷۸- رقم الحديث ۱۵۹۱

٤-عن المطلب قال:مات عثمان بن مظعون اخرج بجنازته فدفن فامرالنبي صلى الله عليه وسلم رجلان يأتيه بحجر....ثم حملهاووضعها عندرأسه وقال:اتعلم بها قبراخي-سنن ابي داود۲/۲۵۷-

اوبل داچي مړي به په کورونوکی نه دفن کیږي زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکی لیکلي دي چی دمړی خښول په بنیانواوکوټوکی شرعا جوازنلري ځکه چي دادانبیاوخاصه ده.کذافي امدادالفتاح وحلبي الکبیر.

اوآیادقبرونولوحی لیکل په شرعه کی جوازلري اوکنه؟په دي اړوند چي کوم احادیث روایت شویدي په هغوکی ددی منعه بیان شویده.خوزمونږپه فقهه حنفي کي ځینی علماپه دي اره مسهلین دي هغوی وایي چي کچیرې مړی لوی شخصیت وي ددی لپاره چي خلک دهغه قبر وپیژني اودهغه دقبرآثارختم نشي نودهغه دقبرلپاره لوحه لیکل جوازلري.کذافي ردالمحتار وامدادالفتاح.اوامام حاکم هم په المستدرک علی الصحیحین کي لیکلي دي چي الواح القبورجوازلري ځکه چي.دادسلفوله زمانی څخه راپاتی ده اواوس مهال په ټوله اسلامي نړی کی عام رواج دي چي داهم ددی دجوازلپاره لوی دلیل دی خوغوره داده چي ونه لیکل شي.[1]

## په قبرونوباندي توټي اچول:

آیاارخاءالستورعلی القبور(په قبرونوباندي توټي اچول)جوازلري؟په دي اړه علامه شامي لیکلي دي چي که قبردیوه لوی عالم اوصالح شخصیت وي نودهغه په قبرباندي توټي اچول جوازلري ځکه چي په دی سره دمړی احترام نورهم دخلکوپه زړونوکي پیداکیږي.کذافي ردالمحتاروتنقیح الفتاوی الحامدیة کلاهما للعلامه شامي.[2] علامه ترابلوسي هم په فتاوای کاملیه کي همداخبره لیکلي اوعلامه نابلوسي هم په نهایة الرادکي همداخبره لیکلي ده.

خوعلامه اشرف علي تهانوي ددي په نه جوازفتوی کریده زماپه خپله هم دعلامه اشرف علي خبری ته میلان ده خویه دي اړوندیوحدیث شریف هم راځي هغه داچي حضرت عائشي ام المؤمنین ته یوسړی راغی هغي ته یي وویل چي ماته دنبي کریمﷺ قبروښایه دي حدیث کی راځي چي فکشفت عن قبره یعنی درسول اللهﷺ په قبرباندي څه شي پراته وه هغه یي لرې کړل چي دنبي کریمﷺ

---

[1] - لاباس بالکتابة ان احتیج الیها حتی لایذهب الاثرولایتهن فقداخرج الحاکم فان ائمة المسلمین من المشرق الی المغرب مکتوب علی قبورهم وهوعمل اخذبه الخلف عن السلف-ردالمحتار ۳/۱۷۰-

[2] - قال الرافعي في الدیل:فبناءالقباب علی قبورالعلماء والاولیاءوالصلحاءووضع السترووالعمائم والثیاب علی قبورهم امرجائز اذاکان القصد بذالک العظیم في اعین العامه-ردالمحتار ۳/۱۷۰-

قبر څرګندشي.[۱] يعنى درسول اللهﷺ په قبربانديﺀ څه شى پراته وه هغه يې لرى کړل چې دنبي کريمﷺ قبر څرګندشي له دي حديث څخه معلوميږي چې دحضرت عائشي په زمانه کي هم درسول اللهﷺ په قبرباندي څه شي پراته وه.له دي حديث څخه هم خيني علماددي دجواز استدلال کوي.

## په شپه کي دمړي دفن کول:

په شپه کي هم دمړي دفن کول(خښول)جوازلري خيني علماددي دکراهيت خبره کوي خوعلامه سهارنپوري په بذل المجهودکي ليکلي دي چې دضرورت پرمهال په شپه کي دمړي خښول بلکل جوازلري.[۲]

## دمړي له يوه ځاى څخه بل ځاى ته وړل:

آيادمړي نقل کول له يوي سيمي څخه بلي سيمي ته جائزدي؟داهم دعلماوترمينځ يوه اختلافي مسئله ده زمونږدفقهي حنفي په خينوکتابونوکي ليکلي دي چې دمړي نقل کول له يوه ځاى څخه بل ځاى ته يوميل يادوه ميله جوازلري.کذافي ردالمحتاروامدادالفتاح.خوداهلته چې دفن شوى نه وي وروسته له دفن څخه يې نقل کول بلکل جوازنلري.[۳]

علامه مرغناني صاحب دهدايي يوکتاب جوړکړى التجنيس والمزيدهلته يې ليکلي دي چې ډيريې هم نقل کولاى شي حتى چې من بلدالى بلدخکه چې کله حضرت سعدابن ابي وقاص وفات شوله خپل قصرڅخه يې ان مديني منوري ته نقل کړ چې ددي ترمينځ څلورفرسخه مسافه ده خووروسته له دفن څخه يې په اجماع دعلماونقل کول ندي جائز.

يوه حديث شريف کي راځي چې حضرت عبدالله بن حرام دحضرت جابرپلارد/حدپه غزاکي شهيدشوى وه بيا داحضرت عبدالله بن حرام اوحضرت عمروبن جموح يې په يوه قبرکي دفن کړي وه وروسته له پنځه څلويښتوکلونودوى قبرسيلاب راڅرګندکړدوى دواړوله زخمونوڅخه هغه ډول

---

۱ -عن القاسم قال:دخلت على عائشة فقلت ياامه اكشفي لي عن قبررسول الله صلى الله عليه وسلم وصاحبيه رضى الله عنهما فكشفت لي عن ثلاثة قبورسنن ابي داود۲/۴۵۹-

۲-وقداختلف العلماءفي الفن في الليل فكرهه الحسن البصري الاالضرورة وهذاالحديث ممايستدل له به وقال:جماهيرالعلماءمن السلف والخلف لايكره واستدلوابان اباابكرالصديق وجماعة من السلف دفنوليلا- بذالمجهود۴/۱۹۴-

۳- ولابأس بنقله قبل دفنه قيل مطلقا وقيل الى مادون مدة السفروقيده محمدبقدرميل اوميلين لان مقابرالبلدربمابلغت هذه المسافة فيكره فيمازاد.واما نقله بعددفنه فلامطلقا-ردالمحتار۳/۱۷۳-

ويني رواني وی بياحضرت جابرخپل پلارجنت البقيع ته نقل کړاوهلته يې دفن کړ.[1]له دې حديث څخه ځيني علمااستدلال کوي چې له دفن کولووروسته هم دمړي نقل کول جائزدي خوپه دې باندې تقريبا دټولې نړۍ دعلماواتفاق دي چې وروسته له دفن کولوڅخه دمړي انتقال ناجائزدی.

## ددفن کولوپرمهال په قبرباندې څادرونه نيول:

اسلام کې داسې حکم دی چې کله زنانه وفات شي نودهغې قبرته دورکوزولوپرمهال به خلک دهغې له قبرڅخه څادرونه تاووي ددې لپاره چې څوک يې ونه ويني آياداحکم دسړيولپاره هم دی؟په دې مسئله کې دعلماواختلاف دی علامه قرطبي په التذکره في احوال الموتى والاخره کې ددې لپاره خاص کړی يا ب راوړي(باب بسط الثوب على القبرعندالدفن)هلته يې يوحديث شريف نقل کړيدی هغه داچې حضرت سعدابن مالک يوه ورځ يوې جنازې ته لاړهلته يې خلکوته حکم وکړچې په قبرباندې تسجيه وکړی ځکه چې رسول اللهﷺ دسعدبن معاذپه قبرباندې تسجيه کړې وه.[2]علامه قرطبيليکلي چې تسجيه دنرلپاره هم ثابته ده.داحديث سنن الکبری کې هم امام بيهقي روايت کړيدی بيايې ليکلي دي چې داحديث ضعيف دی.

نوموړي په دې اړونديوبل حديث روايت کړيدی چې دښځې لپاره تسجيه ثابته ده اودنرلپاره جوازنلري بيليې ليکلي دي چې ددې حديث سندصحيح دی.اوددې حديث تقويه په بل حديث باندې هم شويده چې يوه ورځ حضرت علي يوې جنازې ته لاړ هلته خلکوپه قبرباندې تسجيه کړې وه نوموړي تسجيه وربانديې لرې کړه ورته ويې ويل:چې تسجيه يواځې دښځې لپاره ده.[3] مصنف ابن ابي شيبه کې هم په دې اړه احاديث روايت شويدی.

اوزموږاحنافوهم دغه مذهب دی چې تسجيه(په قبرباندې څادرونه نيول)يواځې دښځې لپاره ده کذافي ردالمحتار[4] واعلاءالسنن همداراز‌تلخيص الحبيرکې هم علامه ابن حجرداخبره ليکلې اوسبل السلام کې هم په دې اړوندمکمل تحقيق موجودی.ديادونې وړده چې دنرښځې لپاره به هم په قبرباندې تسجيه کيږي.

---

[1]- عن جابرقال:دفن مع ابي رجل فلم تطب نفسي حتى اخرجته فجعلته في قبرعلى حدة-صحيح البخاري۱/۱۸۰-

[2]- ان سعدبن مالک قال:امرالنبي صلى الله عليه وسلم بثوب فستر على القبرحين دفن سعدبن معاذ-التذکره۱/۲۷۱-

[3]- عن علي بن ابي طالب انه اتاهم قال:ونحن تدفن ميتا وقدبسط الثوب على قبره فجذب الثوب من القبروقال:انميصنع هذاباالنساء-سنن الکبری للبيهقي۴/۸۹- رقم الحديث ۷۰۵۱

[4]-ويسجي قبرها اى بثوب ونحوه استحبابا‌حال ادخالها القبرحتى يسوى اللبن‌على اللحد-ردالمحتار۳/۱۶۸-

## دښځي لپاره نعش(ډولی)مستحب ده:

کله چې ښځه وفات شي نوښايي چې نعش وربانديجوړکړای شي چې دې ته زمونږپه اصطلاح کې ډولی وايي.سلوة الکسيب في خصائص الحبيب کتاب کې ليکلي دي چې درسول اللهﷺ تررحلت وروسته بي بي فاطمې ډيرغم کاوه چاپوښتنه ورڅخه وکړه چې ولې دومره زياته غمجنه يې؟هغې ورته وويل:چې ځکه ډيره غمجنه يمه چې زماله مرګ څخه وروسته چې کله زه په کټ کې کيښودل شم نوخلکوته په ځمادقداندازه معلومه شي اوخلک به زمابدن ويني هلته يوه صحابيه وه داسماءبنت عميس په نوم باندې هغې ورته وويل:چې مه خفه کيږه ماته يوچل معلوم دی هغه داچې دحبشي دخلکوداسې عادت وه چې کله به زنانه وفات شوه بيابه يې نعش وربانديجوړاوه؛بيايې دانعش بي بي فاطمې ته دهغې په ژوندکې جوړکړچې دهغې اطمنان حاصل شي.[1]

بيابي بي فاطمې وصيت وکړ چې کله زه مړه شوم په مابانديې به همدادول نعش جوړوی؛تردې وروسته صحابه وپه دې باندې تعامل پيل کړالی يومناهذا.کذاقال علامه ابن عبدالبرفي الاستيعاب وعلامه عيني في البنايه؛نوروډيروعلماوهم دبي بي فاطمې په مناقبوکې همداخبره ليکلې ده.نودښځې اونرښځې دواړولپاره دنعش جوړول مستحب دي.

## دهديرې شنه بوټي قطعه کول:

که په کومه هديره کې شنه بوټي ياهم ونې وي دهغوپرې کول ناروادي زمونږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکې دامسئله ليکلې ده منهم:اعلاءالسنن،حلبي الکبير،بريقه وايضا ردالمحتار.خوکچيرې دانباتات وچ شوي وي بيايې پرې کول جوازلري.[2]

اودصالحينوخلکوسره هم دخان دفن کول جائزدي ځکه چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي:دفنواموتاکم وسط قوم الصالحين.[3] خوداحديث ضعيف دی؛لکه څرنګه چې دونياکي خلک له صالحينو څخه ګټه ترلاسه کوي همدارنګه له مرګ څخه وروسته هم له دوی څخه ګټه پورت کيدلای شي.زمونږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکې دامسئله ذکرشويده.

---

[1] عن هشام عن ابيه أن اسماءبنت عميس اول من احدث النعش-مصنف ابن ابي شيبة-رقم الحديث ۱۱۱۶۴

۲-يکره ايضاقطع النبات الرطب والحشيش من المقبرةدون اليابس...بانه مادام رطبا يسبح الله فيونس الميت وتنزل بذكره الرحمة-ردالمحتار-۳/۱۸۴

۳-عن ابي هريره قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ادفنوموتاكم وسط قوم الصالحين فان الميت يتأذى بجارالسوءكمايتأذى الحي بجارالسوء-المقاصدالحسنة۱/۷۵- رقم الحديث ۴۷

## په قبرباندې مالګه کېښودل:

خینوخلکوکې عادت وي چي په قبرونوباندې مالګه ږدي آیاداپه شرعه کې جوازلري؟اماچي په دې اړه څومره پلټنه وکړه یواخي په دریو کتابونوکي مي دامسئله وموندله چي یوله هغوڅخه الدین الخالص دغیرمقلدعالم نواب صدیق حسن خان القنوجي کتاب ده نوموري لیکلي دي چي دادول عمل شرعاجوازنلري اوپه مونږاحنافوکي علامه شاه عبدالعزیزپه فتاوای عزیزیه کې لیکلي اوعلامه لکنوي په مجموعة الفتاى کې لیکلي دي چي دمالګي کېښودل په قبرباندې شرعا جوازنلري.

## په قبرباندې لنده لښته درول:

په قبرونوباندې لندې لښتي درول یاوني کېښودل یاهم بوټي وریاندې کرل څه حکم لري؟داهم دعلماوترمینځ یوه اختلافي مسئله ده؛بعضي علماءوایي چي لنده لښته په قبرباندې درول جوازنلري چي یوله دې علماوڅخه امام خطابي البستي دې نوموړی زمونږ دافغانستان دهلمند دولایت دی،بل قاضی عیاض اوعلامه ترتوشي دی؛دوی وایي چي لنده لښته درول په قبرباندې جوازنلري څکه چي رسول اللهﷺ په یوه قبرباندې دادول عمل ترسره کړی وه اوهغه دنبی کریمﷺ خصوصیت وه.

امام شهاب الدین په بیضاوي باندې شرحه کړې چي نوم یي دی عنایة القاضي ددې کتاب په ترجمه کې نواب صدیق حسن خان القنوجي هم لیکلي دي چي دادرسول اللهﷺ خصوصیت وه دهغه دلاس په برکت الله تعالی له دې قبرڅخه دعذاب تخفیف راوستی وه.خوپه مونږاحنافوکي علامه عبدالحي په ابرازالغی کتاب کې په نواب صدیق حسن خان باندې ردکړیدی. علامه قرطبي هم لیکلي دي چي دایوه واقعه ده دهندوستان په علماوکي دعلامه بنوري هم دغه رایه ده چي لنده لښته په قبرباندې درول جوازنلري.

علامه انورشاکشمیري په فیض الباري کې لیکلي دي چي ګلان کېښودل په قبرباندې جوازنلري؛دلندې لښتئ کېښودل یي هم مناسب ندي بللي.[1] علامه مفتي محمدشفیع هم دغه خبره لیکلي چي دادول عمل رسول اللهﷺ یوځل کړیدی اودادنبی کریمﷺ خصوصیت وه.

---

[1] -وقال العیني:ان القاءالریاحین لیس بشيء ولم یمنع عن انبات الشجرة وفي الفتاوی العالمکریه ان القاءالریاحین مفید قلت:والاعتمادعلی ماذکره العیني-فیض الباري ۲/۴۸۹-

خوپه دي مسئله کي دی عاجزبنده هم یوڅه تحقیق کړیدی چي آیادایوه واقعه ده که دوه یا هم دری واقعي دي؟لومړی به مخ وروکړخوو عمدة القاري دعلامه عیني ته نوموړي لیکلي دي چي داپه اسلام کي یوه واقعه نه بلکه دری واقعي دي چي نبي کریمﷺ په قبرونوباندي لښتي درولي دي څکه چي په یوه حدیث کي راځي چي نبي کریمﷺ یوه لښته راواخیستله اوپه مینځ یي دوه ټوټي کړه یوه ټکړه یي په یوه قبراوبله یي په بل قبرباندي کیښودله.[1]

بل حدیث شریف کي راځي چي رسول اللهﷺ دوه لښتي له بیلابیلوونوڅخه راواخیستي یوه لښته یي په یوه قبر اوبله یي په بل قبرباندي کیښودله.[2]اوپه دي دوواقعوکي لومړی واقعه په مدینة المنوره کي وه اودویمه واقعه چي دحضرت جابر بن عبدالله حدیث دی هغه په سفرکي وه.علامه ابن حجرفتح الباري کي لیکلي،علامه عبدالحي ابرازالغي کي لیکلي اوعلامه عیني عمدة القاري کي لیکلي دي چي دادواړه بیلابیلي واقعي دي.[3]

بل حدیث په صحیح ابن حبان اومجمع الزواندکي راځي چي رسول اللهﷺ یوه ورځ په یوه قبرباندي تیریده یوه لښته یي دمړي دسرلوري ته کیښوده اوبله یي دپښولوري ته کیښوده.[4]علامه ابن حجر،علامه لکنوي اوعلامه قسطلاني هم داحدیث په خپلوکتابوتوکي نقل کړیدی.علامه عیني عمدة القاري کي لیکلي دي چي دایوه نه بلکه دری بیلابیلي واقعي دي.

اوددي عاجز له لوري یوه څلورمه هم درسره واوری هغه داچي په مسنددامام احمد بن حنبل اومعجم الکبیردعلامه طبراني کي له حضرت یعلی بن الساریه څخه یوحدیث روایت شویدی چي رسول اللهﷺ په یوه

---

1- عن ابن عباس قال:مرالنبي صلى الله عليه وسلم بحائط من حيطان المدينة اومكة فسمع صوت انسانين يعذبان في قبورهما فقال النبي صلى الله عليه وسلم يعذبان وما يعذبان في كبير ثم قال بلى كان احدهما لايستترمن بوله وكان الاخريمشي النميمة ثم دها بجريدة فكسرها كسرتين فوضع على كل منهما كسرة فقيل له يارسول الله لم فعلت هذاقال لعله يخفف عنهمالم تيبسا- صحيح البخاري۱/۳۴-

2-وفي حديث جابر:امرعليه السلام جابرا فقطع غصنين من شجرتين كان النبي صلى الله استتربهما عندقضاءالحاجة ثم امرجابرافالقى غصنين عن يمينه وعن يساره حيث كان النبي صلى الله عليه وسلم جالسا،وان جاب ساله عن ذالک فقال:ان مررت بقبرين يعذبان فاحببت بشفاعتي ان يرفع عنهما مادام الغصنان رطبتين-عمدة القاري- ۳/۱۲۰

3- انها قضيتان،والمغايرة بينهما من اوجه الاول:ان هذه كانت في المدينه،وكان مع النبي صلي الله عليه وسلم جماعة وقضية جابر كانت في السفر وكان خرج لحاجته فتبعه جاب وحده- عمدة القاري۳/۱۲۰-

4-عن ابي هريره مررسول الله صلى الله عليه وسلم على قبرفقال:ايتولي بجريدتين فجعل احداهما عندرأسه والاخرى عندرجله- مجمع الزوائد- ۳/۵۷ رقم الحديث ۴۲۹۵

قبرباندي تيريده يوه لښته يي راواخيستله په دي قبر يي کينوله.[۱] بيايي ليکلي دي چي اسنادهذالحديث اسنادحسن.نوځلورخله چي رسول الله ﷺ يو عمل ترسره کړی وي آياهغه به دهغه خصوصيت وي؟

په بخاري شريف کي چي حضرت بريده ابن حصيب وصيت کړی وه چي کله زه مرشوم نوزماپه قبرباندي به لندي لښتي درو ی.[۲] له دي موقوف حديث سره تولي پښخه واقعي شوی.

اوپه شرح الصدورکي علامه سيوطي له تاريخ دابن عساکرڅخه يوحديث نقل کړی چي يوه ورخ نبي کريم ﷺ په يوه لاره باندی تيريده هلته يي په يوه قبرباندي لښته کينوله.[۳]يابه داحديث هغه وي چي امام احمد اوامام طبراني روايت کړيدی اويادابل حديث دی؛که داحديث له هغه پرته بل حديث وي نوله دي سره شپږواقعي شوی کني پښخه خودي نوکله چي پښخه ياشپږواقعي په اسلام کي راغلي وي آيا بيابه هم په قبرباندي لنده لښته ياهم ګلان کينودل ناجائزوي؟

علامه شامي په خپل کتاب ردالمحتارکي ددي لپاره خانګړی عنوان راوړيدی(وضع الجريدة على القبور)هلته يي ليکلي دي چي دلندي لښتي درول په قبرباندي مستحب عمل دي.[۴] طحطاوي على الدر المختار،فتاواي عالمګريه اوميرقاة کي هم ددي په جوازباندي فتوی شويده.[۵]

اعلاءالسنن کي هم علامه ظفراحمد ددي لپاره باب خانګړي کړيدی(غرض الجريدة على القبر)هلته يي هم ددي په جوازباندي فتوی کړيده.همدارنګه علامه خليل احمدسهارنپوري په بذل المجهودکي ليکلي دي چي لنده لښته په قبرباندی درول ياهم نيالګي ورباندی کينودل بلکل جوازلري.[۶]

---

[۱]- عن يعلى ابن الساريه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مربقبرفقال ان صاحب هذالقبر يعذب في كبير ثم دعا بجريدة فوضعها على قبر فقال لعله ان يخفف عنه ما دامت رطبة-رواه احمد في مسنده باسناد حسن۴/۱۷۲-،واتحاف خيرة المهرة۷/۹۴-،ومجمع الزوائد۳/۱۴۱-.
تخريج حماسي.

[۲]-قال اوصى بريدة ان تجعل في قبره جريدتان-(شرح الصدور/۳۰۵)

[۳]-ان ابابرزة الاسلمي كان يحدث ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مر على قبروصاحبه يعذب فاخذجريدة فغرسهافي القبروقال:عسى ان يرفه عنه مادامت رطبة وكان ابوبرزة يوصى اذامت فضعوا في قبري معي جريدتين-(شرح الصدور/۳۰۵)

[۴]-ودليله ماوردفي الحديث من وضعه عليه السلام الجريدة الخضراءبعدشقها نصفين على القبرين اللذين يعذبان وتعليله بالتخفيف عنهما....ويؤخذمن ذالك ومن حديث ندب وضع ذالك للاتباع-ردالمحتار۳/۱۸۴-

[۵]-ومن ثم افتى بعض الايمة من المتأخري اصحابنا بان ماعتيد وضع الريحان والجريد سنة لهذالحديث-ميرقاة المفاتيح۲/۵۳-

[۶]- قلت:لايلزم من كوننا لانعلم ان يعذب ام لا؟ان لانتسبب له في امر يخفف عنه العذاب ان لوعذب كمالايمنع كوننالاندري ارحم ام لا؟ان ندعوا له بالرحمة وليس في السياق مايقطع انه باشرالوزع بيده الكريمة بل يحتمل ان يكون امربه وقدتاسى بريدة بن الحصيب الصحابي بذالك فاوصى ان يوضع على قبره جريدتان-بذل المجهود۱/۱۵-

# په قبرباندي ګلان کېښودل:

آیاپه قبرونوباندي ګلان کېښودل جوازلري؟په دي مسئله کي دعلماواختلاف دی علامه بنوري معارف السنن کی لیکلي دي چي جوازنلري.[1]علامه عیني هم لیکلي دي چي ګلان کېښودل په قبرونوباندي ناجائزدي ځکه چي دادول عمل اوس مهال دغیرمسلموعادت جوړشویدی.

خوبیاهم که څوک یی ړدي تشددندی پکارځکه چي هرډول نباتات دالله تعالی تسبیح وایي نبی کریمﷺ فرمایلي دي:چي مالم ییسا.[2]یعني ترهغه وختة دالله تعالی تسبیح وایی ترڅوچي لوندوالی پکي موجودوي؛اوپه دي سره مړوته فائده رسیږي خوغوره دادچي کښښودل شي.

## له مودي څخه وړاندي دماشوم پیداکیدلوحکم:

آیاسقط(هغه ماشوم چي له مودي څخه وړاندي پیداشي)لپاره غسل شته اوکنه؟که دماشوم ټول اندامونه مکمل وي اودژوندعلامي پکي ځرګندي شي نودي ماشوم ته به غسل ورکول کیږي.په دي ا[illegible] النیره کتاب کي دعلماواختلاف ذکرشویدی بیایي لیکلي دي چي زموږداحنافومختارمذهب دادی چي غسل به هم ورکوي،جنازه به هم وربادي کوي اوکفن به هم ورکول کیږي.

## دقبردعذاب بیان:

خینوانسانانوته به الله تعالی دقبرعذاب نه ورکوي دبیلګي په توګه:شهیدان،دمسلمانانوکوچني ماشومان اوداسي نور..په موږاحنافوکي علامه ابن الهمام په المسایره علی المسامره چي داپه عقائدوکي مشهورکتاب دي هلته یي لیکلي دي چي یادوشویوکسانوته دقبرعذاب نشته.اوعلامه قتل بغا په دي کتاب باندي تعلیق کړی هلته یي هم دغه خبره لیکلي ده.

علامه سیوطي په شرح الصدورکي لیکلي اوعلامه ابن حجرپه بذل الماعون کي لیکلي دي چي دطاعون مرض والاته هم الله تعالی دقبرعذاب نه ورکوي.اوخیني علماخولاداوایي چي ټولوشهیدانوته

[1] - فترى العامة يلقون الزهورعلى القبور،وبالاخص على قبورالصلحاءوالاولياء،والجهلة منهم ازدادوااصراراعلى ذالک،وتفاكوفيه،واوضحت ذالک منشاءفي الجمله لعقائدالفاسده تأباها الشريعة النقيه،وظنوذالک سببالثواب والاجرالجزيل....وبالجمله هذه بدعة مشرقية منكرة-معارف السنن۱/۲٦۵-

[2] - سبق تخريجه.

الله تعالی دقبرعذاب نه ورکوي کوم پنځه دوله شهداءچي رسول اللهﷺ په یوه حدیث شریف کي بیان کړیدي.[۱]

خلکوکي مشهوره ده چي څوک دجمعي په ورځ باندي مرشي هغه ته هم الله تعالی دقبرعذاب نه ورکوي آیاداخبره صحیح ده؟ماپخپله چي په دي مسئله کي څومره تحقیق وکړسل په سلوکي څه معلومات راته حاصل نشول.خوځینوعلماوليکلي دي چي کله انسان دجمعي په ورځ باندي مرشيهغه که کافروي اوکه مسلمان وي په دي ورځ به الله تعالی عذاب نه ورکوي اوپه نوروورځوکي به عذاب ورکول کيږي،ځينونورو علماوليکلي دي چي که یوڅوک دجمعي په ورځ باندی مرشي نولږوخت به الله تعالی عذاب ورکوي ترهغه وروسته دقیامت تروزځي عذاب نه ورباندي راځي اوځينو علماوليکلي دي چي له سره به الله تعالی عذاب ته ورباندي راولي.والله اعلم.

## تردفن کولوورانديږ په تابوت کي دقبرعذاب نشته:

آیادمړي لپاره له دفن کولومخکي په تابوت یاهم یخچال کي دقبرعذاب شته اوکنه؟دي مسئله کي هم دعلماواختلاف دی علامه ابن الهمام په شرحه دالمسامره کي دااختلاف بیان کړی چي بعضي علماوایي چي مړي ته په تابوت کي دقبرعذاب شته اوځيني نورعلماوایي چي مړی په تابوت کي نه معذب کيږي.

خوصحیح خبره داده چي کله مړی دفن شي وروسته له دالله تعالی له لوري په قبرکي عذاب ورکول کيږي،که څه هم په تابوت کي ډيري شپې اوورځي ورباندي تيري شوي وي؛کذافی المسایره علی المسامره للعلامه ابن الهمام.

## دقبرعذاب حق دی:

دقبرعذاب په قرآنکريم اواحاديثوباندي ثابت دی علامه مفتي تقي په دي اره احکام القران کي یوه رساله شائع کړیده هغه ایتونه یي پکي راوړيدي کوم چي په اثبات دعذاب قبرکي راغلي دي؛چي یوله هغوایتونوڅخه داده چي الله تعالی فرمایي: { يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

---

۱-عن ابي هريره ان رسول الله صلي الله عليه وسلم قال:الشهداء خمسة المطعون والمبطون،والغرق،وصاحب الهدم والشهيدفي سبيل الله- صحيح البخاري۱/۳۹۷-

وَفِي الْآخِرَةِ ﴾[1] همدارنګه دقبردعذاب په ثبوت کي له رسول اللهﷺ څخه ډيراحاديث هم روايت شويدي.[2]

خومعتزله دقبرله عذاب څخه منکردي لکه شرح عقائدکي چي زمونږورسره خلاف دی؛علامه سيوطي په شرح الصدورکي په دي اروند ځانګړی باب راوړی(باب ثبوت عذاب القبر)هلته يې له څلويښتوصحابه و څخه په دي اړه احاديث روايت کړيدي چي دادتواترمرتبه ده،څکه چي دتواترپه لاندينی مرتبه کي لس کسان وي؛پاتي شول تابعين،تبع تابعين اوتردانن زماني پوری چي خبره رارسيدلي ده؛نودقبر عذاب بلکل ثابت دی.

همدارنګه دعقل له پلوه هم دقبرعذاب ثابت دی؛که څوک اعتراض وکړي چي ملاياونواسي وايي چي کله مړی دفن شي له هغه وروسته هغه ته ملکي راځي هغه ته عذاب ورکوي اوهغه چيغي ورته وهي؛نودمړي داآوازمونږولي نه اورو؟ايه دول چي مړی کيښودل شوی وي هغه دول وي؛کچيري ده ته په قبرکي عذاب ورکول شوی وی؛نوخامخابه دده په حالت کي تغيرراته؟

علامه عبدالوهاب الشعراني په خپل کتاب اليواقيت والجواهرکي دااعتراض نقل کړی.بيايي بيرته خواب هم ورته کړيدی اوعلامه قرطبي هم داخواب کړيدی چي يوڅوک ويده وي بياهغه په دی خپل خوب کي ودارشي،په سخت حالت کي وي؛کله چي راويښ شي په رښتياسترګی غوندي وي،خولي هم ورباندي راغلي وي؛ياځيني وختونه يوڅوک په خوب کي ويني چي دهغه دښمن مندی پسي وهي،داخوب ليدونکی هم مندي وهي يايي په خوب کي قتل کړی وي؛النده داچي داخوب ليدونکی که په څومره سخت حالت کی وي کوم ويښ خلک چي هلته ناست وي هغوی دده په تکليف باندي نه پوهيږي.[3] دقبردعذاب هم داسي مثال دی که مړی څومره په تکليف باندي وي ژوندیوته بي څه معلومات نه کيږي.

اودپورتني اعتراض لپاره بل څواب دادی چي دايوعالم دی اوهغه بل عالم دی چي هغه ته عالم دبرزخ ويل کيږي؛په دی دنياکي دانساتانومختلف عادتونه وي نوددي دنياقياس په هغي دناباندي نشي کيدلای.داخبره علامه ابن قيم کتاب الروح کي هم ليکلي ده؛نوموړي په دي خپل کتاب کي له يوه عالم

---

[1] سورة ابراهيم/۲۷.

[2] واخرج البخاري عن ابي هريرةقال:کان رسول الله صلى الله عليه وسلم يدعوااللهم اني اعوذبک من عذاب القبر.واخرج عن عائشة قالت:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم عذاب القبرحق-(شرح الصدور/۱۶۱)

[3] وهذاالواحدمنانائم الى جنب صاحبه فيعذب في النوم ويضرب ويألم وليس عندالمستيقظ خبرمن ذالک-(الروح/۹۴)

څخه نقل کړيدي چي په هسپانيه يااندلس کي خلکوويل:چي مونږيوه ورځ يومړی دفن کړترهغه وروسته مونږله دي قبرسره نږدي ناست وه مجلس موکاوه چي په دي وخت کي دقبرلوري ته يوه غواراغله قبرته يې غوږرونيوه وداره شوه بيرته يې مندي کړي دي غواڅوځلي داعمل تکرارکړ؛که دقبرعذاب نه وی نوولي داغواله دي قبرڅخه داريدله؟

يوه حديث شريف کي راځي چي دقبرعذاب هرشی اوري يواځي انسانان اوپيريان يې نشي اوريدلای. (۱) اوبل په اسونوکي يومرض دی بغل ورته ويل کيږي؛اس چي کله ودارشي بيايي دامرض ختميږي؛په مخکنی زمانه کي به خلکوديهودواونصاری وهديروته بول اس به چي کله هديری ته ورسيدوبه دارشوبيرته به يې مندي کړي په دي دول به الله تعالی له اسونوڅخه دامرض ختماوه؛کذافي کتاب الروح للعلامه ابن قيم.

## دقبرعذاب ترقبرپوري ندی خاص:

آيادقبرعذاب به يواځي هغه چاته ورکول کيږي چي هغه له مرګ څخه وروسته دفن شوی وي اوکه پرته له دفن کولوهم دقبرعذاب شته؟

*په دي اړوندعلماوليکلي دي چي دقبرعذاب يواځي ترقبرپوري ندی خاص دمثال په دول که څوک په درياب کي اوبه دوب کړي،يايې کوم درنده وخوري؛سره له دي چي دی له مرګ څخه وروسته دفن شوی هم ندی خوبيابه هم ده ته الله تعالی دقبرعذاب ورکوي.(۲)

بياپه دي کی هم دعلماواختلاف دی چي دقبرعذاب يواځي دروح لپاره دی که جسدته هم دادول عذاب ورکول کيږي؟په دي مسئله کي هم دعلماواختلاف دی ددواړولوروڅخه علماوخپل دلائل وړاندي کړيدي؛خوعلامه ابن قيم کتاب الروح کي ليکلي دي چي روح اوجسددواړوته به دقبرعذاب ورکول کيږي.(۳)

ددي لپاره يې داسي مثال وړاندي کړيدی چي که يوڅوک ړوندوي اوبل شل وي دوی دواړه چي کله پردي باغ ته دغلالپاره لاړشي؛نودلته خوډرانده سترګي څه نهويني اودشل سترګي روغي دي

[1]-عن انس قال:قال النبي صلى الله عليه وسلم ....ثم يقمعه قمعة بالمطراق يسمعهاخلق الله كلهم غيرالثقلين-كنزالعمال۱۵/۶۳۶-

[2]-قال العلماء:عذاب القبرهوعذاب البرزخ اضيف الى القبرلانه الغالب والافكل ميت...قبراولم يقبرولوصلب اوغرق في البحر...اوذري في الريح-(شرح الصدور/۱۶۴).فاماسوال نكيرومنكرفقال اهل السنة انه يكون لكل ميت سواءكان في قبره اوفي بطون الوحوش اوالطيوراومصاب الريح بعد ان احرق وذري في الريح-اليواقيت والجواهر۲/۱۳۸-

[3]-بل العذاب والنعيم على النفس والبدن جميعا باتفاق اهل السنة والجماعة-(الروح/۲۳۷)

خوبيني يې کارنه کوي؛نودلته دارونډشل ته ووايي چې زماخوسترګي کارنه کوي زه به تاپه خپلواوږوباندې سپورکړم ته له ونوڅخه ميوه راشکوه ماته يې هم راکوه اوخپله يې هم خوره.شل ورته ووايي چې سمه ده کله چې دوی دواړه په خپل کارپيل وکړي نودلته په دوی باندې دباغ ځښتن راشي اوس به دادباغ ځښتن کوم يووهي؟ړوندبه ورته ووايي چې ته خوماوينې چې زماسترګې ړندې دي زه کله ميوه راشکولای شم.شل به ورته ووايي چې ته خوماوينې چې زماپښې کارنه کوي زه دلته پخپله نه يم راغلی.نودلته دباغ ځښتن مجبوردی چې دواړه ووهي.

دروح اوجسدترمينځ به هم داډول نزاع وي روح به وايي چې ياالله تعالی تاته خوڅرګنده ده چې زه يوپاک شی وم هيڅ مې هم له وسه نه کيدل ګناهونه خوټول جسدکول؛جسدبه وايي چې ياالله تعالی تاته خومعلومه ده چې زه يوکالبوت وم هيڅ عمل مې هم پخپله نشوکولای همداروح وه چې په ماباندې يې هرڅه کول؛نوالله تعالی به روح اوجسد دواړوته عذاب ورکړي.[1]والله اعلم.

# دقبرعذاب به په ناستي ورکول کيږي:

کله چې پرښتې انسان ته دقبر عذاب ورکوي داعذاب به په کوم هيئت باندې وي؟پدې اړه علماوليکلي دي چې دقبرعذاب به په ناستي باندې ورکول کيږي.[2]

اوبعضوخلکوکې مشهوره ده چې رومان نومې پرښتې په په قبرکې پوښتنې کوي ايادا خبره سهي ده؟په دې اړوند علامه ابن حجراوعلامه سيوطي ليکلي چې اسنادهذالحديث واهي؛يعني له کوم حديث څخه چې علماءددې استدلال کوي داحديث داستدلال وړندی.

# دنکيراومنکرپه نوم باندې ډيرې پرښتې دي:

کچيرې نکيراومنکردوه پرښتې وي نوپه دنياکې خوپه يوه وخت په سلګونوخلک مره کيږي؛نوڅرنګه کيدلای شي چې دادوه پرښتې دې په يوه وخت کې ټولومړوته ورسيږي اوله دوی څخه دې پوښتنې وکړي؟

---

[1] -عن ابن عباس قال:مازال الخصومة بين الناس يوم القيامة حتى يخاصم الروح والجسد فيقول الروح يارب اني كنت روحاجعلتني في هذاالجسد فلاذنب لي ويقول الجسد يارب اني كنت جسداخلقتني ودخل في هذاالروح كنت القوم وبه كنت اقعدوبه اذهب وبه اجئ لاذنب لي قال:فيقال اناقضي بينكما اخبراني عن اعمى والمقعدخلاحائطا الخ-(الروح/۲۳۸)

[2] -عن انس بن مالک ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:ان العبداذاوضع في قبره وتولى عنه اصحابه انه ليسمع قرع نعالهم اتاه ملكان فيقعدانه-صحيح البخاري۱۸۳/۱-

ددې لپاره سم ځواب علامه سیوطي شرح الصدورکي کړي هغه داچي نکیراومنکردوه ملکي نه دي په دي نوم باندې ډیرې ډلې دپرښتودي چې دټولوشني سترکي اویودول شکلونه دي.[1]

## نکیراومنکربه له چاڅخه پوښتني کوي؟

په دي مسئله کي علامه سیوطي اوحافظ عبدالبریوه طرف ته دي؛علامه قرطبي اوعلامه ابن قیم بل طرف ته دي.علامه سیوطي اوحافظ ابن عبدالبروایي: چې پوښتني به یواځي له مسلمان اومنافق څخه کیږي له کافرڅخه دنکیراومنکرپوښتني نشته.

علامه قرطبي اوعلامه ابن قیم وایي:چې له کافرسره به هم نکیراومنکرسوال اوځواب کوي.په مونږاحنافوکي علامه انورشاه کشمیري فیض الباري کي دعلامه سیوطي رایي ته ترجیح ورکړیده.[2]

## نکیراومنکربه په کومه ژبه پوښتني کوي؟:

په دي اړه علامه ابن حجرلیکلي دي چې دحدیث شریف له ظاهر څخه خوداسي معلومیږي چې نکیراومنکربه په عربي ژبه باندې پوښتني کوي.

خوعلامه سیوطي له علامه ابن ملقن څخه چې نوموړی دامام شافعي دمذهب عالم دی نقل کړیدی چې دنکیراومنکرپوښتني به په سوریاني ژبه باندې وي؛خوداخبره سل په سلوکي نده صحیح اوځینونوروعلماولیکلي دي چې له هرچاڅخه به په خپله ژبه پوښتني کیږي؛والله اعلم باالحال.

## له ځینوعلماوسره په قبرونوکي مساهله:

له بعضوعاملینوعلماوسره په قبونوکي مساهلي هم کیږي؛علامه سیوطي په طلوع السریا کتاب کي لیکلي دي چې یزیدبن هارون په نوم باندې یوعالم ؤه نوموړی چې کله وفات شو وروسته ترهغه چاپه خوب باندې ولیده پوښتنه یې تری وکړه چې څه حال دې دی؟هغه ورته وویل:چې کله نکیراومنکر پرښتي راته راغلي په قبرکي یې راکینولم زماپه ګیره کي خاورې وې هغه یې راباندې څندوهلي پوښتنه یې راڅخه وکړه چې:من ربک،من نبیک ومادینک؟

---

[1] - ان تکون ملائکة السؤال جماعة کثیره یسمی بعضهم منکراوبعضهم نکیرافیبعث الی کل میت اثنان منهم -(شرح الصدور/۴۶)

[2] - ان السؤال في القبرعندبعضهم یکون من المسلم والمنافق دون الکافر-فیض الباري۲/۴۷۵-

ماورته وویل:چی داحدیث شریف مااتیاکاله طالبانوته ویلی دی تاسي اوس ددي پوښتنه له ماڅخه کوی؟ځی خپل کارکوي، نوموری وایي چی هیڅ خواب می ورنکړاله دي سره پرښتوبوبل ته وکتل اوله ما څخه لاړی.

اوعلامه سیوطي په دی خپل کتاب کي دامام الحرمین ابوالمعالي حکایت نقل کړیدی چي کله نوموری وفات شواودفن کړای شو،نوپه دی وخت کي نکیراومنکرملکي ورته راغلي دی یی په خپل قبرکي راکیناوه هغوی پوښتني ورڅخه کولي ده هیڅ دول خواب هم نه ورکاوه،نوموري ورته وویل:چی داخومعلومی خبری دي تاسي ولي داپوښتني له ماڅخه کوی؟پرښتوورته وویل:چی ای ابوالمعالي نوم کنومة العروس ولاتبالي.یعني ای ابوالمعالي ویده شه دناوي په شان هیڅ باک نشته دربانديٍ.

اوعلماویوه بله واقعه له یوه عالم څخه نقل کریده چی هغه ته په قبرکي پرښتي راغلي پوښتنه یی ورڅخه وکره چی من ربک؟هغه بیرته خواب په من باندي ورکاوه،پرښتوبیاپوښتنه وکره چی من نبیک؟هغه بیاهم تیرخواب تکرارکرپرښتي درباندي پوی شوي دي سری کی څه کمال شته،پرښتوپه من استفهامي باندي پوښتنه کوله ده بیرته په من موصولي باندی خواب ورکاوه،یعني الذي نبیک،نوکله ناکله دادول مساهلي هم له علماوسره کیږي.

په مونږاحنافوکي یولوی عالم تیرشویدی علامه ابوبکرکاساني مشهورکتاب یي ده بدائع الصنائع دده په اړه علامه عبدالحی لکنوي په الفوائدالبهیه کتاب کي لیکلي دي چی کله نوموری وفات کیده دااَیت کریمه یي له خان سره ویلی{ يُثَبِّتُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱلْقَوْلِ ٱلثَّابِتِ }[1]کله چی بالقول الثابت ته ورسید ژبه یي په دي باندي ودریدله چي داهم یولوی بشارت دی.

اوعلامه ابوزرعه الرازي ددنیالوی محدث تیرشویدی،التذکره کي علامه قرطبي لیکلي دي نوموری چي کله وفات کیده شاګردان یي ورته راغونډشوی وه ددي حدیث سندیی له خان سره ویلی چی:من قال لااله الاالله دخل الجنة.[2] شاګردانوبه ددي حدیث دسندیوه برخه ولوستله بیابه یی قصدا خان بندکرچی زمونږداستادرافکرشي اونورحدیث دی ووایي،ځکه چی په اسلام کی دا حکم دی چی محتضرته به تلقین کیږي،شاګردانوداعمل څوځله تکرارکربلاخره دابوزرعه ورباندی فکرشوندی

---

[1] ـسورة ابراهيم/۲۷

[2] ـحدثني اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحة الانصاري عن ابيه عن جده قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من قال لااله الاالله دخل الجنة.المستدرک علی الصحیحین۴/۲۷۹- رقم الحدیث ۷۶۳۸

حديث سنديي پيل کرچي حدثنافلان عن فلان عن فلان عن النبیﷺ من قال لااله الاالله بس په همدې خای يي ژبه ودريده اووفات شوتردې وروسته هاتفي غږوشوچي دخل الجنة.په دې سره ابوذرعه باندې په دنياکي دجنت زيرى وشو؛نوموړى لوى محدث،امام الائمه في الحديث اوامام دجرحي اوتعديل وه.

## په قبرکي لمونځ:

ثابت ابن اسلم البناني په دونياکي لوى عالم تيرشويدى؛نوموړى لوى محدث اوتابعي وه دده په اړه علامه لکنوي په اقامة الحجة کتاب کي ليکلي دي چي حميدطويل وايي چي کله مونږاسلم البناني دفن کاوه،کله موچي دهغه په لحدباندې خښتي کيښودلي په دې وخت کي يوه خښته لاندې لحدته وروغورځيده نوموړى وايي چي کله ماوروکتل نودى په لمانځه باندې ولاړوه؛پريوتلي خښته موبرابره کړه خاورې مووړباندې واړولي په دې ډول ددفن مراسم ترسره شول؛نوموړى وايي چي تردې وروسته مونږداسلم البناني کورته ورغلو يوه لوريي وه له هغې څخه موپوښتنه وکړه چي ستاډپلاڅه عادت وه؟هغې وويل:چي زماپلاربه هروخت داسي دوعاکوله چي ياالله تعالى زما له لمانځه سره ډيره زياته مينه ده ته ماپه قبرکي هم په دې عبادت مشغول کړې.

علامه عبدالوهاب الشعراني په اليواقيت والجواهرکتاب کي ليکلي دي چي په دوناکي دچاله کوم شي سره مينه وي الله تعالى به هغه عبادت په قبرکي هم ورته نصيب کړي؛نوموړي په خپل کتاب کي له ډيروعلماوڅخه دادول واقعي نقل کړيدى کومه چي وړاندې ذکرشوه؛زماپه خپله له مطالعي سره ډيره مينه ده الله تعالى دې مونږپه قبرکي هم په دې عبادت باندې مشغول کړي.

## دعلامه علي الرازي حکايت:

نوموړى په دنياکي لوى عالم تيرشويدى کله چي دى وفات شووروسته ترهغه چاپه خوب کي وليد؛په دې خوب کي يي له ده څخه پوښتنه وکړه چي الله تعالى څه ډول معامله درسره وکړه؟هغه په خواب کي وويل:چي کله دالله تعالى په حضورکي دهغه محاسبي ته ودريدم،نوزمامخي ته يوکاغذ کيښودل شوچي هغه زما دعمل ليک وه؛الله تعالى راته وويل:چي لوله مادهغه ليک لوستل پيل کړل کله چي يوخاى ته پکي ورسيدم نورمي له شرم څخه نشولوستلاى؛الله تعالى راته وويل:چي وايه خوماهغه کاغذنورنشولوستلاى؛ځکه چي زه يوعالم وم ددېرخجالت له وجهي مي دمخ پوستکى آن پښوته وغورځيد؛هغه داوه چي يوه ورځ ماديوه هلک عجزې ته دشهوت په نظرکتلي وه؛نوځکه له الله تعالى څخه دومره زيات وشرميدم.

## په مړي شاهدي ويل:

خلکوکي عادت دی چي کله دفن کړي بياپه ډوی کي يوتن غږکوي چي ټول شاهدي ورباندي ووايی؛بياداټول خلک وايي چي مونږشاهدي وايوچي دامتوفی ښه سړی وه که څوک يې پيژني اوکه يې نه پيژني ټول په مړي باندي شاهدي وايي؛داپه خلکوکي يوغلط رواج دی ځکه چي دشاهدي ويلوته هيڅ اړتيانشته ددي پرځای دي ښښه ورته وغواړي چي ياالله تعالی ويې ښښي اورحم ورباندي وکړي؛نوښايي چي دشهادت پرځای ټول خلک مړي ته دوعا وکړي.

## مړي پسي خيرات کول:

خلکوکي عادت دی چي کله دمړي دتدفين مراسم ترسره شي ترهغه وروسته په لومړی،دويمه اودريمه ورځ،همدارنګه په څلويښتمه ورځ اوترديِ وروسته ديوه کال په پوره کيدلوسره په مړي پسي خيراتونه کوي آيادديِ لپاره په اسلام کي څه اصل شته؟په دي اړوندزمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي ليکلي دي چي په لومړی،دويمه،دريمه اوڅلويښتمه ورځ باندي خيرات کول جوازنلري؛ددي لپاره له يوه حديث شريف څخه استدلال کوي چي:کنانعدالاجتماع الی اهل الميت صنعهم الطعام من النياحة؛ رواه احمدفي مسنده وايضااوردها ابن حبان في صحيحه.[1]

علامه شامي ردالمحتارکي ليکلي دي چي دمړي په لومړی،دويمه اودريمه ورځ باندي ډوډی ورکول يايي خوړل جوازنلري.[2]علامه علی قاری فتح باب العنايه کي همداخبره ليکلي،طحطاوي علی الدرالمختاراوبريقه کي هم دغه خبره ليکلي ده؛لنده داچي زمونږمذهب وايي چي دادول خيرات کول بدعت مستقبحه ده.

خودي عاجزته هم په دي اړه يوڅه معلومات شته هغه داچي په يوه حديث شريف کي راغلي چي نبي کريمﷺ يوه ورځ يوه مړي ته ورغی، رسول اللهﷺ ددي مړي له قبرسره ناست وه کله چي دمړي دتدفين مراسم ترسره شول؛فجاءت داعي امرأته.يعني ددي مړي دښځي داعي راغی امرأته کي ضميردمتوفی ښځي ته منسوب دی؛بيارسول اللهﷺ له صحابه وسره ددي ښځي کورته ورغی نبي کريمﷺ اوصحابه ددوډی خوړلولپاره کيناستل؛کله چي نبي کريمﷺ له هغه خوراک څخه مړی وکړه نوهغه مړیدنبي کريمﷺ په خوله مبارکه کي تاويده راتاويده؛نبی کريمﷺ وفرمايل چي زه فکرکوم

---

[1]-رواه احمد في مسنده۲۰۴/۲-

۲-ويكره اتخاذالضيافة من الطعام من اهل الميت لانه شرع في السرورلافي الشروروهي بدعة مستقبحة.وفي البزازيه يكره اتخاذالطعام في اليوم الاول والثالث-ردالمحتار۱۷۵/۳-

چې داپسه له داسي ځاڅخه اخستل شویدی چې دهغه دښبتن اجازه نه وه،ددی متوفی ښځه یی راوغوښتله پوښتنه یي ځني وکړه چې داپسه دي له کوم ځای څخه راوستلی وه؟هغې ځواب ورکړچې یارسول اللهﷺ ماباز ارته سړی لیږلی وه خوهلته پسه پیدانشو؛ بیازمونږدګاوندي په کورکي یوپسه وه خوددي پسه ښښتن په کورکي نه وه،دهغه ښځي دخپل خاوندله اجازي پرته ماته داپسه راکړ،نبی کریمﷺ وفرمایل چې زه یي نه خورم اسری اوفقری وته یي ورکړی.[1]

که خیرات ناجائز وی نوولي رسول اللهﷺ ددي مړي کورته ورته اوهلته یي خوراک کاوه؟نبي کریمﷺ دخوراک اراده کړي وه،خوپه دي وجه یي خوراک ونکړچې دپسه دښبتن اجازه نه وه،داحدیث امام ابوداودپه خپل سنن کي روایت کړیدی.اوعلامه علی قاري لیکلي دي چې له دي حدیث څخه دخیرات دجواز استدلال کیدلای شي.[2]

خوداحدیث داحادیثوپه نوروکتابونوکي په دي دول راغلی چې:فجاءامرأة من قریش.له دي څخه معلومیږي چې دابله ښځه وه،کذافي الدلائل النبوة،وسنن الدارقطني وایضا في مسنداحمد.

په دي اړوندبل حدیث په معجم الکبیردامام طبراني کي روایت شویدی چې حضرت عمران بن حسین دخپل وفات پرمهال وصیت کړی وه چې زما له مرګ څخه وروسته به په ماپسي حلاله کوی یعني حیوان به ذبح کوی.[3]خوددي حدیث سندضعیف دی،مجمع الزوائدکي علامه هیثمي لیکلي دي چې ددي حدیث په سندکي دفروه په نوم مجهول سړی دی.

اوپه دي اړوندبل حدیث په البدایه والنهایه کي راځي چې حضرت ابوذرغفاري دخپل وفات پرمهال وصیت کړی وه چې زماله مرګ څخه وروسته په ماپسي زماپسه حلال کړی اوغوښي/یي په خلکوباندي وخوری.[4]

---

[1] -عن عاصم بن کلیب عن ابیه عن رجل من الانصارقال:خرجنامع رسول الله صلی الله علیه وسلم في جنازة فرأیت رسول الله وهوعلی القبر....فلمارجع استقبل داعي امرأته فاجاب ونحن معه فجئ باالطعام فوضع یده ثم وضع القوم ثم وضع القوم فاکلوفنظرناالی رسول الله یلوک لقمة في فیه ثم قال:اجدلحم شاة اخذت بغیراذن اهلها فارسلت المرأة تقول یارسول الله اني ارسلت الی القیع....فلم یوجد فارسلت الی امرأة فارسلت الی بهافقال:رسول اله اطعمي هذاالطعام الاسری-مشکاة المصابیح۲/۵۴۴-

[2] -وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسناوامالوصیة باتخاذالطعام بعدموته لیطعم الناس ثلاثة ایام فباطلة علی الاصح؛وقیل یجوزذالک من الثلث وهوالاظهر-میرقاة المفاتیح۱۱/۸۵-

[3] -ان عمران بن حصین لماحضروفاته قال:اذاانامت فشدوعلي بطني عمامة،واذارجعتم فالحرو،واطعموا-مجمع الزوائد۳/۵- رقم الحدیث ۳۹۶۷

[4] -اذقدم عبدالله بن مسعود من العراق في جماعة من اصحابه فحضروا موته،واوصاهم کیف یفعلون به،وقیل:قدموبعدوفاته فولوغسله ودفنه،وکان قدامر اهله ان یطبخوا لهم شاة من غنمه لیأکلوه بعدالموت-البدایه والنهایه۷/۱۷۷-

همدارنګه په دې اړه يوبل مرسل حديث علامه سيوطي په طلوع السرياکتاب کې له سيدالتابعين حضرت عطاءڅخه نقل کړيدی هغه داچې کله يونيک انسان وفات شي نوتاسې په هغه پسې تر(۷)ورځوصدقې کوی؛ځکه چې نيک بنده الله تعالی تر(۷)ورځوپورې په قبرکې معذب کوي.وروسته تردې بياعذاب نه ورباندې راځي؛نوددې صدقې په وجه به الله تعالی له هغه څخه دعذاب تخفيف وکړي.اوکه متوفی بدانسان وي بياتر(۴۰)ورځوپورې صدقې ورپسې کوی.[1]

بياعلامه سيوطي په دې حديث باندې تحقيق کړی،ليکلي يې دي چې داحديث مرسل دی خوپه مرتبه دمرفوع کې دی؛نوموړي ليکلي دي چې زماپه زمانه کې هم داسې عادت دی چې کله مړی وشي نوخلک تر(۷)ورځوپه هغه پسې خيراتونه کوي؛زه پخپله هم په مړی پسې په خيرات کولوباندې دحرمت فتوی نه کوم سره له دې چې څينواحنافودحرمت فتوی هم ورباندې کړيده.

## دقرانکريم له تلاوت وروسته دمړي په کورکې خوراک کول:

دقرانکريم په تلاوت باندې اجره اخيستل حرام دي خودامسئله چې کله دمړي کوروالاخوراک تيارکړي اودقرانکريم قاريان هلته دتلاوت لپاره وروغواړي آيادعه قاريان له تلاوت وروسته ددې مړي په کورکې خوراک کولای شي؟

په دې اړوندعلامه شامي ليکلي دي چې خوراک يې ندی جائز.خوعلامه عبدالحی الکنوي ليکلي دي چې تبرعا روپۍ اخيستل په تلاوت دقرانکريم باندې جوازلري،شاه عبدالعزيزهم دغه خبره ليکلې ده؛دحضرت عماربن ياسراوحضرت سعدابن ابي وقاص ذکريې کړيدی چې هغوی دقانکريم دتلاوت په مقابل کې اجره ورکړې وه؛دوی وايي چې دمړي په کورکې خوراک کول هم جائزدي خوپه دې شرط چې له وړاندې څخه يې نه وي شرط کړی.

اوبل داحديث درسول اللهﷺ دی چې:ان احق ماتخذتم اجراکتاب الله.[2]نوچې روپۍ اخيستل جوازلري خوراک خوپه طريقه اولی جائزدی.

---

[1] قال طاوس ان الموتي يفتنون في قبورهم سبعافكانويستحبون ان يطعم عنهم تلك الايام- المطالب العاليه ۵/۳۳۰- رقم الحديث ۸۳۴

[2] - فقالوا:يارسول الله اخذعلى كتاب الله اجرفقال:رسول الله ان احق ماتخذتم عليه اجراكتاب الله-صحيح البخاري۲/۸۵۴

# دحیلي بیان:

حیله په قرانکریم باندې ثابته ده کماقال الله تعالی﴿ وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِب بِّهِ وَلَا تَحْنَثْ ﴾[۱] ددې واقعه داسې ده چې حضرت ایوب علیه السلام قسم کړی وه چې زه به خپله بي بي سل لښتې وهم،نوالله تعالی حضرت ایوب علیه السلام ته حیله اوچل وښوده چې سل کوچنی لښتې راواخله اوپه یوه خل دې خپله بي بي ورباندې ووهه،نوته به په دې خپل قسم کې بري شې.

همدارنګه حضرت یوسف علیه السلام هم دخپل ورورډپاتې کېدلولپاره حیله کړې وه چې داواقعه هم په قرانکریم کې ذکرده.له دې څخه علماءاستدلال کوي چې حیله په اسلام کې جوازلري.خوځینې نورعلماءبیااعتراض کوي چې دې ډول حیلوپه ورانډنیوادیانوکې جوازدرلود،خوصحیح خبره داده چې زموږپه دین کې هم حیله جوازلري.

په دې اړه په یوه حدیث شریف کې راځي چې دنبي کریم ﷺ په زمانه کې په یوه سپین ګیرې باندې چې ډیرکمزوری وه حدجاري کېده نبي کریم ﷺ ته خینوصحابه و وویل:که په دې سړي باندې حدجاري کړوکیدلای شي چې دی مړشي،نبي کریم ﷺ وفرمایل:چې یوشمراخ(دخرمادونې خانګه)راواخلئ چې سل کوچنی لښتې پکې وي په یوه خل یې ووهئ،بیاصحابه وهمداسې وکړل.[۲] داحدیث په ابوداود،مسنداحمد،مصنف عبدالرزاق اوتفسیردرالمنثورکې روایت شویدی.

اویوبل حدیث کې راځي چې نبي کریم ﷺ یوصحابي خیبرته ولیږه،کله چې داصحابي بیرته راغی نبي کریم ﷺ ته یې وویل:چې موږه یوه کیلوردي(بیکاره)خرما په دوه کیلوښه خرمابدلوله،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:چې یوځل بیکاره خورما په روپیوباندې خرڅوی بیاپه هغوروپیوباندې ښه خرما اخلئ په دې ډول به تاسې له سودڅخه په امن یې.[۳]

لنده داچې حیله په قرانکریم اواحادیثوباندې ثابته ده،خوداسې حیلې چې یوڅوک له خپل ځان څخه فرض یاواجب ورباندې ساقتوي،یاهم دالله تعالی ددین له احکاموڅخه ځان ورباندې بچ کوي دادول خیله بیاحرامه ده.اوداسې حیلې چې ځان له حراموڅخه ورباندې ژغوري اوحلالوته یې ورباندې

---

[۱]-سورة ص/۴۴ .

[۲]-اخبره بعض اصحاب رسول الله من الانصارانه اشتکی رجل منهم....فذکروذالک لرسول الله وقالوا:مارأینابأحد من الناس من الضرمثل هنالذی هوبه لوحملناالیک لتفسخت عظامه فامررسول الله ان یأخذوا له مأة شمراخ فیضربوه بهاضربة واحدة-سنن ابي داود۴۱۴/۲-

[۳]-عن ابي هریره ان رسول الله صلی الله علیه وسلم استعمل رجلا علی خیبرفجاءهم بتمرجنیب فقال:رسول الله اکل تمرخیبر هکذاقال لاوالله یارسول الله انالنأخذالصاع من هذابالصاعین والصاعین بالثلاثة فقال:رسول الله لاتفعل بع الجمع بالدراهم ثم ابتع بالدراهم جنیا-صحیح البخاري۲۹۳/۱-

وصل کوي بلکل جوازلري؛تفسيرروح المعاني،اعلام الموقعين،اغاثة اللهفان،الاشباه والنظائراوغمض العيون والبصائرداهغه کتابونه دي چې دحيلوپه اړونديي مکمل تحقيقات کړيدي.دلابنه تحقيق لپاره پورتنيوکتابونوته مراجعه وکړئ په حق به واقف شئ.

اوعلامه ابن قيم په خپل کتاب کې په دې اړه ليکلي دي چې حيلې په دوه ډوله دي چې يوډول يې مباحې اوبل ډول يې حرامې دي؛بيايې په دې دواړوډولونوباندې تحقيق کړيدی.خپله علماوهم ډيرکرته حيلې کړيدي دبيلګې په ډول امام احمدبن حنبل ته يووخت کې يوسړی راغی پوښتنه يې ورڅخه وکړه چې عبدالله بن المبارک دلته شته؟نوموړي دخپل لاس درغوي په مينځ باندې خپله ګوته کيښوده اوخواب يې ورکړچې نه دلته نشته.

کله چې انګريزان دخپل يرغل پرمهال په هندوستان کې دديوبندمدرسې ته ورسيدل هلته يې پوښتنه وکړه چې مولانامحمدقاسم نانوتوي شته؟داپوښتنه يې خپله له مولاناصاحب څخه وکړه خوپيژانده يې نه؛نوموړي پخپله پښه باندې يوخط کش کړاوويې ويل چې نه دلته مولاناقاسم نانوتوي نشته؛کذافي اعلام الموقعين.

اوبل يووخت کې امام ابوحنيفه ته په شپه کې يوسړی راغی امام صاحب ته يې وويل:چې ښځې ته مې ويلي دي چې کچيرې ترسهاره له ماسره خبرې ونکړې نوته دې په ماباندې په دريوطلاقونوسره طلاقه يې؛اوس ښځه ددې لپاره له ماسره خبرې نه کوي چې په دې ډول له ماڅخه طلاقه شي اوس څه چل وکړم چې ښځه راباندې طلاقه نشي؛امام صاحب ورته وويل:چې ورشه مؤذن ته ووايه چې اذان وکړي؛مؤذن چې کله اذان وکړښځې خپل ميړه ته وويل:څنګه درنه خلاصه شوم؟ميړه يې ورته وويل:چې نه يې راڅخه خلاصه شوې چل مې درباندې کړيدی تراوسه سهارندی راختلی په دې ډول ددې سړي ښځه په ده باندې طلاقه نشوه.علماوليکلي دي چې هرډول حيلې چې دهغوپه واسطه له حراموڅخه خان ژغورل کيږي جوازلري؛کذافي احکام القران ومبسوط کتاب الحيل.

## داسقاط حيله:

دغه کومې متعارفې حيلې اواسقاتونه چې په عرف کې رواج دي آياداشرعا جوازلري؟وراندې تردې چې په مقصودباندې پيل وکړوديادونې وړده چې اصل کې فديه په روژه کې راغلې ده خوعلماوپه قضايي لمونځونوکې هم مستحسنه بللې ده؛اوس مهال چې کومې متعارفې حيلې خلک په مړوپسې کوي داپه کتابونوکې په دوه قسمه دي؛بعضوکتابونوکې ليکلي دي چې دمجبورۍپه حالت کې به فديه ... ؛کذافي مراقي الفلاح،امدادالفتاح،طحطاوي على مراقي الفلاح،نورالايضاح،نهايه لابن

عماداوبحرالرائق دې تولوکتابونوکي ليکلي دي چې که چاروپې نه درلودلي غريب وه اوله ده څخه لمونخونه اوروژې قضاشوي وي؛نودده لپاره دې يوڅه روپۍ قرض کړي يوځوکسان دې کينوي په هغوی دې داروپۍ وګرخوي په دې ډول به دهغه فديه خلاصه شي.[1]

خوپه مونږ احنافوکي علامه شامي ردالمحتارکي ليکلي دي چې دغريب مجبوراوغيرمجبوتولولپاره به حيله کوي ډبيلکي په ډول که ديوچاتول عمر پنځوس کاله وي نودده له عمرڅخه دې دولس کاله منفي کړي څکه چې په دې کې دی غيرمکلف وه؛چې له دې سره به دده عمر اته ديرش کاله پاتې شي؛اوس به ددې اته ديرشوکلونولمونخونه حساب کړي خودهرې ورځې لمونځونه به شپږحسابوي څکه چې وترهم څانګړی لمونځ دی؛بيابه همدومره مقدارروپۍ راواخلي اوپه څلکوبه يې وګرخوي؛دادعلامه شامي رايه ده نوموړي په دې اړونديوه رساله هم ليکلي ده چې نوم يې دی شفاءالعليل هلته يې هم دغه خبره ليکلي ده.[2]

علامه نابلوسي هم فتاوای نابلوسيه کي همداخبر ه ليکلي اوفتاوای عالمګريه کې هم ليکلي دي چې دټولولپاره به حيله کوي برابره خبره ده که نروي اوکه ښځه،که لمونځونه ورنه قضاشوي وي اوکه نه وي قضاشوي دټولولپاره به يوډول حليه کيږي.

خوددې لپاره علماويولړشرائط هم وضعه کړيدی هغه داچې دقبض پرمهال به توکي نه کوي،قابض به حقيقي مالک ګرځوي،احتيال به يې مقصودنه وي آن تردې چې که بيرته يې ورنکړي هم شخړه به نه ورسره کوي.اوبل داچې قابض به غني نه وي کماقال الله تعالی{ إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ لِلۡفُقَرَآءِ وَٱلۡمَسَٰكِينِ }[3] زمونږپه متعارفوحيلوکي خواکثره خانان ناست وي،ديرملايان هم اوس خانان دي که خان ته هبه ورکول شي بلکل نه صحيح کيږي؛کذافي ردالمحتار.خواخيستل دروپيوبياغني ته هم جوازلري؛کذافي شفاءالعليل

---

[1]- فيخرج عنه وليه من ثلث ماترک لصوم کل يوم ولصلوة کل وقت حتی الوترنصف صاع من براوقيمته ....يدفع ذالک المقدارللفقيرفيسقط عن الميت بقدره ثم يهبه الفقيرللولي ويقبضه-(نورالايضاح/۱۰۴)

[2]- والاقرب ان يحسب ماعلی الميت ويستقرض بقدره بان يقدرعلی کل شهر اوسنة اويحسب مدة عمره بعدّاسقاط اثنی عشرة سنة للذکر وتسع سنين للانثی لانهااقل مدت بلوغها فيجب عن کل شهرنصف غراره قمح باالمدالدمشقي في زماننالان نصف صاع اقل من ربع المد فتبلغ کفارة ست صلوات لکل يوم وليلة نحومدوثلاث ....فيستقرض قيمتها ويدفع للفقيرثم يستوهبهامنه ويستلمهالتتم الهبة ثم يدفعها لذالک الفقيراولفقيراخر-ردالمحتار ۳/۶۴۵-

[3]-سورة التوبة/۵۹

اوبل داچې قبض کوونکی به ماشوم نه وي،غلام،کافراوليونی به هم نه وي؛انوکيدلای شي چې په دې سره يې الله تعالی ګناهونه معاف کړي؛بياکه داروپی په کوموباندې چې حيله شويده ټولې ورنکړي هم څه باک نلري.په اوسني دورکې خوله اسقاط څخه سم رواج جوړشويدی غوره داده چې چې بيخي بندشي څکه چې خلک يې شرايط نه عملي کوي.اوبل داچې اوس مهال خلکوداسقاط حيلې ته دواجبومرتبه ورکړې چې دادول مرتبه ورکول په شرعه کې جوازنلري.

## داسقاط په حيله کې دقرانکريم ګرځول څه حکم لري؟

په دې اړوندله فتاوای املح اوفتوح الشام دامام واقدي څخه علماونقل کړيدی چې حضرت عمربه داسقاط په حيله کې قرانکريم ګرځاوه اوحيله يې هم کوله؛خودې عاجزبنده په همدې يوې مسئلې پسې ټول فتوح الشام مطالعه کړخوچيرته مې هم دامسئله پکې ونه موندله؛مونږدامنوچې له عدم دوجدان څخه عدم دشي نه راځي خومادامسئله په دې کتاب کې پيدانکړه ددې لپاره چې خبره ښه کره شي تاسي يې هم وګورئ.

اوفتاوای املح خويوغيرمشهورکتاب دی چې ماپه ځپله تراوسه ليدلی هم نه دی داکومه خبره چې ځينې علماکوي چې حضرت عمرپه حيله کې قرانکريم ګرځولی دی دابه داحاديثوپه کتاب باندې حواله کوي،دعلم احاديثوپه کوم کتاب کې ليکلي دي چې حضرت عمردې دادول عمل ترسره کړيدی؟

خوځينې علماوايي چې دوسيلې په ډول دقرانکريم ګرځول داسقاط په حيله کې څه پروانلري؛همدې خبرې ته مفتي تقي صاحب هم ترجيح ورکړې ده؛خوماته چې په دې اړوندځومره حق معلوميږي په احاديثوکې دادول عمل ندی ثابت که څوک يې ګرځوي دهغوی ځپل کاردی خوپه اسلام کې اصل نلري.

## سماع الموتی:

په دې مسئله کې هم دعلماواختلاف دی؛خودااختلاف آن دصحابه له زمانې څخه راپاتې دی.په دې اړه يودحضرت عائشې ام المؤمنين مذهب دې هغه وايي چې مړي اوريدل نشي کولای.

اوبل دحضرت عبدالله بن عمرمذهب دی هغه وايي چې مړي اوريدل کولای شي؛چې همدادحضرت عبدالله بن عمررايه په ډيرواحاديثوکې هم بيان شوې ده؛چې يوله هغواحاديثوڅخه داده چې کله دبدرپه ميدان کې کافران مړدارشول اوهغوی په قليب البدرکې واچول شول تردې وروسته نبي کريمﷺ راغی دقليب البدرترڅنګ ودريده اوددوی څخه هريوه ته يې په ځپل نامه باندې غږونه کول چې

یافلان بن فلان په دې وخت کې حضرت عمرله رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې یارسول اللهﷺ دوی خومړه دي دوی کله ستاغږاوریدلای شي؟نبي کریمﷺ وفرمایل:والذی نفس محمدبیده ماانتم باسمع لمااقول منهم.[1]یعني نه یي تاسي دیراوریدونکي دهغوخبروچې زه یي دوی ته کوم.

په دې اړوندشرح الصدوردعلامه سیوطي،کتاب الروح دابن قیم اوالتذکره دعلامه قرطبي کې مکمل تحقیقات بیان شویدي.[2]تقریبا ددنیا دجمهوروعلماورایه داده چې سماع الموتی شته؛خوپه مونږاحنافوکې علامه ابن الهمام فتح القدیرکې لیکي دي چې؛ داکثره احنافورایه داده چې سماع الوتی نشته.

اوالایات البینات في عدم سماع الموتی چې داهم زمونږه احنافودمذهب کتاب دی هلته یې هم دغه خبره لیکلې ده؛خوزه فکرکوم چې داخبره به صحیح نه وي ځکه چې زمونږاحنافوله اکثره کتابونوڅخه معلومیږي چې سماع الموتی شته.

خوتول مړي په تولوحالتونوکې تولې خبرې نشي اوریدلای؛سمعت عن استاذي،وعمي،ومرشدي في التصوف علامه عبدالسلام فقیردامت برکاتهم العالیه هغه به ویل چې تول مړي په تولوحالتونوکې تولې خبرې نه اوري،چې دې ته دمنطقیانوپه اصطلاح سالبه کلیه وایي چې ددې نقیض سالبه جزئیه راځي هغه داچې بعضې مړي په بعضووختونوکې بعضې خبرې اوري؛والله اعلم.دلابنه تحقیق لپاره تکمیل القبوردمفتي محمدشفیع ته مراجعه وکړی.

## دزکات بیان.

زکات هم داسلام له لویوارکانوڅخه کڼل کیږي؛آیاخپلواصولواوفروعوته دزکات ورکول جوازلري؟ کتابونوکې لیکلي دي چې خپلواصولواوفروعوته دزکات ورکول ناروادي.[3]اصول دې ته ویل کیږي چې دی ورڅخه پیداشوی وي وان علی دبیلکې په توګه پلار،مور،نیکه اوداسې نور.اوفروع دې ته ویل کیږي چې له ده څخه پیداشوي وي دبیلکې په توګه زوی، لمسی،کړوسی اوداسې نور.

---

[1]-عن ابي طلحة....حتی قام علی شفة الرکی فجعل ینادیهم باسمائهم واسماءابائهم یافلان بن فلان یافلان بن فلان ایسرکم اطعتم الله ورسوله فاناقدوجدنا ما وعدنا ربنا حق فهل وجدتم ماوعدربکم حقاقال فقال:عمریارسول الله ماتکلم من اجساد لاارواح لها فقال النبي صلی الله علیه وسلم والذی نفس محمدبیده ماانتم باسمع لمااقول منهم-صحیح البخاري۲/۵۶۶-

[2]-اخرج احمدوالطبراني في الاوسط وان ابي دنیا والمروزي وابن ابي منده عن ابی سعیدالخدري ان النبي صلی الله علیه وسلم قال:ان المیت یعرف من یغسله ویحمله ویکفنه ومن یدلیه في حفرته-(شرح الصدور/۱۰۰)

[3]-احدهم الی الوالدین فن فوقهم وان بعدواوالثاني الی الاولادوان سفلو-(النتف/۱۲۸!)

همدارنګه ښځي ته دمیره اومیره ته دښځي زکات ندی صحیح؛خوداپه هغه وخت کي چي ددوی ترمینځ نکاح باقي وي. له دی دریواصنافوپرته نوروااقاربو ته دزکات ورکول جوازلري؛دمثال په ډول ورور،خور،تره،عمه،خاله اوداسي نور؛کذافي ردالمحتار،وفقه الحنفي في ثوبه الجدید،واحسن الفتاوی.[۱]

## دزکات مستحقین:

علماولیکلي دي چي اصل کي ترټولوزیات حقدارعلماءاوطالبان دي؛ځکه چي دوی دالله تعالی ددین لپاره خپل ځانونه له نوروکاروڅخه بندکړیدي.

همدارنګه مسکین،مسافر،فقیر اویتیمان هم دزکات مستحقین دي.ردالمحتار اوبدائع الصنائع کتابونوکي لیکلي دي چي که عالم یاطالب غني هم وي زکات ورکول جوازلري؛خوداخبره څکه نده صحیح چي الله تعالی فرمایلي دي{ إِنَّمَا ٱلصَّدَقَـٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَٱلْمَسَـٰكِينِ }[۲]یعني زکات دفقیرانواومسکینانوحق دی؛نوغني طالب یاعالم زکات ورکول ندي صحیح.

اوبل په زکات کي تملیک شرط دی که تملیک یي ونشي بیاهم زکات نه اداکیږي.

## په سپینوزروکي دزکات دنصاب:

په سپینوزروکي دنصاب اندازه دوه پنځوس نیمي تولې ده چي دوسوه درهمه اوشپږسوه دیرش ګرامه کیږي؛نوڅوک چي په سپینوزروکي دوه سوه درهمه لري په دې سره دی دنصاب مالک دی ؛په اوسني عصرکي خوهغه درهمي نشته نواوس مهال هغه دوه سوه درهمه په متعارفو روپیوڅومره کیږي؟

زمونږدفقهې حنفي په ډیروکتابونوکي لیکلي دي چي لس درهمه وه مثقاله کیږي اویومثقال ځلورنیم ګرامه ده چي دوه سوه درهمه(۶۳۰)ګرامه راځي؛نوڅوک چي(۶۳۰)ګرامه سپین زریاددي معادلي روپی ولري په دې سره دنصاب مالک دی.

---

۱-فلایدفع لاصله وان علا،وفرعه وان سفل،وکذالزوجته وزوجها-ردالمحتار۳/۲۰۶-
۲- سورة التوبه/۵۹.

تردي وروسته به دګرام قیمت معلوم کړودبیلګي په توګه له یوه زرګرڅخه به پوښتنه وکړوچې دیوه ګرام سپینوزروبین المللي قیمت څومره دی؟لکه اوس چې ۱۳۹۱ لمریزکال کې دیوه ګرام سپینوزروبین المللي قیمت اتیا افغانی ده؛نواوس به دګرام قیمت چې اتياافغانی ده په(۶۳۰)کې ضرب کړو(۶۸۰×۳۰=۵۰۴۰۰)حاصل یې چې څومره شوهمدادنصاب اندازه ده لکه دلته یې حاصل (۵۰۴۰۰)افغانی شو؛نو همداشمیرروپی چې څوک ولري دی به زکات ورکوي اوله بل چاڅخه به زکات نه اخلي اوداسقاط په دوره کې به هم نه کیني؛ځکه چې دده قبض نه صحیح کیږي.

## په سروزروکي دزکات نصاب:

په سروزروکي دنصاب اندازه وه نیمي تولي ده چې تول(۸۷)ګرامه کیږي؛نوڅوک چې(۸۷) ګرامه سره زریاددي معادلي روپی لري په دي سره دی دنصاب مالک دی.اوس مهال د(۸۷)ګرامه سره زرپه متعارفوروپیوباندي څومره کیږي؟دلته هم لومړی دګرام قیمت معلومول پکاردي؛ممکن اوس مهال دیوه ګرام قیمت څه باندي(۲۵۰۰)افغانی دی څومونږبه یې په(۲۵۰۰)باندي حساب کړو(۸۷×۲۵۰۰=۲۱۷۵۰۰)افغانیکیږی چې همدادسروزرودنصاب اندازه ده.

بیاپه دي کي هم دعلماواختلاف دی چې په زکات کي به دسروزرودزکات نصاب حسابوي اوکه دسپینوزرو؟ځیني علماوایي چې دسروزرونصاب معتبردی؛اوځیني علماوایی چې دسپینوزرودنصاب معادلي روپی چې څوک ولري نودی دنصاب مالک دی اوزکات ورباندي واجب دی؛زمونږدفقهي حنفي په ډیروکتابونوکي دامسئله لیکلي ده چې دسپینوزرونصاب معتبردی.[1]خوداپه روپیوکي که خالص سره زروبیبادسروزرونصاب معتبردی؛اوکه یواځي سره زرنه وي روپی هم ورسره وي بیاغوره داده چې دسپینوزرونصاب ته ترجیح ورکړای شي فتوی اواحتیاط په همدي کي ده.

## کتابونوکي زکات نشته:

که یوعالم ډیرکتابونه ولري آیاپه ده باندي ددي کتابونوزکات شته اوکنه؟اوآیاداعالم به له بل چاڅخه زکات اخلي اوکنه؟په دي اړوندعلماولیکلي دي چې کتابونوکي زکات نشته ځکه کتابونه هم دعالم له حوایجواصلیه وڅخه ګڼل کیږي؛خوهغه کتابونه چې شرعي وي اوددي عالم ورته اړتیاوي؛نوداعالم

---

[1]-تجب الزكاةعلى الاوراق النقديه بالاجماع....تجب عليهاالزكاة اذابلغت نصاب الفضة-(بحوث في قضايافقهية معاصرة/١٦١)

به ددې کتابونوزکات نه ورکوئ سره له دې که هغه دلکونو روپیوکتابونه وي؛ردالمحتار،فتاوای هندیه اومالابدمنه کې دامسئله لیکلې ده.[۱]

خوکه یوعالم دکتابونوپلورنځی لري بیا هغوکتابونوکي زکات شته ځکه چې دادده په حاجت اصلي کې نه راځی.اوکوم عالم چې پرته له کتابونوڅخه زیاتي روپۍ نلري دهغه لپاره دزکات اخیستل هم جوازلري؛په پورتنیوکتابونوکي دامسئله هم ذکرده.

## دزکات روپۍ مُدرس ته په تنخاکي ورکول:

مدرس ته په تنخاکي دزکات دروپیوورکول ندی صحیح؛ځکه چې زکات دالله تعالی حق دی هغه به فقیرته ورکول کیږي مدرس ته یې په تنخاکي ورکول ځکه ندي صحیح چې زکات ورکول دعوض په مقابل کې جوازنلري.

همدارنګه که څوک دمدرسي مسئول ته دزکات روپۍ ورکړي هغه یې هم ترهغوپوري مدرسینوته په تنخاکي نشي ورکولای چې ترڅویې په غریبوطالبانوباندې قبض کړي نه وي؛اوکه دمدرسي مهتمم په خپله باندې غریب وي بیایې پخپله هم قبض کولای شي؛خوپرته له قبض څخه مدرسینوته ورکول،یادمدرسي نورې چارې سرته ورباندې رسول شرعاجوازنلري؛ځکه چې زکات کې تملیک شرط دی.

## دزکات په روپیوباندې جومات جوړول:

دزکات په روپیوباندې جومات،مدرسه،یالاره جوړول یایې په جهادي چاروکې استعمالول پرته له تملیک څخه جوازنلري؛ دبیلګې په توګه اوس مهال خلک مجاهدینوته دزکات روپۍ ورکوي ددې روپیواستعمال دمجاهدینولپاره پرته له تملیک څخه جوازنلري؛ځکه چې په زکات کې تملیک شرط دی یوخاص فقیریامسکین به یې مالک کرځوي؛دایادشوي کارون چې خلک دزکات په روپیوکوي کله یې څوک مالک کرځي په دې ډول تملیک نه راځي.

خوحیله ورته کیدلای شي هغه داچې که دمجاهدینوامیرمالداروي دزکاتروپۍ دې په غریبومجاهدینوباندې تملیک کړي ترهغه وروسته به داغریب مجاهددارروپۍ بیرته خپل امیرته دزړه په اخلاص سره ورکړي؛تردې وروسته

---

۱- ان الكتب لازكاة فيهاعلى الاهل وغيرهم من اى علم كانت لكونهاعين نامية....فمن كان من اهلهااذاكان محتاجااليهاللتدريس والحفظوالتصحيح فانه لايخرج بهاعن الفقر-ردالمحتار ۳/۲۱۷-

دمجاهدینوآمردا روپۍ په جهادي اموروکي استعمالولای شي؛دجومات اومدرسي هم دغه حکم دی.فتاوای هندیه،ردالمحتار،البحر الرایق،تبین الحقایق اوفتح المعین کتابونوکي دامسئله لیکلي ده.[۱]

## دقرض په زکات کي وربښل:

که دیوچاپه بل چاباندي قرض وي آیادغه مدیون خپل قرض دائن ته په زکات کي وربښلای شي؟علماولیکلي دي چي په دې دول زکات نه صحیح کیږي؛حیله به ورته کوي هغه داچي دائن به دقرض په اندازه روپۍ رواخلي مدیون ته به یي ورکړي چي هغه یي قبض کړي له هغه وروسته به هغه روپۍ بیرته مدیون ته ورکړي؛فتاوای کاملیه کتاب الزکاة کي دامسئله لیکلي،او علامه شامي هم ردالمحتارکي دامسئله بیان کړیده.[۲]

## چیرته چي روپۍ وي هلته به زکات ورکوي:

زکات به په هغه ځای کي ورکول کیږي کوم ځای کي چي روپۍ وي؛بل ځای ته یي هم نقل کول جوازلري خوعلماولیکلي دي چي داعمل له کراهیت څخه خالی نه دی؛خوکه روپۍ په داسي ځای کي وي چي هلته مستحقین نه وي بیایي نقل کول پرته له کراهیت څخه جوازلري.اودزکات ترټولودیرحقداران خپلوان اوګاوندیان دي.

## عشرپه مستأجردی که په مؤجر؟:

ایادځمکي عشربه اجاره داروركوي که دځمکي څښتن؟په دي اړوندزمونږدامام صاحب فتوی داده چي عشربه دځمکي څښتن ورکوي؛خوصاحبین وایي چي مستأجر(اجاره دار)به عشرورکوي.علامه شامي ردالمحتارکي دصاحبینومذهب راجح ګرځولی دی.[۳]اوعلامه طحطاوي هم په شرحه ددرالمختارکي داخبره لیکلي ده؛ځکه چي له ځمکي څخه اکثره منافع مستأجراخلي.

---

[۱] -الااذاوكله الفقراءلانه كلماقبض ملكوه وصارخالطا مالهم بعضهم ببعض ووقع زكاة عن الدافع-ردالمحتار۳/۲۲۳-.

[۲] -فيما اذاكان له دين على معسروارادان يجعله زكاة عن عين عنده اوعن دين له على اخرسيقبض-ردالمحتار۳/۲۲۶-.

[۳] -لواجرالارض العشريه فاالعشرعليهامن الاجرة كمافي التاترخانيه وعندهماعلى المستاجر....فلاينبغي العدول عن الافتاءبقولهمافي ذالك-ردالمحتار۳/۳۲۶-.

اوپه مزارعت اودهقاني کې به عشرپه چاباندې وي؟دې مسئله کې هم علماوخپنې خبرې کړیدي خوپه دې اړه دعلامه شامي فتوی داده چې له مینځ څخه به یې ورکوي اویابه هرڅوک له خپلې برخې څخه عشرورکوي.[۱] علامه رشیداحمدهم په احسن الفتاوی کې همداخبره لیکلې ده.

دیادونې وړده چې دغنموپه وښوکې عشرنشته؛عشریواځې په غنموکې دی.علامه شامي دامسئله لیکلې ده اومفتي فریدصاحب هم په فتاوای فریدیه کې لیکلي دي چې په ښوکې عشرندی واجب خوغوره داده چې په وښوکې هم عشرورکړای شي.

## په میووکې عشر:

کله چې میوه پخه شي نوعشرپکې لازمیږي؛که دیوچامیوه دده په باغ کې پخه شي وروسته ترهغه یې وپلوري نوعشربه په چاباندې وي په بائع که په مشتري؟په دې اړه علماوتفصیل بیان کړیدی،چې یابه دامیوه پخه شوي وي یابه نه وي پخه شوې که پخه شوې وي وروسته ترهغه یې پلورلې وي نوپه دې صورت کې به عشربائع ورکوي.

اوکه مخکې له پوخ والي یې میوه پلورلې وي په دې صورت کې بیاعشرپه مشتري باندې دی؛کذافي الفتاوی الهندیه، الجوهرالنیره،البحرالرائق،وفتح القدیروایضافي ردالمحتار.[۲]

## په خپل کورکې باغ جوړول:

که څوک په خپل کورکې باغ جوړکړي آیادی به ددې خپل کورله باغ څخه عشرورکوي؟ کتابونوکې لیکلي دي چې کچیرې خپل استوګن ځای مکمل باغ کړي چې خلک په عرف کې هغه ته کورنه وایی باغ ورته وایي په دې صورت کې به ددې باغ عشرورکوي.

اوکه یوڅومحدودې ونې یې په خپل کورکې اینې وي په هغه کې بیاعشرنشته.دیادونې وړده چې که څوک په عشرکې خپله شي ورکړي یایې قیمت ورکړي دواړه جوازلري.

---

۱-وفي المزارعة ان كان البذرمن رب الارض فعليه ولومن العامل فعليهما بالحصته-ردالمحتار۳/۳۲۶-.والعشرعليهما جميعااذابلغ نصيب كل واحدمنهماما يجب فيه العشر-(النتف/۱۲۰).

۲-ولوباع الزرع ان قبل ادراكه فاالعشرعلى المشترىولوبعده فعلى البائع-ردالمحتار۳/۱۲۴-.

# په خضراواتوکي عشر.

ایاپه خضراواتو(ترکاریو)کي عشرشته؟دبیلګي په ډول پالک،ګندنه،بادنجان اوداسي نور؟په دی اړونددامام صاحب فتوی داده چي په خضراواتوکي عشرشته؛اوصاحبین وايي چي په خضراواتوکي عشرنشته.خوفتوی دامام صاحب په مذهب باندي شویده چي په خضراواتوکي هم عشرشته.

دیادوني وړده چي کومي ځمکي دبرمواوماشینونوپه واسطه اوبه کیږي په هغوځمکوکي نیم عشردی.دامسئله علماوپه یوی بلی مسئلي باندي قیاس کړیدهچي هغه زمونږدفقهی حنفي په ټولوکتابونوکي شته هغه داچي کومي ځمکي چي دارهټونوپه واسطه اوبه کیږي په هغوکی نیم عشردی په اوسني عشرکي واتړپمپونوهم دغه حکم دي.

## بخیلان.

په یوه زمانه کي دیوه ښارخلک ډیرزیات بخیلان وه،کله به چي دوی ته میلمه ورغی هیڅابه هم ډوډی نه ورکوله؛بیاباد شاه دوی ته حکم وکړچي تاسي ټول یویومیوږی ټک وهی چي دهرچاپه میوږي پوري دمیلمه لمن یاڅادرونښت هغه به ډوډی ورکوي؛په دوی کي یوتن ترنوروزیات بخیل وه هغه چي کله خپل میوږی په ځمکه ټک واهٔ نوچاره یي پسي راواخیستله داخپل میوږی یي ښه وتراشه ددي لپاره چي دچاڅادریالمن پکي بنده نشي؛

بیایووخت کي دی سیمي ته یوملنګ راغی هغه په دي باندي پوی وه چي ددي ښارخلک ډیربخیلان دي شاوخوایي وکتل چي یومیوږی یي ترنورومیوږیوښوی ولیدملنګ پوی شوچي دایي ددي لپاره ښوی کړیدی چي دچالمن پکي ونه نښلي؛خپل پټکي یي له خپل سرځخه راخلاص کړ اوپه همدی میوږي یي تاوکړهغه بخیل هم ورته کتل خودبادشاه امروه څه یي نشوورته ویلای باالاخره مجبورشوملنګ ته یي ډوډی راوړله؛په دنیاکي داسي نادربخیلان تیرشویدي.

کتابونوکي راځي چي یووخت کي یوسړی ډیربخیل وه،بیاده یوه روپی پیداکړی وه هره ګړی به یي هغي روپی ته کتل اوخطاب به یي ورته کاوه چي ځومره ښایسته روپی یی،له ځومره لاسونوځخه به تیره شوي یي،ځومره هیوادونه به دي لیدلي وي اواوس مهال ځومره برکتي یی چي زمالاس ته راغلي یي؛بیایي په دي روپی کي سوری کړی وه په خپله غاړه کي یي اچولي وه؛بیابه یي له خان سره ویل:که ځوک مي وربانديمرهم کړي هیڅ څته به یي ورنکړم.

همدارنګه کتابونوکي لیکل شویدی چي یووخت کي یوبخیل وه،په شپه کي به یې اورحکه نه بلاوه چي زماداورپه واسطه څوک لاره پیدانکړي؛په هغه زمانه کي به خلکوپه شپه کي داورپه واسطه لاره پیداکوله؛کله به چي دې بخیل اوربل کړی وه څوک به یې چي ولیدل چي دده داورپه واسطه لاره پیداکوي نوسم دلاسه به یې خپل اورمړکړدومره زیات بخیل وه.

## خطیب بغدادي ته دبخیل میلمستیا:

علامه خطیب بغدادي کتاب البخلاءکي لیکلي دي چي یوه ورځ ماته یوسړی راغی راته ویې ویل:چي ته له ماسره میلمه شه،دسهارچای له ماسره وخښه ماورته وویل:سمه ده؛کله مي چي دسهارلمونځ اداکړترهغه وروسته ددې سړي کورته ورغلم دېزیات انتظارمي وکړبالاخره مي ورته وویل:چي ورشه غدار اوړه ناوخته شوزه دېرکارونه لرم؛په دې وخت کي دې سړی غږوکړچي ښځي دوډی دی څرنګه کړه؟هغې ځواب ورکړچي اوړه مي غلبیل کړیدی خوتراوسه اوبه ندي رارسیدلي چي لانده یې کړم؛دومره زیات بخیلان وه دېربخل په وجه یې اوړه نه لندول ددې لپاره چي میلمه پتنګ شي اولاړشي؛خطیب بغدادي وایي چي ماورته وویل:چي تراوسه وړه ندي لانده شوي نوپخیږي به څه وخت؟بخیل ته مي وویل چي دخدای په امان زه درنه لاړم همداسي ورځخه راووتلم.

## دبخیل ارواح راحاضرول:

په یوه وخت کي یوه بخیل دخپلي کوټي په چت کي یوڅه اندازه سره زرایښي وه،بیاچي کله دی مړکیده دمرګ په حالت کي یې هم خپلي سترګي هغوسروزروته نیولي وې،بیادده له مرګ وروسته هغه سره زرله هغه ځای څخه چاواخیستل،بیایې په علم دتحضیردارواحوسره چي داعلم اوس مهال په غرب کي دېرواج دی دده روح راحاضرکړپوښتنه یې ورځخه وکړه چي خوشحاله یې که خفه؟ده ځواب ورکړچي دېرزیات خفه یم ځکه چي زماله کوټي څخه زماسره زرچااخیستي دي هرچاچي زماسره زربي ځایه کړیدی هغه دې بیرته په خپل ځای باندي کیږدي.

دده له روح څخه پوښتنه وشوه چي ته خواوس مړیې ته سره زرڅه کوې؟هغه خواوس تاته هیڅ ګټه نه رسوي؟ده په ځواب کي وویل:چي تاسي ماڅه کوی چي زه مړیم سره له دې چي هغه سره زراوس ماته څه ګټه هم نه رسوي خوبیرته یې په خپل ځای باندي کیږدي، که تاسي داکاروکړنوزه به دېرخوشحاله شم.دومره نااشنابخیل وه چي له مرګ وروسته یې هم بخل په خپل حالت باندی پاتي وه.

## کوفه کې قصابي:

خطیب بغدادي کتاب البخلاءکې له یوه سړي څخه نقل کړی چې هغه وایي چې یووحت کې ماپه کوفه کې قصابي خلاصه کړه دیرپسونه مې حلال کړل؛خوهیڅوک هم نه وه چې له ماڅخه یې غوښه اخیستي وی تردیرزندوروسته یوه زړه ښځه راغله په غلبیل کې یې دسرغلبیلي وړه اچولي وه هغه یې ماته راکړل راته ویې ویل:چې په دې باندې غوښه راکړه ماورته وویل:چې په همدې بوسکوباندی غوښه درکړم؟

هغې راته وویل:هو ماورته وویل چې په دې باندې غوښه نه کیږي ورشه روپۍ راوړه؛له دې سره هغې زړې ښځې په ماباندې رشخندپیل کړ؛کرده تاویدله اوله خان سره یې ویل:واوا دغه ده لیونی قصاب په بوسکوباندې غوښه نه ورکوي روپۍ غواړي.

## دناطف حکایت:

خطیب بغدادي کتاب البخلاءکې لیکلي دي چې یوه سړی وویل:چې یووخت کې زه په کوفه کې یوه کورته میلمه ورغلم، دوډی ته مې دیرزیات انتظاروکړ،دلوږې په وجه مې په نس باندی دردشو بالاخره مې دکورخښتن ته وویل:وږی یم دوډی راوړی دکورخښتن غږوکړچې ناطف وناطف؛ناطف له نطف څخه دی دوېښتانوویستلوته ویل کیږي؛ددې سړي دکورپه انګړکې یوپسه ولاړوه هغه چې کله ناطف غږواوریده په ترپکويې پیل وکړماپوښتنه ورڅخه وکړه چې داپسه ولې پورته لویږي؟

سړي خواب راکړچې کله زمونږکورته میلمه راشي بیازه خپل زوی ته غږکوم چې له پسه څخه لږوړی وشکوه اوبازارته یې دپلورلولپاره یوسه په دې دول مونږمیلمه ته له بازارڅخه یوشی راوړواوپه میلمه یې خورو؛اوس داپسه زماله غږسره بلدشویدی کله چې زه دناطف اوازوکړم نوپسه پوی شي چې اوس یې بیازوی راځي اوله ماڅخه ویښتان شکوي ځکه داسی پورته پورته لوېږي.دومره زیات بخیلان وه چې دپسه په وړیویې میلمه ته خوراک راوړ.

## په شودوکې موږک:

په یوه زمانه کې دیوې سیمې خلکوپه بخل کې سم شهرت درلود،بیایومسافردوې په کلي باندې تیریده دیوکوردروازه یې وټکوله چې لږاوبه راکړی تږی شوی یم هغوی له کورڅخه داوبوپه ځای شودی

ورته راوویستلي مسافرله خان سره وویل:چي دي خلکوپسي ځلک چیتي خبرې کوي چي دوی بخیلان دي داځومره سخیان خلک دي مااوبه ورځخه وغوښتي دوی شودې راته راوړلې.

مسافرچي کله داشودې وڅښلې چي ګوري دلوښي په بیخ کي مړموږک پروت دی،مسافرپه غوسه شوچي دامرداري شودې موولي په ماباندې وڅښلې؟کوم بوتل کي يي چي شودې راوړې وې هغه يي په ځمکه باندې وویشت اومات شو؛له دي کورځخه چي دې مسافرته کومې ښځې شودې راویستلې وې هغه ددې کورمینځه وه هغي ځپل بادارته ورغږکړچي هله مسافرستادمتیاز وبوتل مات کړ؛مسافرچي کله داخبره واوریده له ځان سره يي وویل چي اوس نوښه شو.

# دطمعه کونکونادرواقعات.

ابوتراب نخشعي وايي چي ماهیڅکله په دنیاکي چاته طمعه نه وه کړې،که به ځومره زیات وږې وم بیامې هم له چاځخه څه شی نه غوښتل؛یوه ورځ په یوه لاره باندې روان وم ډیرسخت وږې شوم اوهکیوته مي ډیرزیات زړه وشو،دیوه کوردروازه مي وټکوله یوسړې راووت چي کله يي ماته وکتل واردمځه يي دوهلوپیل راباندې وکړراته ویل يي چي له هغوغلوسره ته هم وې کوموچي هغه تیره ورځ مونږته لاره نیولې وه؛نوموړې وايي چي ښه يي ووهلم په دې وخت کي یوبل سړې راغی له دې خلکوځخه يي زه خلاص کړم هغوی ته يي وویل:چي داموولي وواهه داخوابوتراب نخشعي ټوی عالم اولوی محدث دی؛نوموړې وايي چي زه په ځپل مرض باندې پوی شوم هغه داچي ماطمعه کړې وه؛دالله تعالی دوستان چي لږ هم کوږقدم کیږدې نوالله تعالی عذاب ورباندې راولي؛نوموړې وايي چي بیادې سړي هغه شی راباندې وخوړل کوم چي ماغوښتل.

په یوه وخت کي یوه ښځه اوخاوندپه ځپل کورکي لمرته ناست وه؛ددې ښځې خاوندځپلې ښځې ته وویل:چي کاشکي چاپوپسه حلال کړې وې،پوستکي يي هم ورځخه ویستلې وې اوبیايي مونږته هدیه کړې وې زمونږچي څه دول شیان زده دي هغه موورځخه پاخه کړي وي؛ښځې ورته وویل:چي کاشکي داسي شوې وې؛ددوې یوه ګاوندي ددوی طمعه واوریدله هغه له ځان سره وویل:چي دوی خوطمعه وکړه کیدلای شي چي ځوک پسه ورته راوړي؛هغه هم له ځپل کورځخه راووت اوددې ګاوندي له کورسره نږدې کیناست؛کله چي غرمه شوه ددې ګاوندیانودروازه يي وټکوله هغوی وویل:ځوک يي؟ده وویل چي فلانکی یم هغوی ورته وویل چي کورته ددننه راځه هغه چي کله ددوی کورته داخل شوويي ویل چي دپسه بوی راباندې لږیږي؛داطامع پوی شوځپلې ښځې ته يي

وویل:زمونږداسي ګاونديان دي چي دطمعي بوی هم ورباندي لږيږي دا که ربنتيا پسونه راشي نوځه به کو؛نوبنه به داوي چي له دي کلي څخه کده وکړوله دي خلکوسره مووخت نه تيريږي.

اوبل اشعب په طامعينوکي مشهورسړی تيرشويدی،دده واقعي په کتابونوکي ډېری مشهوري دي؛ نوموړی وايي چي په کوم کورکي به دشوروابوی وه نومابه په خپل کورکي په کاسه کي دودی ماته کړه چي کيدلايشي چي اوس ماته هم غږراوکړي چي کاسه دي راوړه چي شوروادرکړو.

اوکوم کورکي به چي واده وه اشعب به دخپل کورمخه جاروکوله چابه چي پوښتنه ورڅخه وکړه چي داولي جاروکوي؟ ده به خواب ورکړچي هغه فلانکي ځای کي واده دی نه ويل کيږی چي زوم ووايي چي زمابنځه اشعب ته ورولی؛ځکه مي دخپل کورمخه صفاکوم.نوموړی وايي چي کله به څوک مړه شول ترهغه وروسته به چي دوکسانوله يوبل سره پټي خبري کولي؛نومابه په زړه کي ويل چي کيدلای شي چي دي مړي وصيت کړی وي چي زمادمال ثلث اشعب ته ورکړی دومره زيات طامع وه.

له ده څخه يوه ورځ چاپوښتنه وکړه چي آياله ځان څخه دي زيات طامع ليدلی دی؟اشعب خواب ورکړهو:يوه ورځ په يوه لاره باندي روان وم په خوله کي مي ژاولي وېهغه مي زدوېلی؛له شاڅخه يوسپی راپسي روان وه سپي داګمان کاوه چي په خوله کي څه شی ميده.کوی بيايي ماته راکوي؛ نوموړي وويل:چي داسپی يوميل همداسي راپسي روان وه باالاخره يوی شوچي ژاولی زدويی وروسته تردي بيرته وګرځيد.اوبل زمايوپسه وه دبام په سرباندي ولاروه هلته زرغونه راختلی وه چي په عربي کي قوس القذح ويل کيږي؛نودی پسه داګمان وکړچي دادشنوونبوبوه رسی ده له نام څخه يې پسي توپ کړلاندي پريوت اومړشو.اشعب وايي چي دادوه مي له ځان څخه هم ډيرطامعين ليدلي دي.

# دروژي بيان.

دروژي مبارکه مياشت دمغفرت اورحمت مياشت ده،لکه څرنګه چي نبي کريمﷺ فرمايلي دي: اذادخل الرمضان فتحت ابواب السماء،وغلقت ابواب جهنم،وسلسلت الشياطين وفي رواية فتحت ابواب الرحمة.(۱)

ژباړه:کله چي دروژي مياشت داخله شي نوداسمان دروازي پرانستل شي،دجهنم دروازي وتړل شي اوشيطانان په ځنځيرونوکي بند شي.په بل روايت کي راځي چي دالله تعالی درحمت دروازی پرانستل شي.

۱- صحيح البخاري ـ۱/۴۶۳.

## دسپوږمۍ پلټنه:

علماوليکلي دي چې کله دشعبان دمياشتې(۲۹)ورځ شي نوپه هرمسلمان باندې فرض کفايي ده چې دسپوږمۍ پلټنه وکړي. دامسئله زمونږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکې ليکل شوې ده؛منهم فتح القدير. القول المنشورفي هلال خيرالشهورومراقي الفلاح [1]لکه څرنګه چې دجنازې لمونځ په هرمسلمان باندې فرض کفايي ده همدارنګه دروژې دمياشتې پلټنه هم په هرمسلمان باندې فرض کفايي ده.

يادونه:دفرض کفايي ثواب له فرض عين څخه زيات دی؛ځکه چې دفرض عين ثواب خالص دهغه چاليپاره وي څوک يې چې کوي.اودفرض کفايي ثواب دعمل کونکي دځان لپاره هم ده اودنورومسلمانانولپاره هم ده؛نوځکه دفرض کفايي ثواب په نسبت سره فرض عين ته زيات دی؛کذافي قول المنشورللعلامه عبدالحی الکنوي وحصن الحصين للعلامه ابن جمعان الشافعي.

## دسپوږمۍ په اړونددنجوميانوخبرې داعتباروړندي:

آيادسپوږمۍ په اړوند دنجوميانوخبروته څه اعتبارشته؟په دې مسئله کې علمادوه ډلې دي يوه طرف ته علامه تقی الدين السبوکي ده،هغه وايي چې دسپوږمۍ دليدلوپه اړونددنجوميانوخبرې هم داعتباروړدي.

خوله ده پرته ددنياجمهورعلماوايي چې دنجوميانوخبروته څه اعتبارنشته؛دوی وايي چې اصل په اسلام کې دسپوږمۍ ليدل معتبردي؛که سپوږمۍ وليدل شوه روژه به وي اوکه ونه ليدل شوه دنجوميان خبرې داعتباروړندي.علامه عبدالحي الکنوي په خپلودوکتابونوالقول المنشوراوالفلک الدوارکې ليکلي دي چې دنجوميانوخبرې داعتباروړندي.علامه شامي هم دغه خبره ليکلې ده.[2]

## دورځې سپوږمۍ ليدل:

خلکوکې مشهوره ده چې کله مياشت اخرته ورسيږي نوخلک دورځې په لومړيوکې دسپوږمۍ دراختلوطرف ته ګوري؛که سپوږمۍ معلومه نشي نودوی داسې عقيده کوي چې صباماښام خامخادقبلې لوري ته ښکاری؛دادول کړنه په اسلام کې داعتباروړنده.علامه عبدالحي الکنوي په دې اړوندمستقل کتاب جوړکړی چې نوم يې دی الفلک الدوارفي الرونية الهلال بالنهار هلته يې ليکلي دي

---

[1] - يجب كفاية التماس الهلال ليلة الثلاثين من الشعبان لانه قديكون ناقصا-(مراقي الفلاح/٢٣٣).

[2] - ولاعبرة بقول المؤقتين اى في وجوب الصوم على الناس في المعراج لايعتبرقولهم بالاجماع ولايجوزللمنجم ان يعمل بحساب نفسه-ردالمحتار- ٣/٣٠٨.

چې اصل کې دسپوږمۍ لیدل دقبلي لوري ته معتبردي دلمردختلوپه طرف دسپوږمۍ لیدل یانه لیدل هیڅ اعتبارنلري.

اوبل خلکوکي مشهوره ده چې ددریمي ورځي سپوږمۍ له سورشفق څخه مخکي دوبیږي داخبره هم په اسلام کې څه اصل نلري؛په اسلام کې دسپوږمۍ لیدل مقصوددي کماقال الله تعالی { فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهۡرَ فَلۡيَصُمۡهُ }[1]همدارنګه دسپوږمۍ لوی والی اوکوچني والی هم څه اعتبارنلري.

## دروژې متعلق مسائل:

۱- دروژي په میاشت کې پیشلمي یاپشمنی کول مستحب ده،که څوک په پیشمني کې نورڅه خوراک نه کوي دلړاوبوپه څښلوسره هم الله تعالی ددي ثواب ورکوي.

۲- ښایي چې دروژي افطارورواندي له لمانځه څخه وشي؛مستحبه داده چې لومړی روژه ماتی وشي وروسته ترهغه بیالمونځ وشي.

۳- که څوک په روژه کې استمنابالیدوکړي(دخپل لاس په واسطه مني وباسي)روژه یې ماتیږي خوکفاره نه وربانديلازمیږي.

## تجربه:

سره له دې چې تجربه په اسلام کې څه اعتبارهم نلري،خوبیاهم کله ناکله تجربه صحیح وي دمثال په دول علماوتجربه کړیده چې دراتونکي کال درمضان پنځمه نیټه دتیرکال درمضان لومړی ورځ وي؛عجائب المخلوقات،نزهة المجالس اوالقول المنشورکتابونوکي داتجربه نقل شویده.علامه لکنوي لیکلي چې مادولس کاله داتجربه کړیده خوتراوسه نده غلطه شوې له جعفرصادق څخه هم علماونقل کړی دی چې هغه وایي:ماپنځوس کاله داتجربه کړي خوتراوسه غلطه نده وتلي.

---

[1] -سورة البقرة/۱۸۵.

# اختلاف دمطالعوته اعتبارنشته:

داهم دعلماوترمینځ یوه اختلافي مسئله ده چي ایامطلع ته اعتبارشته اوکنه؟ځیني علماوایي چي مطلع ته اعتبارنشته؛اوځیني نور علماوايي چي مطلع ته اعتبارشته.مطلع ځاى دختلودلمرته ویل کیږي؛که ددنیاپه یوه طرف کي سپوږمی ولیدل شي نودتولي نړی په مسلمانانوباندي دروژی نیول فرض کرځي؛داپه دي معنی ده چي مطالعوته اعتبارنشته چي په همدي باندي دجمهوروعلماواوپه مونږ احنافوکي دجمهورواحنافوفتوی ده؛ډیرومحققینوعلماودامسئله لیکلي مهنم:علامه اشرف علي،علامه ظفراحمدفي اعلاءالسنن،وعلامه شبیراحمدفي فتح الملهم اوهمدارنګه مفتي محمدشفیع چي دنوي عصر لوی محقق تیرشوی هغه هم په دي اړه مکمل تحقیق کړی بیایي لیکلي دي چي اختلاف دمطالعوته اعتبارنشته.

په دي اړوندچي مخالفین علماءله کوم حدیث څخه استدلال کوي هغه دګریب مولادابن عمرحدیث دی چي مسلم شریف کي روایت شویدی؛هغه داچي حضرت کریب وایي چي زه په شام کی له حضرت معاویه سره وم،مونږهلته دجمعي په شپه باندي میاشت ولیدله،دجُمعي له ورځي څخه موروژه پیل کړه کله چي زه مدیتي منورې ته راغلم حضرت عبدالله ابن عباس پوښتنه راڅخه وکړه چي تاسي له کومي ورځي څخه روژه پیل کړي؟ماورته وویل:دجُمعي په ورځ موروژه نیولي ده نوحضرت عبدالله ابن عباس راته وویل:چي مونږخوهفتي په ورځ روژه نیولي ده مونږبه دیرش ورځي پوره کوواویابه میاشت وینوستاخبره زمونږلپارداعتباروړنده.[1]له دي حدیث څخه ځیني علماءاستدلال کوي چي که مطالعوته اعتبارنه وی نوولي عبدالله ابن عباس دکریب خبره نه منله له دي څخه معلومه شوه چي مطالعوته اعتبارشته.

ددي لپاره مونږداسي ځواب کوچي داخبرواحددی اودیوه تن شاهدي په اسلام کي نه قبلیږي په دی وجه حضرت ابن عباس دکریب خبره ونه منله.

اوبل داچي دشام اومدیني منورې عرض البلدهم یودی کوم هیوادونه چي شرقاوغربا واقع وي کیدلای شي چي دهغوپه عرض البلدکي یوڅه فرق راشي،خوهغه هیوادونه چي جنوبا اوشمالا واقع وي په

---

[1]-عن کریب....فقدمت الشام فقضیت حاجتها واستهل علی رمضان واناباالشام فرئیت الهلال لیلة الجمعة ثم قدمت المدینة في اخرشهرفسألني عبدالله ابن عباس....فقلت رأیناه لیلة الجمعة فقال انت رأیته قلت نعم ورأه الناس وصاموو صام معاویه فقال لکنارأیناه لیلة السبت فلانزال نصوم حتی نکمل الثلاثین اونراه-صحیح مسلم۱/۳۴۸-.

هغوتولوباندې په يوه خل لمرياسپوږمى راخيږي دلته دشام اومديني منورى عرض البلديودى په دواړوباندې په يوه خل لمرياسپوږمى راخيږي؛نودلته دادول اختلاف بلكل نشي كيدلاى

يودپاكستان هيوادځيني علماءدسياست پربنا ځيني وخت يوڅه خبرې كوي څكه چې دوى په اسلامى نړۍ مي خان يولوى اسلامي حكومت ګڼي اووايي چې څرنګه كيدلاى شي چې مونږدى دبل چاتقليدوكړو؛هغه كومه مذهبي خبره نده سياسي خبره ده؛پاكستان كې هم محققين علماءمطالعونه اعتبارنه وركوي نودتولومحقيقينوعلماوفتوى په دې باندې ده چې كه په شرق ياهم غرب كې مياشت وليدل شي نودتولې نړۍ په مسلمانانوباندې روژه فرض ګرځي؛اخترکې هم دغه حكم دى.

## دشک په ورځ روژه نيول:

آيادشک په ورځ باندې روژه نيول جوازلري؟په دې اړوندپه يوه حديث شريف كې راځي چې كه څوک دشک په ورځ روژه نيسي نوهغه له ابوالقاسم سره مخالفت وکړ.[1] دصحابه وپه دوركې په دې اړوند صحابه دوه ډلې وه ځينوصحابه وبه ويل چې په دې ورځ باندې روژه نيول ناروادي اوځينونوروصحابه وبه ويل چې په دې ورځ باندې روژه نيول مستحب دي منهم:عبدالله بن عمر،عمروبن العاص،ابوهريره،معاويه،عائشه ام المؤمنين واسمائه رضي الله عنهم.داهغه صحابه دي چې به دشک په ورځ روژه نيوله.

اوډيروتابعينوبه هم دشک په ورځ روژه نيوله؛كه دشک په ورځ روژه ناروٰاوى نوولې دى صحابه وپه دې ورځ باندې روژه نيوله؟عمدة القاري،نيل الاوطاراومعارف السنن كتابونوكې ددى صحابه ونومونه ذكرشويدي.[2]انشئتم بان تقفوااسماء الصحابة والتابعين الذين يصومون في يوم الشک فلترجعواالى عمدة القاري ونيل الاوطارقدسمى صحابة والتابعين الذين يصومون في هذااليوم.

روژه ديوم الشک زمونږاحنافوعلماوپه دړې ډوله كړې يوداچه په دې ورځ باندې درمضان دروژې نيت وكړي دادول روژه نيول په دې ورځ باندې مكروه ده؛بل داچې دواجبواخروپه نيت يې ونيسي داهم مكروه ده؛اوبل داچې دنفلوپه نيت يې ونيسي دادول روژه بيايه دې ورځ باندې جوازلري كه

---

[1] - فقال عمارمن صام اليوم الذى شک فيه فقدعصى اباالقاسم-جامع الترمذي- ۱/۱۴۷.

[2] -وقدصح من اكثرالصحابة والتابعين ومن بعدهم كراهية صوم يوم الشک انه من رمضان،منهم:علي وعمروبن مسعودوحذيفه وبن عباس وابوهريره وانس وائمة الاربعه؛وجاءالجوازعن جماعة من الصحابة فذكرعن ابي هريره وعمربن العاص ومعاويه وعائشه واسمائة-معارف السنن ۵/۳۳۱.

داورخ دفرضي روژې شي نوله نفلوڅخه څپله فرضوته ورګرځي کنې نفلي روژه خوده په همدې باندې علماوفتوی کړیده.[۱]

خوزمونږدفقهي حنفي په ځينوکتابونوکي ليکلي دي چې په دې ورځ باندې يواځې دخواصولپاره روژه نيول جوازلري، خوعلامه لکنوي په القول المنشورکي ليکلي دي چې داخبره غلطه ده دخواصو اوعواموتولولپاره په دې ورځ روژه نيول جوازلري؛کذافي ردالمحتاروفتح باب العنايه واعلاءالسنن واوجزالمسالک والفيض السماوي وايضا معارف السنن.[۲]

## په پيچکاري کولوباندې روژه نه ماتيږي:

پيچکاري ته په عربي ژبه تلقيح،ابره اوملقحه ويل کيږي؛په دې اړه دمتاخرينوعلماوفتوی چې ددوی په ذورکي پيچکاري شتون لري داده چې په دې سره روژه نه ماتيږي؛خوعلامه عبدالحميدطهمان په الفقه الحنفي في ثوبه الجديدکي ليکلي دي چې زماپه اندپه پيچکاري وهلوسره روژه ماتيږي.
يوله هغوعلماوڅخه چې ددې په جوازقول کوي مفتي محمدشفيع ده اوبل علامه اشرف علي تهانوي ده نوموړي په امدادالفتاوی کي ليکلي دي چې په پيچکاري وهلوسره روژه نه ماتيږي دوی دخپلې مدعی لپاره دليل راوړي چې الفطرمما دخل؛يعني روژه په هغوشيانوباندی نه ماتيږي چې هغه دمساماتوله لارېمعدې ته وصل کيږي.مسامات هغولاروته ويل کيږي چې هغه معدې ته مستقله لارنلري دجزبې قوی په واسطه معدې ته رسيږي.

بدائع الصنائع کي ليکلي دي چې که يوڅوک په خپلوسترګوکي دواواچوي اوهغه دوايي ستوني ته هم ورسيږي په دې سره يې روژه نه ماتيږي دليل يې همداراوړی چې:لانه من المسامات.زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي راځي چې که يوڅوک مار،لړم،ياهم نوري خزندې وچيچي په دې سره يې روژه نه ماتيږي.ياهم يوڅوک دروژې په حالت کي ولمبيږي له دې سره يې تنده کميږي؛ځکه چې دانسان په بدن کي مسامات دي دهغومساماتوپه واسطه يې اوبه معدې ته هم رسيږيخوپه دې باندې هيڅ يوه عالم هم دحرمت فتوی نده کړې.

همدارنګه که څوک په روژه کي خپلې سترګې توري کړي دارافجي يې ستوني ته هم ځي په دې سره يې هم روژه نه ماتيږي.الفقه الاسلامي کي علامه زحيلي ليکلي دي چې پيچکاري روژه نه ماتوي

---

[۱] -قال ابي حنيفه واصحابه:لابأس بصوم يوم الشک تطوعا،وهذاقول اهل العلم-معارف السنن۵/۳۳۲-.

[۲] - ولايصام يوم الشک الانفلا-ردالمحتار۳/۴۰۰-. وكره فيه كل صوم الاصوم نفل جزم به-(نورالايضاح/۱۳۸).

هغه که دغوښي وی اوکه درک وي ددوارو یوډول حکم دی؛خونوموړي لیکلی دي چي په سیګرېټ باندی روژه ماتیږي.

زمونږدفقهي حنفي په نورروديروکتابونوکي هم لیکلي دي چي په بیچکاري وهلوسره روژه نه ماتیږی منهم:کفایت المفتي، فتاوای دار العلوحقانیه،فتاوای دارالعلوم دیوبند،احسن الفتاوی،فتاوای فریدیه،منهاج السنن،فتاوای رحیمیه،درس ترمذي وفتاوای عثمانیه.[۱]

سره له دی چي دی تولوکتابونوکي ددې په جوازباندي فتوی شویده خوکه اشدضرورت نه وي نوغوره داده چي دشپي وکړای شي تقوی په همدې کي ده؛دلاښه تحقیق لپاره امدادالفتاوای دعلامه اشرف علي تهانوي ته مراجعه وکړی په حق به واقف شی.

# په نسواروباندي روژه ماتیږي:

زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي دامسئله لیکلي ده،چي په نسواروباندې روژه ماتیږي.منهم فتاوای دارالعلوم دیوبند،[۲]فتاوای حقانیه وفتاوای فریدیه.علماولیکلي دي چي که څوک په روژه کي ژاولی وزويي سره له دي چي خوړوالی یې هم نه وي بیاهم روژهورباندي ماتیږي؛دنسواروهم دغه حکم دی.

اوپه سګريټوباندي هم روژه ماتیږي؛زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي لیکلي دي چي په دودسره روژه ماتیږي؛خویوادخال ددوددی اوبل دخول دی په ادخال(داخلولو)ددودسره روژه ماتیږي ان چي کفاره هم ورباندي شته؛کذافي ردالمحتار[۳] وطحطاوي على مراقي الفلاح وامدادالفتاح ومعارف السنن.[٤]

# اکسیجن روژه نه ماتوي:

مفتي محمدتقي عثماني لیکلي دي چي په اکسیجن باندي روژه نه ماتیږي؛دمثال په ډول که مریض ته په روژه کي اکسیجن ورکړي په دي سره دهغه مریض روژه نه ماتیږي؛یاهم په طیاره کي اکسیجن

---

[۱]- فتاوای عثمانیه کتاب الصوم۲/۲۱۳-.

[۲]- فتاوای دارالعلوم دیوبند کتاب الصوم۶/۲۶۵-.

[۳]- انه لوادخل حلقه الدخان افطرای بای صورة کان کان الادخال-ردالمحتار ۳/۴۲۱-.

٤- واعلم ان الدخان الدماغ غیرمفسد،ولکن ادخاله مفسد،کماذکرفي الدرالمختاروغیره.وکذالک شرب الدخان التتن مفسد وموجب للکفاره-معارف السنن۵/۵۱۱-.

وي،کله چې طیاره له خمکې ځخه ډیره پورته شي بیاهلته اکسیجن نه ارتباوي حکه چې هواکې اکسیجن نشته.نوموړي لیکلي دي چې اکسیجن هم یوډول هواده ځکه روژه نه وربانددی ماتیږي.

## روائح روژه نه ماتوي:

دعطروپه وهلویا دکلانوپه بوی کولوسره روژه نه ماتیږي؛خوعطرپه دوه ډوله دي یوتبخیردی چې له دې سره دودهم وي په دې سره بیاروژه ماتیږي.اوهغه عطرچې اوس مهال په خلکوکې رواج دي په دې سره روژه نه ماتیږي؛کذافي الفقه الحنفي في ثوبه الجدید والفقه الاسلامي وادلته ومعارف السنن وامدادالفتاح وایضافي ردالمحتار.[1]

همدارنکه چې کله ډاکتر په خپل درملتون کې ناست وي اوهلته ددوابوی وي نوپه دې بوی سره ددې ډاکترروژه نه ماتیږي؛ ځکه چې یواځې روائح روژه نه ماتوي ترځوچې جوهرورسره نه وي.زمونږدفقهي حنفي په ډیروکتابونوکې دامسئله لیکل شویده.

## حائضه اونفاسه ښځه به روژه خوري:

**ښځه به دخپل حیض یانفاس پرمهال روژه نه نیسي خوکه روژه ونیسي نوروزه یې هم نه صحیح کیږي اوثواب یې هم نشته له دې سره ګناهکاره هم ده؛دحیض یانفاس په وخت کې به یې خوري بیابه یې بیرته قضایي راګرخوي.**

## دمسافردروژې بیان:

که څوک دسفرپه حالت کې وي نوپه هغه باندې روژه نشته،خوعزیمت داده چې ویې نیسي ځنې رخصت هم ورته شته هغه داچې په سفرکې یې وخوري بیایې په حضرکې قضایي راوړي.

اویوه بله مسئله هم دیادونې وړده هغه داچې که یوڅوک نیت وکړي چې زه به صباورخ فلانکې ځای ته سفرکوم،کچیرې دی وراندې دسفرله پیل کولوځخه روژه وخوري نودی به ددې روژې قضایي هم راوړي اوکفاره به هم ورکوي.اوکچیرې یې روژه نیولې وي وروسته بیایې سفرکې واقع شي بیاهم

[1] - طعم الادویة وریح العطراذاوجدفي حلقه لم یفطرکمافي المحیط-ردالمحتار ٣/٤٢٢-.

دی نشي کولای چې په همدې ورځ باندې روژه ماته کړي؛خوکه په همدې ورځ باندې روژه ماته کړي نوددې ورځې قضايي به راوړي خوکفاره نشتهورباندې؛کذافي فتاوای کاملیه ومعارف السنن.[1]

زمونږاحنافومذهب په دې اړونددا سې دی چې سفرمُبیح کوونکې دروژې دماتولوندی یعنی کله چې څوک روژه نیولې وي بیاوروسته ترهغه دی مسافرشي داسفرکول دده لپاره دروژې خوړل نه مباح کوي دانیول شوي روژه به ترپایه رسوي؛ کذافي التفسیرالمظهري والفقه الحنفی في ثوبه الجدید واحکام القرآن وایضا ردالمحتار.[2]

## دشوال دمیاشتې شپږورځې روژه نیول:

امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله ته یوقول منسوب دی چې ددوی په نزد دشوال په میاشت کې شپږورځې روژه نیول ضروري امردی؛خوصحیح خبره داده چې علامه قطلو بغا الحنفي په خپل کتاب تحریرالاقوال في استحباب الصوم باالشوال لیکلي ده چې دشوال دمیاشتې شپږورځې روژه نیول مستحب عمل دي؛چې همداخبره علامه بنوري هم په معارف السنن کې لیکلي ده.[3]اواعلاءالسنن کې هم په همدې باندې فتوی شویده.

خوپه دې کې اختلاف شته چې داروژې به متفرقې نیسي اوکه متصلې؟په دې اړه علامه شامي لیکلي دي چې دواړه دوله جوازلري.[4]خوغوره داده چې متصلې ونیول شي څکه چې په حدیث شریف کې هم دتتابع لفظ ذکرشویدی.خلکوکې مشهوره ده چې داخترپه دویمه ورځ به داروژه پیل کیږي؛خوداخبره نده صحیح توله میاشت کې اختیارلري؛کذافي معارف السنن.

## دبرائت په ورځ روژه نیول:

دبرائت په ورځ باندې روژه نیول مستحب دي؛دشعبان دمیاشتې پنځلسمې شپې ته برائت شپه ویل کیږي؛خوپه دې شپه باندې اوږده نفلونه کول چې الفیه ورته وایي دابدعت کاردی په اسلام څه اصل نلري؛عمدةالقاري،الامرفي الاتباع اوالبواعث کتابونوکې لیکلي دي چې دابدعت عمل دی.

---

١ - الاولى:عدم جوازالافطارللمسافريوم الخروج من البيت،وبه قال ابوحنيفه كمافي الهنديه عن محيط السرخسي،ولكن صرح بانه ان افطر لاكفارة عليه- معارف السنن٥/٣٧١-.

٢- والاصل في هذه المسائل ان كل من صار في اخرالنهاربصفته لوكان في اول النهارعليهاللزمه الصوم فعليه الامساك -ردالمحتار٣/٤٤٠-.

٣- ولكن افردهناالموضوع المحقق العلامه قاسم بن قطلوبغابرسالة سماها(تحريرالاقوالفي الصوم الست من الشوال)وحقق من نصوص المذهب استحبابهاعندابي حنيفه وابي يوسف-معارف السنن٥/٤٤٣-.

٤- وختلفوا هل الافضل التفريق اوالتتابع؟وفي الحقائق:صومهامتصلا بيوم الفطريكره عندمالک،وعندنالايكره وان اختلف مشائخنا في الافضل وعن ابي يوسف انه كره متتابعاوالمختارلاباس به-ردالمحتار٣/٤٨٥-.

همدارنګه په دې شپه بانډي وقيده(اوربلول)هم لويه ګناه ده شرعاجوازنلري؛علامه سيوطي په الامرفي الاتباع اوعلامه شامي په تنقيح الفتاواى الحامديه کي ليکلي دي چي دأناجائزعمل دى.اوعلامه على القاري په ميرقات کي ليکلي دي چي دادمجوسيانو عادت دى په اسلام کى دادول عمل جوازنلري.

## دفديې بيان.

دفديې اندازه نيم صاع ده چي دااندازه په احاديثوکي هم ثابته ده.[1]که څوک وايي چي صاع څه ته ويل کيږي؟نودوضاحت لپاره لندتحقيق ديادوني وړدى؛هغه داچي يوصاع په اوسنى اصطلاح کى درى کيلواوشپږ چټاکه ده؛چي دچټاک تعبيرزمونږپه هيوادکي په خوردباندې کيږي کله چي دااندازه نيمه کړاى شي نويوه نيمه کيلواودرى خورده کيږي.

اوس مهال خلکوکي يوچارک فديه متعارفه ده چي داخه کم دوه کيلوکيږي داحتياط په وجه علماوپه همدې باندې فتوى کړيده؛ دلاندې وضاحت لپاره لاندې دسرسايي بيان وګورى.

## دصدقة الفطر(سرسايي)بيان:

يوصاع څومره کيږي؟په دې اړه علامه مفتي محمدشفيع په خپل کتاب اوضح الاقاويل في تصحيح الموازين والمکائيل کي ليکلي دي چي يوصاع اته رطله ده،دپرونوروکتابونوکي هم داخبره ليکلي ده؛چي يورطل(۹۰)مثقاله کيږيکله چي (۸×۹۰) شي نوحاصل يې(۷۲۰ )کيږي؛بيايومثقال څلورنيم ګرامه کيږي کله چي (۴،۵×۷۲۰)شي نوحاصل يې(۳۲۴۰)کيږي؛اوس مهال يوه کيلو(۱۰۰۰)ګرامه کيږي نو(۳۲۴۰)دکيلوپه اصطلاح درې کيلواو(۲۴۰)ګرامه کيږي؛په همدې باندې زمونږدفقها وفتواى ده چي درى کيلواو(۲۴۰)ګرامه يوصاع ده.

اودويمه طريقه علامه شامي اوځينونوروعلماوليکلي ده هغه داچي يوصاع څلورمده ده،يومدڅلويښت استاره ده اويوستر څلورنيم مثقاله ده؛کله چي(۴،۵×۴۰)شي حاصل يې(۱۸۰)کيږي بياچي (۴،۵×۱۸۰=۴،۵×۷۲۰)شي نوحاصل يې(۳۲۴۰)ګرامه کيږي يعني هماغه درى کيلو او(۲۴۰)ګرامه يوصاع ده چي نصف دصاع دسرسايي ياهم فديې اندازه ده.(۳۲۴۰)ګرامه چي په مينځ باندې بيل شي(۱۶۲۰)ګرامه ورځخه جوړيږي چي همدادسرسايي اندازه ده.

---

[1] - عن عبدالله بن معقل قال جلست مع کعب بن عجره فسألته عن الفدية قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فصم ثلاثة ايام اواطعم سته مساکين لکل مسکين نصف صاع- صحيح البخاري۱-/۲۴۲.

په اوسني عصرکي خلک یوچارک غنم په سرسایه کي ورکوي چي داله نصف صاع څخه یوڅه زیاته اندازه ده؛ځکه چي یوچارک(۱۷۵۰)ګرامه کیږي اونصف دصاع(۱۶۲۰)ګرامه کیږي علماولیکلي دي چي فتوی په احوط باندي ده؛یعني یوچارک غنم ورکول په سرسایه کی داحتیاط پربناغوره دي.

## دسرسايي په اجره کي امام ته ورکول:

دصدقةالفطرپه اجره کي شرط کول جوازنلري؛زمونږدفقهي حنفي په ډیروکتابونوکی دامسله لیکلی چي سرسایه اجیرته په اجره کي ورکول شرعاجوازنلري منهم:فتاوای الهندیه والبحرالرائق وردالمحتار.نوله امام سره یي چي شرط کړي دا داجرې په حکم کي ده؛ځوکه پرته له شرط کولویی تبرعا خپل امام ته ورکوي دابیاجوازلري.

## داعتکاف بیان.

دروژي دمیاشتي په وروستنیولسوورځوکي اعتکاف کول سنت ده؛خوداسي اعتکاف هم شته چي هغه واجب دی دبیلګي په توګه هغه اعتکاف چي څوک یي په ځان باندي نذرکړي،هغه بیاپه ده باندی واجب ګرځي.

## مسئله.

څوک چي معتکف وي هغه خودفرضي اوداسه اوقضای حاجت لپاره وتلای شي آیادنفلي اوداسه لپاره هم وتلای شي اوکنه؟ فتاوای منبع العلوم واشعة اللمعات کي لیکلي دي چي دنفلي عبادت لپاره هم وتلای شي خوپه دي شرط چي داعتکاف پرمهال یي استثناکړي وي؛خودرمضان په اعتکاف کی دجنازی لمانخه ته نشي وتلای اوکه معتکف دقضای حاجت لپاره دباندي وتلی وي اوهلته جنازه په مخه ورشي بیاپه دي جنازه کي ګډون کولای شي؛یاهم کوم ناروغ په مخه ورشي دهغه عیادت اوپوښتنه هم کولای شي.

## دقرانکریم دفضیلت بیان.

آیادقرانکریم یوایت په بل ایت باندي یاهم یوسورت په بل سورت باندي څه فضیلت لري اوکنه؟په دی اړه ځینوعلماولیکلي دي چي یوسورت په بل سورت باندي یاهم یوآیت په بل ایت باندي هیڅ دول فضیلت نلري؛دوی دخپلي مدعی لپاره داسي دلیل وایي:چي ټول دالله تعالی کلام دی نوځکه یوپه بل باندي څه فضیلت نلري.

خوداخبره صحیح نه ددي لپاره علماوداسي خواب کړیدی چي دثواب په اعتبارباندی یوسورت په بل سورت یاهم یوایت په بل ایت باندی فضیلت لري؛کذافي الاتقان للعلامه سیوطي.همدارنګه امام نووي اوامام غزالي هم په خپلوکتابونوکي دامسئله ذکرکړیده.[1]

## دقرانکریم معکوس لوستل:

ایادقرانکریم آیتونه یاهم سورتونه منکوس(سرچپه)لوستل جوازلري؟په دې اړوندپه کتابونوکې یوحدیث شریف راځي چي علماءدهغه حدیث نسبت طبراني ته کوي چي هغه کي له دی څخه منعه شویده.اوځیني علماوایي چي قرانکریم منکوس وایي دهغه زړه هم منکوس وي.[2]

نودقرانکریم منکوس لوستل جوازنلري دمثال په ډول لومړی دسورت بقری وروستی ایت ولولي بیاهمداسي پورته ځي دادول قرانکریم لوستل ندي صحیح؛خوحافظان که قرانکریم له وروستني طرف څخه یادوي یاه په دې ډول ماشومانوته تعلیم کیږي علماوله دې حکم څخه مستثنی کړیدي؛کذافي مراقي الفلاح[3]وامدادالفتاح للعلامه شرنبلالي،طحطاوي على الدرالمختار وطحطاوي على مراقي الفلاح للعلامه طحطاوي واعلاءالسنن وردالمحتار.[4]

دقرانکریم منکوس لوستل په ټولومذاهبوکي ناجائزعمل دی؛کذافي التبیان والتذکارللامام نووي والبرهان في علوم القران وکتاب المسائب للامام ابي دادو.خوزمونږدمذهب مشهورکتاب اعلاءالسنن کي لیکلي دي چي منکوس الایایات قرانکریم لوستل مکروه تحریمي دي اودسورتونومنکوس لوستل مکروه تنزیهي دي؛ځکه چي دایتونوترتیب توقیفي دی له شارع څخه همداسي راغلی دی اودسورتونوترتیب غیرتوقیفي دي.

## دقرانکریم په داسي شي باندې لیکل چي دهغه اهانت کیږي:

په داسي شي باندې دقرانکریم لیکل چي دهغه اهانت کیږي،دبیلګي په توګه لفافه، خریطه، بوجی، بکسه، کوزه،کاسه،غوري، اوداسي نور..په دې ټولوشیانوباندې یاهم پرته له دې څخه په ټولوهغوشیانوباندی چي

---

[1] -وذهب اخرون الى التفضيل لظواهرالاحاديث منهم اسحاق بن راهويه وابوبكربن العربي والغزالي.وقال:القرطبي انه الحق،ونقله عن جماعة من العلماءوالمتكلمين-الاتقان٢/٣٠٨-.

[2] -عن ابن مسعودانه سئل عن رجل يقرأالقرآن منكوسا،قال ذاك منكوس القلب-الاتقان١/٢٢١-.

[3] -وماشرع لتعيم الاطفال الاليتيسرالحفظ بقصرالسورة فاذاقرءفي الاول قل اعوذبرب الناس لاعن قصديكررها في الثانية ولاكراهة فيه حنارعن كراهة القرائة منكوسا-(مراقي الفلاح/١٢٨).

[4] -لان ترتيب السورفي القرائة من واجبات التلاوة،وانماجوزللصغارتسهيلالضرورة التعلم- ردالمحتار٢-/٣٣٠.

دهغواهانت کیږي دقرانکریم لیکل جوازنلري؛په دې باندې تقریبا دعلماواجماع نقل شوېده حتی چې ځینوعلماولیکلي چې دحروف هجالیکل هم ناجائز دي دمثال په ډول:ج،د،م اوداسې نور..

په اوسني عصرکي بعضی خلک په پلاستیکونوباندې دخپلودوکانونو نومونه لیکي چې داهم جوازنلري.لنډه داچي دهرهغه شي چې دهغه اهانت کیږي په هغه باندې حروف هیجالیکل هم جوازنلري؛کذافي فتوای تاترخانیه والبریقه وفتاوای سبُکي وخلاصة الفتاوای وایضا ردالمحتار.[۱]

## دجومات په محراب دقرانکریم آیتونه لیکل:

دجومات په محراب یاهم دیوالُونوباندې دقرانکریم ایتونه لیکل شرعاجوازنلري،لیکل یې مکروه دي؛ډیروعلماودامسئله لیکلي منهم:علامه عیني وابن الهمام في فتح القدیروفتاوای تاترخانیه.ځکه چې کیدلای شي داجومات په کوم وخت کې ونړیږي بیاددې ایتونوبې حرمتي کیږي په دې وجه داډول لیکل علماومکروه اوغیرمستحسن بللي دي؛ډیروکتابونوکي دامسئله لیکلي چې دجومات په دیوالونو یاهم محراب باندې دقرانکریم ایتونه لیکل شرعا جوارنلري؛منهم:طحطاوي على الدرالمختار،معین المفتي والمستفتي،فتاوای الازهروردالمحتار.[۲]

## دقرانکریم په تجویدزده کول:

کچیرې دقرانکریم په دې ډول تلاوت وشي چې یوحرف دبل حرف په ځای ولوستل شي.دبیلګې په توګه:ص د س پرځای ولوستل شي ددې څه حکم دی؟دومره اندازه دتجویدزدکړه چې دهغه په واسطه دحروفوتصحیح راځي واجب اوفرض دي، چې دهغه په واسطه یوڅوک له لثغت څخه وحي؛کذافي منح الفکریه على الجزریه لعلي القاري.

اوکه څوک دیوه حرف پرځای بل حرف ووایي دبیلګې په توګه دالحمدپرځای الهمدولوستل شي په دې سره یې لمونځ فاسدیږي. کذافي اعلاءالسنن،غنیة الممتلي على منیة المصلي وردالمحتار.[۳]

---

[۱]-بساط اومصلی کتب علیه في النسج الملک لله یکره استعماله وبسطه والقعودعلیه،ولوقطع الحرف من الحرف اوخیط على بعض الحروف حتى لم تبق الکلمة متصلة لاتزول الکراهة لان للحروف المفردة حرمة- ردالمحتار۹/۶۰۱-.

[۲]-ولاینبغي الکتابة على جدرانه:ای خوفا ان تسقط وتوطأ-ردالمحتار۱/۲۲۱-.

[۳]-ان الخطاءامافي الاعراب:ای الحرکات والسکون ویدخل فیه تخفیف المشددوقصرالممدودوعکسها اوفي الحروف بوضع حرف مکان آخر....والقاعدة عندالمتقدمین ان ماغیرالمعنى تغیریکون اعتقاده کفریفسدفي جمیع ذالک-ردالمحتار۲/۴۷۳-.

# نادر حکایت

علامه شاتبي په نړۍ کې يومشهورعالم تيرشويدی،دنوموړي عادت په دې باندی جاري وه چې دسهارترلمانځه وروسته يې خپلوشاګردانوته درس ويلې،کوم شاګردبه چې له نوروڅخه وړاندی درسګانه راغي په هغه به يې تلاوت کاوه؛يوه ورځ يوطالب له خپلونوروملګرومخکې درسګانه راغی کله چې ټول شاګردان پوره شول استادغږوکړچې نن هرڅوک دويم راغلی وي هغه دی تلاوت وکړي.

شاګردان حيران شول چې زمونږداستادخوپه ټول ژوندکي داسي نه کول نن يې ولی له خپل عادت څخه خلاف وکړ؟ هغه طالب چې له ټولوڅخه دمخه داستاددرس ګاته راغلی وه هغه له خپل ځان سره سوچ اوفکروکړچې ولي استاد په ماباندی تلاوت ونکړترلږسوچ وروسته ورته يادشول چې ماته خونن شپه احتلام پيښ شوی وه اوله ماڅخه غسل هيرشوی دی همداسي دجنابت په حالت کې درس ګاته راغلی يم؛دطالبانوله مينځ څخه غلی ووت غسل يې وکړبيرته درس ګاته راغی؛ استاذته دده دوتلويابيرته راتللومعلومات څکه ونشوچې شاګردان ډيروه خپل ټول شاګردان يې په يوه ځای نشوليدلای؛ ترلږزندوروسته استادغږوکړچې اوس دې هغه قاري تلاوت وکړي کوم چې له ټولوڅخه مخکې درسګاته راغلی وه؛ علامه شاتبي ته الله تعالی دومره عجيب کرامت ورکړی وه.

## دقرانکريم ددیرشوسپاروختم:

ايادقرانکريم په دې ډول ختم چې هرسړی يوه سپاره تلاوت کوي؟په دې اړوندله علماوڅخه مختلف اقوال نقل شويدي؛ علامه عيني ددی ډول ختم دجوازفتوی کړيده؛خوعلامه عبدالحي لکنوي ليکلي دي چې دادول ختم مکروه دی څکه چې دقرانکريم تلاوت مستحب اواوريدل يې واجب دي کله چې هرڅوک په زوره تلاوت کوي اوريدل پکې ورکيږي اوکه هرڅوک يې له ځان سره پټ وايي بياجوازلري.

علامه نووي ددې لپاره ځانګړی باب ايښی دی هلته يې احاديث راوړيدي چې له هغوحديثونوڅخه صراحة معلوميږي چې صحابه وبه هم دادول ختم کاوه؛علامه ابي بکر کتاب المصاحف کې ددې لپاره مستقل باب راوړی هلته يې هم احاديث نقل کړيدي چې له هغوحديثونوڅخه هم څرګنديږي چې دادول قرانکريم لوستل څه باک نلري.

همدارنګه علامه اجيري اداب حملة القران کې ددې لپاره باب ځانګړی کړيدی؛بيايي ليکلي دي چې ديرخلک راټوليدل اودقرانکريم ختم کول جوازلري.زمونږدمذهب حنفي علماءو ته مکروه وايي

خومحدثین علماءله خینواحادیثوڅخه استدلال کوي هغوی په دی باندی دجوازفتوی کوي؛ز ماخیله رایه هم داده چي پرته له کراهیت څخه دقرانکریم دادول ختم جائزدی.

## ختمانه لوستل:

کله چي یوڅوک دقرانکریم ختم کوي،نوله سورة الضحی وروسته به الله اکبروایي ددی لوستل سنت دي؛خوپه دی کی اختلاف دی چي له سورةالضحی څخه به وړاندي تکبیرپیل کوي اوکه وروسته؟بعضی علماوایي چي دسورت الضحی له پیل څخه به تکبیرپیل کوي اوځنی علماوایي چي له سورةالضحی څخه وروسته به تکبیرپیل کوي؛علامه سیوطي په الاتقان؛[1]علامه قرطبي په مقدمه دتفسیرقرطبي اوالتذکارکتابونوکي دامسئله ذکرکریده؛خوعلامه ابن حجرپه الفتاوای الحدیثیه کي لیکلي چي معتمده خبره داده چي له سورت الضحی څخه وروسته به یي پیل کوي؛نورو علماوداختلاف ذکرکریدی خوفتوی یي نده ورکری.

اوبل داچي الله اکبربه څه دول وایي یواځي الله اکبربه وایي که نورالفاظ به هم ورسره زیاتوي؟په دی اره علماولیکلي دي چي یابه یواځي الله اکبروایی اویابه لااله الاالله والله اکبرهم ورسره زیاتوي؛له دی څخه زیات الفاظ په کتابونوکي نشته؛کذافي الاتقان للعلامه سیوطي[2]والاتحاف للعلامه زبیدي والبرهان في علوم القران؛همدارنګه علامه ابن حجرهم په خپله فتاوای کي دامسئله لیکلي ده.

اوکله چي څوک دقرانکریم ختم وکړي تردي وروسته به نورهم څه شي لولي اوکنه؟په دی اروندامام دارومي په خپل سنن دویم جلدکي یوحدیث راوړی بسندجید هلته یي لیکلي دي چي کله یوڅوک قرانکریم تروالناس پوری ورسوي تردي وروسته به سورة فاتحه اوسورة بقره ترهم المفلحون پوری لولي.[3]علامه نووي په التبیان اوعلامه سیوطي په الاتقان کي لیکلي دي چي دسورت فاتحی اوسورت بقری ترهم المفلحون پوری لوستل پوری لوستل ثابت دي.

خوداچي خلکوکي مشهوره ده چي ترختم وروسته دری ځلی سورت اخلاص بیاسورت الفلق اوسورت الناس لولي،بیاتردی وروسته سورت فاتحه اوسورت بقره ترهم المفلحون پوری لولي،بیایوایت

---

[1] -ویستحب التکبیرمن الضحی الی اخرالقران...اختلف القراءفي ابتدائه انه هل هومن اول الضحی اومن اخرها؟والخلاف-في الکل مبنی علی اصل وهوانه هل هولاول السورة اولاخرها-الاتقان۲۲۴/۱-.

[2] -وفي لفظه فقیل الله اکبروقیل لااله الاالله والله اکبروسواءفي التکبیرفي الصلوةوخارجها-الاتقان۲۲۴/۱-.

[3] -عن ابی ابن کعب ان النبي صلی الله علیه وسلم کان اذاقرأ قل اعوذبرب الناس افتتح من الحمد ثم قرأ من البقرة الی اولئک هم المفلحون ثم الدعاءبدعاءالختمة-الاتقان۲۲۴/۱-.

دسورت بقري له مينځ څخه تلاوت کوی،تردی وروسته دسورت بقرې روستنی ایتونه تلاوت کوي؛"من این اخذتم یاایهاالعلماءویاایهاالطلباءویاایهاالمشائخ والله ماوجدنا بعدتفحص الشدیدفی کتب الاحادیث ولافي کتب المتعلقه بعلوم القرآن ولافي کتب الفقه فمن این أخذتم" ایاددی لوستل په اسلام کی ثابت دي اوکنه؟

په حدیث شریف باندي خویواخی دسورت فاتحی اوسورت بقري ترهم المفلحون پوري لوستل ثابت دي؛اودسورت اخلاص په اړونداامام احمدبن حنبل لیکلي چي تکراروول یی جوازلري حوعلامه سیوطي لیکلي دي چی دسورت اخلاص دری ځلي تکرارعلماومستحسن بللی؛داخیره نورودیرو علماوهم لیکلی ده منهم:علامه قرطبي،علامه زرکشي في البرهان،علامه عبدالحی فی نفع المفتي واحکام القنطره،امام حلبي في شرح منیة المصلي وفتوای الهندیه.چی کله یوځوک دقرآنکریم ختم تروالناس پوری ورسوی ترهغه وروسته به سورت اخلاص دری ځلی لولي؛ځکه چی ددی لوستل علماومستحسن بللي؛وعن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ومارأه المسلمون حسنافهو عندالله حسنا.[1]

خودسورت الفلق اوسورت الناس په اړه کتابونوکی څه نشته،که ځوک وایي چی له عدم دوجدان څخه عدم ذشي نه راځي خوکوم چي قرانکریم پوری متعلق کتابونه له ماسره موجوددي هغه ټول مامطالعه کړي خوبه دي اړوندمي هیڅ هم له نظرڅخه ندي تیرشوي.اوبعضي حافظان چی کله به تراویحوکی دقرانکریم ختم کوي بیادوی به دی ختم کی سورة اخلاص مکررلولي دوی فکرکوی لکه څرنګه چي دفقهي حنفي په کتابونوکی علماودسورت اخلاص تکراروول مستحسن بللی،داحکم دتراویحوپه ختم کی هم دي؛خودتراویحوپه ختم کی دسورت اخلاص مکررلوستل نشته؛کذافي احکام القنطره للعلامه عبدالحي نوموړي لیکلي چی زه یی هم مکررنه لولم.دیادونی ورده چی علامه عبدالحی هم دقرانکریم حافظ وه.

اواکثره حافظان بسم الله الرحمن الرحیم دسورت اخلاص په پیل کی وایي دوی داسي فکرکوی چی بسم الله الخ یواځی دسورت اخلاص په پیل کی ویل کیږي؛علامه عبدالحي لیکلی چی ددی التزام بدعت دی شایي چی په بیلابیلوسورتونوکی ولوستل شي په ټول ختم کی دبسم الله لوستل یوځل ضروري دي،خوکه ځوک یی دهرسورت په پیل کی وایی داهم جوازلري.له علامه عبدالحي څخه په دي اړه احکام القنطره کتاب کی پوښتنه شوی چی ځینی خلک دقرانکریم له ختم وروسته سورت فاتحه اوسورت بقره ترهم المفلحون پوری وایی آداشرعاجوازلري؟

---

[1] - سبق تخریجه.

دسورت بقرې له مینځ څخه تلاوت کوی،تردې وروسته دسورت بقرې روستی [illegible] کوی؟"من این اخذتم یاایهاالعلماءویاایهاالطلباءویاایهاالمشائخ والله ماوجدنا بعدتفحص الشدید فی کتب الاحادیث ولافی کتب المتعلقه بعلوم القران ولافی کتب الفقه فمن این اخذتم" ایادی لوستل په اسلام کی ثابت دي اوکنه؟

په حدیث شریف باندی خوبواخی دسورت فاتحی اوسورت بقری ترهم المفلحون پوری لوستل ثابت دي؛اودسورت اخلاص په اړوندامام احمدبن حنبل لیکلی چي تکراروول یی جوازلري،دغه علامه سیوطی لیکلي دي چی دسورت اخلاص دری خلی تکرار علماومستحسن بللی،داخبره نورو ډېرو علماوهم لیکلی ده منهم:علامه قرطبی،علامه زرکشي في البرهان،علامه عبدالحی في نفع المفتي واحکام القنطره،امام حلبي في شرح منية المصلي وفتوای الهندیه.چي کله یوځوک دقرانکریم ختم تروالناس پوری ورسوی ترهغه وروسته به سورت اخلاص دری خلي لولي؛حکه چي ددی لوستل علماومستحسن بللي؛وعن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ومارأه المسلمون حسنافهو عندالله حسنا[1]

خودسورت الفلق اوسورت الناس په اړه کتابونوکی څه نشته،که ځوک وایی چي له عدم دوجدان څخه عدم دشي نه راخي خوکوم چي قرانکریم پوری متعلق کتابونه له ماسره موجوددي هغه ټول مامطالعه کړي خوپه دي اړوندمي هیڅ هم له نظرڅخه ندي تیرشوي.اوبعضي حافظان چي کله په تراویحوکی دقرانکریم ختم کوي بیادوی په دی ختم کی سورة اخلاص مکررلولی دوی فکرکوی لکه څرنګه چي دفقهي حنفي په کتابونوکی علماودسورت اخلاص تکراروول مستحسن بللي،داحکم دتراویحوپه ختم کی هم دي؛خودتراویحوپه ختم کی دسورت اخلاص مکررلوستل نشته؛کذافي احکام القنطره للعلامه عبدالحي نوموړي لیکلي چي زه یی هم مکررنه لولم.دیادونی وړده چي علامه عبدالحی هم دقرانکریم حافظ وه.

اواکثره حافظان بسم الله الرحمن الرحیم دسورت اخلاص په پیل کي وایي دوی داسی فکرکوي چي بسم الله الخ یواخي دسورت اخلاص په پیل کي ویل کیږي؛علامه عبدالحي لیکلي چي ددی التزام بدعت دی بنایي چي په بیلابیلوسورتونوکي ولوستل شي په ټول ختم کی دبسم الله لوستل یوځل ضروري دي،خوکه ځوک یی دهرسورت په پیل کی وایی داهم جوازلري.له علامه عبدالحی څخه په دي اړه احکام القنطره کتاب کي پوښتنه شوي چي ځیني خلک دقرانکریم له ختم وروسته سورت فاتحه اوسورت بقره ترهم المفلحون پوري وایی اداشرعاجوازلري؟

---

[1] - سبق تخریجه.

نوموري بيرته په نفع المفتي والمستفتي كتاب كي خواب وركړيدئ چي دسورت فاتحي اوسور بقرى ترهم المفلحون پوري لوستل جائزدي،خوپه دي باندي زيادت ندی جائز؛ الاتقان، التذك، تفسيرقرطبي،البرهان اوالاتحاف كتابونوكي هم دغه خبره ليكلي ده.اوعلامه ابن العربي په دنياكي لوی بزرگ تيرشويدی هغه په ترمذي باندي شرحه كړي هلته يي په دي باندي اجماع رانقل كړی چي زيادت ناجائزدی.

ددي لپاره علماء له يوه حديث څخه استدلال كوي چي رسول اللهﷺ په حضرت بلال باندي تيريده هغه دقرانكريم تلاوت كاوه يوايت يي له يوه ځای څخه ويلی بل يي له بل ځای څخه،نبی كريمﷺ ورته وويل:بيادابول تلاوت مه كوه.[1]سره له دي چي داحديث مرسل ده خواسناديې صحيح ده؛كوم كتابونه چي وړاندی ذكرشول په هغوتولوكي داحديث موجوددی.

خوداعاجزبنده په ابوداودكي په يوبل حديث باندي هم واقف شوچي يووخت كي رسول اللهﷺ په حضرت ابوبكر،حضرت بلال اوحضرت عمررضی الله عنهم باندی تيريده حضرت بلال ته يي وويل:چی زه په تاسي باندي تيريدم تاپوايت له يوه ځای څخه اوبل ايت له بل ځای څخه ويلی؛حضرت بلال وويل:چي داالله تعالی كلام دی زه طيب له طيب سره يوځای كوم؛نونبي كريمﷺ ورته وويل:وايه بلاله څه ډول دی چي خوښه وي.[2]داحديث مرفوع متصل حديث دی كه دی حديث ته نظروشي نوښايي چي زيادت جائزشي؛خوكه دعلماواجماع ته نظروشي بياجوازنلري؛زماپه خيله دارايه ده چي دعلماوله اجماع سره موافقت وشی ځكه چي كيدلای شي چي هغوی په دي اره علمي تحقيقات كړي وي؛ښايي چي زيادت ونه شي ځكه چي اوس خوسم التزام ورڅخه جوړشويدی؛خوكه څوک يي كله كله لولي بياځه پروانه كوي خوالتزام يي ندی صحيح. والله اعلم بالحال.

## دتلاوت پرمهال خشوع:

څوک چي دقرانكريم تلاوت كوي نوښايي چي دتلاوت پرمهال غمجن وي اوژړاهم ورسره وكړي،كه چاته ژړانه ورځي بيابه هم ځپل ځان غمجن احساسوي.

[1]-عن سعيدبن المسيب ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مربلال وهويقرأمن هذه السورة ومن هذه السورة فقال:يابلال مررت بك انت تقرأمن هذه السورة ومن هذه السورة قال اخلط الطيب باالطيب فقال:اقرأالسورة على وجههاوقال على نحوها-الاتقان١/٢٢١-.

[2]-عن ابي هريره عن النبي صلى الله عليه وسلم فقال:لابي بكررافع شيأ ولعمراخفض شيأ زادوقدسمعتك يابلال وانت تقرأ من هذه السورة ومن هذه قال كلام الطيب يجمعه الله بعضه الى بعض فقال النبي صلى الله عليه وسلم كلكم قداصاب-سنن ابي داود١/١٨٨-.

كه څوك په مجلس كي تلاوت كوي بيابه په زړه اوزبه دواړوباندي ژاړي كه يواځي ظاهراً يې ... اوپه زړه كي يې نه ژړل داډول ژړاښاجوازنلري څكه چې داډول ژړادرياكاري ده وي؛كذافي اعلاء السنن للعلامه ظفراحمد.

دقرانكريم ليكل پرته له مصحف عثماني څخه په بل ډول جوازنلري خودتعليم لپاره جوازلري اودقرانكريم په كوچني خط ليكل مكروه دي بيايي چې په غټوتكوباندي وليكل شي تردې لپاره چې ښه معلوم شي.

همدارنگه تلاوت به هم په كوچني اوازسره نه كوي دبنځي په شان په غټ اومفخم اوازسره به تلاوت كوي؛كذافي التذكار، والتبيان والتفسير القرطبي

## دقرانكريم له مخې لوستل ډيرثواب لري:

دقرانكريم له مخې تلاوت كول ډيرثواب اوفضيلت لري،په دې اړه ډيراحاديث هم روايت شويدي،مصنف ابن ابي شيبه، كتاب المصاحف،البرهان،المباحث في علوم القرآن اوكشاف القناع كتابونوكي ليكلي دي چې دقرانكريم له مخې لوستل ډير ثواب لري؛څكه په دې كي دوه فضيلته دي يويه خوله باندي لوستل،بل په سترگوباندي ليدل؛نوقرانكريم له مخې لوستل ډيرفضيلت لري [1]

## دقرانكريم دتلاوت لپاره مسواك وهل

كله چې يوڅوك دقرانكريم دتلاوت اراده لري نووړاندي تردې به مسواك هم ورنه وهي نو داچې دقرانكريم طرف ته دپښو غځول هم جوازنلري؛څوكه قرانكريم په جگ ځاى كي ايښى وي بيا ځه ... نلري.

اوبل داچې كله يوڅوك تلاوت كوي نوخپل مخ به دقبلي په لوربرابروي اودنللوپه حالت كي هم تلاوت جائزدى.اوبل داچې له قرانكريم څخه دخان لپاره بالښت جوړول جوازنلري؛څوكه له علوڅخه ويره وي بيايي له خپل سرڅخه لاندى كيښودل جوازلري.

---

[1] القرائة في المصحف افضل من القرائة من حفظه،لان النظرفيه عبادة مطلوبه-الاتقان۱/۲۱۹-.

# دقرانکریم دایتونوشمیر

علامه ابن جوزي په فنون الافنان کي لیکلي دي چي دقرانکریم تولی(۷۷۰۰۰)کلمی دي په دی باندی دعلماواتفاق دی؛خوپه کسرونوکي اختلاف شته.اوخینی علماءوایی چی دقرانکریم تولی (۹۹۰۰۰)کلمی دي خوبیاهم په کسرونوکي اختلاف شته.

بل دقرانکریم حروف دي چي په(۳۰۰۰۰۰)باندي دعلماواتفاق دی خوپه کسرونوکی اختلاف شته.اوکوم حرف چي په قرانکریم کي ترنورزیات راغلی هغه الف دي چي(۴۸۰۰۰)خلی په قرانکریم کی ذکردی.

بل دقرانکریم نقطي(تکي)دي چي داتولي(۱۰۲۵۰۳۰)یوملیون پنخه ویشت زره اودیرش نقطی دي.

اوبل دقرانکریم ایتونه دي چي دا(۶۲۱۶)دي خیني علماوایی چي(۶۲۱۵)دي؛خوپه کسرونوکی اختلاف شته چي هغه هم تر(۳۰۰)نه رسیږي.خلکوکي مشهوره ده چي دقرانکریم(۶۶۶۶)ایتونه دی خوداخبره بلکل غلطه ده په اره دیروعلماوخپل علمي تحقیقات کري چي دقرانکریم څوایتونه دي؟منهم:علامه ابن جوزي في فنون الافنان وعلامه سیوطي في الاتقان[1]وعلامه علی القاري في المرقاة وفي البرهان في علوم القرآن وایضا مناهل العرفان.کومه خبره چي خلکوکی مشهوره ده چی دقرانکریم ایتونه(۶۶۶۶)دي دابلکل غلطه ده.

## قرانکریم ته پوښ وراغوستل:

قرانکریم ته پوښ ورکول هم جوازلري،علامه قرطبي په التذکارکتاب کي لیکلي چي قرانکریم ته پوښ ورکول له سلفوڅخه ندی نقل شوي؛خودنوموړي داخبره حکه دمنلووړنده چي په کتاب المصاحف اومصنف عبدالرزاق کي چي ځومره احادیث په دي اره رویت شوي له صحابه واوتابعینوڅخه یي نقلونه کری چي هغوی به قرانکریم ته پوښونه ورزکول؛نوقرانکریم ته پوښ ورکول بلکل جوازلري.

---

[1] -وقال الداني اجمعوعلى ان عدآيات القرآن ستته الاف اية،ثم اختلفوفيمازادعلى ذالک فنهم من لم يزدومنهم من قال:ومائه اية واربع ايات،وقيل اربع عشر،وقيل تسع عشر،وقيل خمس وعشرون-الاتقان۱/۱۳۴-.

اوبل داچي كله يوځوک دقرانكريم تلاوت وكړي ترهغه وروسته به قرانكريم مشوربه پربوږدي بندوي به يي.اودقرانكريم په ربل كي كيښودل هم جائزدي.خيني خلک دقرانكريم په مبح كي دطاوس ښکه ږدي داهم جوازلري؛كذافي امدادالفتاواى للعلامه اشرف علي تهانوي.

## دتثاؤب پرمهال دقرانكريم تلاوت

كله چي يوچاته دقرانكريم دتلاوت پرمهال دتثاؤب(اسويلي)راشي نودى به تلاوت بندوي؛كذافال علامه قرطبي.اوبل داچي دقرانكريم په تلاوت كي دقرانتينوجمعه هم جوازلري؛بواخي دتعليم لپاره جوازلري؛كذافي اعلاءالسنن وكتاب الاثارللامام محمد بن حسن الشيباني.

## حكايت:

يووخت كي امام محمدبن حسن الشيباني په يوه لاره باندي روان وه،ديرتړى شويوسړى په مخه ورغي چي هغه ډيرملداروه هغه ته يي وويل:لږاوبه راكړه دوه علمي مسئلي به درزده كړم؛هغه ورته وويل چي حه خپل كاركوه زه دومره وزگارنه يم چي ستامسئلي واورم ؛بيايووخت كي دهمدغه خان ډيره حسينه لوروه ده قسم كړى وه چي زه به داخپله لورترهغه پوري چاته ورنكړم ترڅوچي هغه ماته دلورپه مهركي ټوله دنيارانكړي اوكه په لږمهرمي خپله لوروركړه نوپه مادي خپله ښځه طلاقه وي.

په دي دول ډيركلونه تيرشول باالاخره داخان له خپلي خبري ځخه پښيمانه شوپه ډيروعلماو وګرځيدخوهيڅ چاهم دحل لارورته ونه ښوده؛باالاخره امام محمدته راغی له هغه ځخه يي فتوى وغوښتله هغه ورته وويل:چي ترهغه وخته فتوى نه دركوم چي زردينارونه رانكړي؛خان وويل:چي سمه ده زردیناره يي امام محمدته وركړل نوامام محمدپه دي دول فتوى وركړه چي لورته دي په مهركي قرانكريم وركړه په دي سره به ته له خپل قسم ځخه بري شي.

علماونوموري ته وويل:چي داڅرنګه كيدلاى شي ده خوداسي قسم كړيدى چي لورته به يي په مهركي ټوله دنيا وركول كيږي؟امام محمدورته وويل:چي الله تعالى په قرانكريم كي فرمايلي دي چي { وَلَا

رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَٰبٍ مُّبِينٍ }[۱] یعنی ټوله دنیا الله تعالی په قرانکریم کی راجمعه کړیده؛بیاتولو علماوداخبرده ورسره ومنله په دی دول دهان ښخه هم طلاقه نشوه اولوریی هم واده شوه

که څوک اعتراض وکړي چی دقرانکریم ورکول په مهرکی کله صحیح کیږي؟موږورته جواب کووچی یواحی دامام ابوحنیفه په مذهب باندی دقرانکریم ورکول په مهرکی جوازلري،دضرورت پرمهال په بل مذهب باندي هم عمل کیدلای شي ځکه چی څلورواړه مذاهب حق دي.

## دقرانکریم پلورل اوپیرودل:

ایا دقرانکریم پلورل جوازلري؟په دی مسئله کی هم صحابه اوتابعین دوه دلی دي،څوک چی ددی په جوازباندی قول کوي هغوی وایی چی دضرورت پربنا دقرانکریم پلورل اوپیرودل جوازلري،خوپه دی شرط چی دپلورلونوم به نه وربانديِ ږدي.اودقرانکریم بدلول په بل قرانکریم باندی داهم جوازلري،په دی اړه علماوله صحابه وڅخه ډیر اثارنقل کړیدي.

## دقرانکریم تلاوت غوره دی که تسبیحات اوتهلیلات؟:

په دي اړوندعلماولیکلي دي چي دقرانکریم تلاوت ډیرثواب اوفضیلت لري په نسبت سره نوروازکاروته؛خوپه هغوخایونوکي چي هلته اذکارله رسول اللهﷺ څخه نقل شویدي په هغوخایونوکی ذکرکول ډیرفضیلت لري.

## قرانکریم ته قیام کول:

کله چي یوڅوک مجلس ته حاضرشي اوله هغه سره په لاس کي قران وي آیاداناست خلک به دقرانکریم داحترام لپاره دریږي اوکنه؟په دی اړه علامه زرکشي په البرهان کي لیکلي دي چي دقرانکریم داکرام لپاره به خلک پورته کیږي؛ ډیرونوروعلماوهم داخبره لیکلی منهم علامه قرطبي،علامه نووي،علامه ابن مفلح الحنبلي في اداب الشرعیه وایضاعلامه سیوطی في الاتقان؛چي قرانکریم ته پورته کیدل دهغه داکرام او عزت لپاره مستحب عمل دی.[۲]

---

[۱] سورة انعام/۵۹.

[۲] قال الشیخ عزالدین بن عبدالسلام في القواعد:القیام للمصحف بدعة لم تعهد في الصدرالاول،والصواب ماقاله النووي في التبیان من استحباب ذالک لمافیه من التعظیم وعدم التهاون به-الاتقان۲/۳۴۳-.

# دتلاوت په پای کي به څه لولي

کله چي یوځوک تلاوت پای ته ورسوي نودی به څه شي لولی سبحان ربک الخ اوکه بل شی؟به دی اره چي ماځومره مطالعه کړه داخبره مي چیرته هم نه داحادیثوپه کتابونواونه دفقهي په کتابونوکي پیداکړه چي یوځوک دی دخپل تلاوت په پای کي سبحان ربک الخ ووايي؛خوداخبره شته په کتابونوکي چي کله یوځوک دقرانکریم تلاوت پای ته ورسوي نوصدق الله العظیم،وصدق الرسول النبي الکریم،ونحن علی ذالک من الشاهدین؛به وايي داخبره علامه قرطبي په تفسیر قرطبي او التذکار کتابونوکي لیکلي،امام غزالي هم احیاءالعلوم الدین کي لیکلي،اوعلامه زبیدي هم اتحف کي لیکلي.اوس مونږ زموږپه هیوادکي عادت دی چي دتلاوت په پای کي سبحان ربک الخ وايي سابي حی ددی پرځای صدق الله العظیم وویل شي.

اوبل داچي کله یوځوک دقرانکریم تلاوت کوي په دی وخت کي درسول اللهﷺ نوم ذکرشي نودی به صلی الله علیه وسلم وايي اوکنه؟علماولیکلي دي چي کله تلاوت سرته ورسوی بیابه يې وايي.اوځملاستلوپه حالت کي هم دقرانکریم تلا وت جائزدی؛خوعلامه قرطبي لیکلي چي دادول تلاوت کول ادب ندی نفس جوازلري.

## دقرانکریم حفظ:

دقرانکریم یادول مستحب دي،دخلفاءاربعه وپه شمول ډیرصحابه دقرانکریم حافظان وو؛کذافي لاتقان للعلامه سیوطي[۱] والبرهان للعلامه زرکشي وایضامناهل العرفان.

اودځلورو صحابیاتوڅخه هم قرانکریم یادوه،چي دهغونومونه په دی دول دي:عائشة ام المومنین،میمونه بنت الحارثه،ام سلمة اوشهیده رضی الله عنهن؛مناهل العرفان کي ددی صحابه ونومونه ذکرشویدي.

---

[۱] القرامن اصحاب النبي صلی الله علیه وسلم فعدمن المهاجرین:الخلفاءالاربعه،وطلحه،وسعدا،وبن مسعود،وحذیفه،وسالما،واباهریره،وعبدالله بن سائب،وعبادلة،وعائشه،وحفصة،وام سلمة،ومن الانصارعبادة بن صامت،ومعاذالذي یکنی اباحلیمة،ومجمع بن جاریه،وفضالة بن عبید،ومسلمة بن مخلد-الاتقان۱/۱۲۵-.

## یواځې دقرانکریم ترجمه لیکل:

پرته له عربي الفاظویواځې دقرانکریم ترجمه لیکل جوارلري اوکنه؟په دې باندې ټولومذاهبوتفق دی چې یواځې ترجمه لیکل شرعا جوازنلري.[۱] که څوک دقرانکریم ترجمه لیکي نوحتمي ده چې الفاظ هم ورسره لیکي،څوکه یوایت یادوه ایتونه ولیکل شي بیاځه باک نلري،علماوددې مستثنی کړیده

مفتي محمدشفیع په دې اړوندکتاب جوړکړی چې نوم یې دی صیانة الانسان في تغیررسم اللسان او علامه شرنبلالي په التفحة القدسیه في قرائة القرآن بالفارسیه په دې دواړوکتابونوکې له څلورومذاهبوڅخه نقل شویدی چې دقرانکریم لیکل په فارسي یاهم نوروژبوباندې چې الفاظ نه وي ورسره شرعا جوازنلري:داچې فارسي ژبه ترنوروژبوغوره ده چې په دې ژبې یې لیکل ندي جائز په نوروژبوخوپه طریقه اولی جوازنلري؛داخبره علامه ابن الهمام،علامه شامي او علامه اشرف علي لیکلی ده.[۲]

## دقرانکریم له تلاوت سره ساز:

حینې خلک دقرانکریم له تلاوت سره ساز اوسرودکوي،علماولیکلي دي چې دادول عمل کفردی:کذا في شرح الفاظ کفرللعلامه علی القاري،وفتاوای تاترخانیه کتاب السیرباب احکام المرتدین. والبحر الرائق. ومن کفرولایشعرللعلامه قطلوبغا.

اوعلامه علی قاری خوداهم لیکلي:چې بعضی خلک له نعتونوسره سازکوي اوله دې سره دې رسول الله ﷺ مدحه هم بیانوي دادول عمل هم کفردی.[۳] نوموړي داهم لیکلي چې له قرانکریم څخه ناسم معنی مرادول چې په هغه کې یودول استهزاوي، یاهم عجمي معنی ورڅخه مرادول داهم کفردی،دبیلګې په توګه:یوڅوک چاته ووایي چې راځه دجمعي لمانځه ته لارشوهغه خواب ورکړي

---

۱-لایجوزروایته بالمعنی فلایصح ان نقول:قال الله تعالی مامعناه،بل لابدمن تلا وة النص بحروفه والفاظه لانه موحی من عندالله،ولانه معجزبلفظه ومعناه-(التبیان في علوم القرآن/۲۱۳)

۲-ان اعتادالقرائة باالفارسیه اوارادان یکتب مصحف بهایمنع،وان فعل في ایةاوایتین لا -ردالمختار ۲/۲۲۷

۳-وفي الخلاصةمن قرء القران علی ضرب الدف والقضیب یکفر.قلت ویقرب منه ضرب الدف والقصیب ذکرالله ونعت المصطفی وکذاالتصفیق علی ذکر (شرح الامام علی القاري علی کتاب الفاظ الکفر/۱۲۷-۱۲۶)

چي ژره به هم هکه چي قرانکريم کي الله تعالی فرمايلي دي { إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنْهَىٰ } عن الفحشاء ... بايدچي بواځي ونښي به دی قول سره هم داقول کونکی داسلام له کري ځخه وځي [1]

اوبل داچي بوځوک چاته ووايي راځه چي دقرانکريم تلاوت وکړوهغه حواب ورکړي چي برپرده دومره تلاوت کول،له ډيرتلاوت ځخه ستړي شو.علماوليکلي چي په دی سره هم داسړی داسلام له کری ځخه وځي،کذافي فتاوای التاترخانيه. ياهم يوځوک چاته استهزاء ووايي چي دومره زيته (قل هوالله) دی ووايي چي بيخي دي ورباندی ستړي کړو،په دی خبره باندی هم داسړی کافرکرځي اوکه ځوک په قرانکريم باندی بيسه کيږدي داډول عمل کونکی هم داسلام له دائری ځخه وتلی دی.

# مړي ته دتلاوت ثواب رسيږي

تقريباټول امت مسلمه په دی باندي قائل دی چي دقرانکريم دتلاوت ثواب مړو ته رسيږي،خوبواځي امام شافعي وايي چي مړوته دقرانکريم دتلاوت ثواب نه رسيږي.علامه سيوطي په الاتقان کتاب کی ليکلي چي زمونږامام ددی لپاره له دې ايت کريمه ځخه استدلال کوي چي الله تعالی فرمايلي دي { وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَـٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ }[3]خوبيرته نوموړي امام شافعي ته يوولس حوابونه کړی،شرح الصدورکتاب کي بی ددې لپاره خانګړی باب راوړی چي مړوته دقرانکريم دتلاوت ثواب رسيږي،ځوکوم احاديث يی چي په دليل کي راوړي هغه ټول ضعيف دی بيانوموړي ليکلي چي داحديثونه په اعتباردمجموع طروقوسره مرتبې دحسن ته رسيږي.[4]

په حنبلي مذهبه علماوکي دعلامه ابن تيميه خاص شاګردعلامه ابن قيم په خپل کتاب کي ددی لپاره دلائل وړاندي کړيدي چي دقرانکريم دتلاوت ثواب مړوته رسيږي.[5]خوپه دی شرط چي قاري نه به

---

[1] -سورة العنكبوت/٤٥.

[2] -قال ودعی الی جماعة فقال اصلي موحدا ای منفردا فان الله تعالی قال ان الصلوة تنهی كفر-(شرح الامام علي القاري على كتاب الفاظ الكفر/١٣٥)

[3] -سورة النجم/٣٩.

[4] -وبالاحاديث الاتي ذكرها وهي وان كانت ضعيفة فمجموعها يدل على ان لذالک اصلا وبان المسلمين مازالوفي كل عصريجتمعون ويقرؤن لموتاهم من غيرنكيرفكان ذالک اجماعا- (شرح الصدور/٣٠٢)

[5] -فاذاتبرع به واهداه الی اخيه المسلماوصله الله اليه.فالذی خص من هذالثواب قراءة القران وحجرعلی العبدان يوصله الی اخيه؟وهذاعمل سائرالناس حتی المنكرين في سائرالاعصار والامصارمن غيرنكيرمن العلماء(الروح/١٨٦)

اجره نه ورکوي؛په مونږ احنافوکي لوی محدث علامه علی قاري په فتح باب العنايه کي ليکلي دي چي دقرانکريم دتلاوت ثواب مړوته رسيږي علامه شامي په تنقيح الفتاوی الحامديه اوشفاءالعليل کتابونوکي ليکلي چي دقرانکريم دتلاوت ثواب مړوته رسيږي؛اثارالسنن اوشرح عقيده الطحاوي کتابونوکي هم دغه خبره ليکلي ده.

له کوم ايت کريمه څخه چي امام شافعي استدلال کوي دهغه لپاره علماوکړ جوابونه کړي چي يوله هغوخوابونوڅخه داده چي کله پلاريونيک اوصالح اولادتربيه کړي،دهغه له وفات وروسته دازوی په خپل پلارپسي صدقې کوي اودقرانکريم تلاوت ورپسي بښي چي داخپله دهمدی پلارسعيه ده داهم يواستاذيوښه شاګردتربيه کړي بيادهغه له مرګ وروسته داشاګردخپل استاذپسي دقرانکريم دتلاوت ثواب بښي داهم دهمدي استاذسعيه ده.

اوپه دې اړونددوه صحيح حديثونه هم روايت شويدي چي حضرت عبدالله بن عمراوحضرت جلاح وصيتونه کړي وه چي کله مونږوفات شونوزمونږپه قبرونوبه سورت فاتحه اودسورت بقرې روستني ايتونه تلاوت کوی؛ځکه چي دامونږله رسول اللهﷺ څخه اوريدلي دي.[1]علامه هيثمي په مجمع الزوائدکي دادواړه حديثونه راوريدی چي يوپه طبراني اومعجم الکبيرکي روايت شويدی اوبل په بيهقي کي راغلی دی؛چي داهم ددي دجوازلپاره دلائل دي چي دتلاوت ثواب مړوته رسيږي

## دقرانکريم دختم ثواب نبي کريمﷺ ته ببښل:

خلکوکي مشهوره ده چي کله دقرانکريم ختم وکړي بياداسي دعاکوي چي اللهم اوصل ثواب هذالختم الی روح سيدنا رسول اللهﷺ هل يجوزهذا ام لا؟داهم دعلماوترمينځ يوه اختلافي مسئله ده،علامه تقي الدين السبکي وايي چي دقرانکريم دختم ثواب دنبي کريمﷺ مطهرروح ته ببښل جوازلري؛علامه شامي هم په خپلودواړوکتابونوردالمحتار[2]اوتنقيح الفتاوی الحامديه کي همداخبره ليکلې ده همدارنګه علامه ابي العزهم شرح عقيدة الطحاوي کي همدارايه غوره ګڼلي چي دقرانکريم دختم ثواب نبي کريمﷺ ته هديه کول جوازلري.

---

[1] -وعن ابن عمرقال:سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول اذامات احدكم فلاتحبسوه،واسرعوابه الى قبره،وليقرأعندرأسه بفاتحة الكتاب وعندرجله بخاتمة سورة البقره في قبره- مجمع الزوائد۳/۴۴- رقم الحديث ۴۲۴۲. وعن عبدالرحمن بن العلاءبن اللجلاج قال:قال لي ابي يابني اذامت....ثم اقرأعندرأسي بفاتحة الكتاب وخواتيم سورة البقره،فاني سمعت رسول الله يقول ذالک-مجمع الزروائد۳/۴۴- رقم الحديث ۴۲۴۳.

[2] -وقول علمائنا له ان يجعل ثواب عمله لغيره يدخل فيه النبي صلى الله عليه وسلم فانه احق بذالک- ردالمحتار۳/۱۸۲ .

خو علامه ابن تیمیه دانه مني چې دقرانکریم دختم ثواب دی دنبي کریمﷺ مطهر روح ته ورسي شي لنده داچې احنافو ،شافعیانو او په حنابله وکي معتمدو علماو لیکلي دي چې دقرانکریم دختم ثواب نبي کریمﷺ ته هدیه کول بلکل جوازلري.

## ایاله قبرسره نږدې دقرانکریم تلاوت جوازلری؟:

داهم زموږپه فقهه حنفي کې یوه مشهوره اختلافي مسئله ده،خوپه دې اړه مفتی به خبره دامام محمدصاحب ده چې عندالقبر تلاوت کول جوازلري؛کذافي حلبي الکبیر وفتح باب العنایه للعلامه علی القاري.

## دقرانکریم په تلاوت باندې اجره اخیستل

ایادقرانکریم په تلاوت باندې اجره اخیستل جوازلري؟په دې اړوندزموږدفقهي حنفي په کتابونوکې لیکلي دي چې که دقرانکریم دتلاوت په مقابل کې اجره شرط کړي نودابالاتفاق حرامه ده؛علامه شامي په خپلودریوکتابونوردالمحتار،تنقیح الفتاوی الحامدیه اوشفاءالعلیل کې لیکلي دي چې دادول اجره اخیستل جوازنلري[1]نوموړي لیکلي دي چې که څوک دادول عمل کوي نوترډې ایت کریمه لاندې راځي چې الله تعالی فرمایلي دي { وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ }[2]شاه عبدالعزیزهم دغه خبره لیکلي ده،لنده داچې

زموږاحنافوبالعموم دامذهب دی چې دقرانکریم دتلاوت په بدل کې اجره اخیستل ناروادي.

خو علامه طحطاوي او علامه شوکاني په دې اړه یوڅه سهولت کوي؛هغه داچې دوی وايي دقرانکریم دتلاوت په بدل کې اجره اخیستل جائزدي.زموږپه هیوادکې داسې عادت دی چې دکلي دجومات ملاامام سره له خپلوشاگردانودمړی کورته دقرانکریم دختم لپاره ورځي بیادمړي ورثه دې ملاامام اوشاگردانوته یوڅه روپۍ ورکوي ایادادول عمل شرعاجوازلري؟ په دې اړه که زموږدفقهي حنفي قاعدې ته نظروشي چې المعروف کالمشروط نوښايي چې دادول عمل ناجائز وگرځي؛ ځکه چې اوس مهال په عرف کې همداسې عادت جوړشویدی.

همدارنگه که دتراویحوپه ختم کې هم دقرانکریم یوحافظ په یوه جومات کې دقرانکریم ختم وکړي بیاهغه خلک دې حافظ ته روپۍ ورنکړي،نوراتلونکی کال کله داحافظ په دوی ځان باندې په دې جومات کې ختم کوي؛نوله دې څخه څرګنده شوه چې عرف هم لکه شرط داسې ده نوښايي چې ...

---

[1] -وان القرائة لشئ من الدنیالاتجوزوان الاخذ والمعطي آثمان؛لان ذالک یشبه الاستیجارعلی القرائة.ونفس الاستیجارعلیهالایجوز. ردالمحتار ۲/۶۴۴.

[2] -سورة البقرة/۴۱.

هم داجري اخيستل ناجائز وګرځي.خوداچارايه نده که دی ذکرسوی قاعدی ته نظروسی نوسمی حی همداسی وي؛بوکه داسي منطقه وي چي هلته په خلکوکي دارواج نه وي نوبیاجوازلري

خوعلامه شامي په خپلودواړوکتابونوردالمحتاراوتنقيح الفتاوی الحامديه کي دافتوی مطلقا ورکړه ده چي که څوک په يوه حافظ باندی دقرانکريم ختم وکړي،بياهغه ته دصله رحمی په وجه يوڅه مقداررو پی ورکړي داجوازنلري؛استيجارخوپه طريقه اولی سره ناجائزدی

حوزمونږدمذهب بل لوی عالم علامه عبدالحي الکنوي څخه په مجموعة الفتاوی کتاب الاجاره کي پوښتنه شوی چي که يوڅوک په تراويحوکي ياهم پرته له تراويحوڅخه دقرانکريم ختم وکړي نوبيا حافظ ته حلک ددی ختم په بدل کي روپی ورکړی ايادی روپيواخيستل ددی حافظ لپاره جوازلري؟نوموری په جواب کي ليکلي دي چي دادول عمل داکرام لپاره بلکل جوازنلري.فتاوی عزيزيه اواعلاءالسنن کي هم دغه خبره ليکلي ده.

په محلی دابن حزم چي داهم په علم احاديثوکي مشهورکتاب دی،هلته يي له حضرت عماربن ياسراوحضرت سعدبن ابي وقاص څخه نقل کړيدی چي هغوی به په رمضان کي دتراويحوپه ختم کي حافظانوته روپی ورکولي.(1)داهم ددی دجوازلپاره لوی دليل دی حکه چي صحابه وهم دادول عمل ترسره کړی

اوبل حديث شريف کي راحي چي حضرت ابوسعيدالخدري چيرته په سفرباندی تللی وه،هلته چا ورته وويل:چي ماته دم وکړه؛نوموري ورته وويل.چي سمه ده دم درته کرم خوته به په مقابل کي ميږی راکوی هغه ورته وويل:صحيح ده؛ابوسعيدالخدري الحمدلله الخ درباندی دم کړه؛بياحی کله نبی کريمﷺ ته راغی هغه ته يي وويل:چي مونږخوددم په مقابل کي ميږی اخستي دي ايادانون کړنه زمونږلپاره جوازلري؟نبي کريمﷺ ورته وفرمايل:ان احق مااخذتم عليه اجراکتاب الله(2) يعنی په اوغوره اجره هغه ده کومه چي په کتاب الله باندی واخيستل شي.که څوک اعتراض وکړي چي داخوتلاوت نه بلکه دم وه؟مونږجواب ورته کووچي دم هم اصل کي تلاوت دی؛نوداحديث شريف هم ددی دجوازلپاره لوی دليل کيدلای شي؛خوزمونږداحنافومفتی به مذهب دادی چي دقرانکريم دتلاوت په بدل کي اجره اخيستل شرعاجوازنلري.

---

(1)ان عماربن ياسراعطی قوما قرءالقرآن في رمضان....ان سعدبن ابي وقاص قال من قرءالقران الحقته على الفين....كان بالمدينة ثلاثة معلمين يعلمون الصبيان فكان عمربن الخطاب يرزق كل واحدمنهم خمسة عشركل شهرالمحلى بالآثار. ۷/۲۱.

(2)عن ابن عباس ان نفرامن اصحاب رسول الله مروبماءفيه لديغ فعرض لهم رجل من اهل الماءفقال:هل فيكم من راق؟ان في الماء لديغا فانطلق رجل منهم فقرءبفاتحة الكتاب....حتی قدموالمدينة فقالوايارسول الله اخذعلى كتاب الله اجرافقال:رسول الله ان احق مااخذتم عليه اجراكتاب الله صحيح البخاري۲/۸۵۴.

خودقرانکریم په تعلیم باندی اجره اخیستل جوازلري،همدارنګه احنافو مفتی به مذهب دی،کې متقدمینو علماوپه دی باندی هم دنه جوازفتوی کړېده،په دی اره علامه اشرف علی تهانوي په بوادر النوادر کتاب کې خودوره خبره لیکلی هغه داچې دا اجره دقرانکریم دتعلیم په مقابل کې نه بلکه دحبس په مقابل کې ده،ځکه چې تعلیم ورکوونکی په دی باندی له نورو دنیاوي کاروبارو څخه بند وي،لیکن داچې دقرانکریم دتعلیم په مقابل کې اجره اخیستل بلکل جوازلري.(۱)

## دقرانکریم ابتدایي حالت:

قرانکریم په ابتداءکې نکې نه درلودل،دتولوحروفوکتابت یودول وه،دنیټکی په وکه ... تربیرنه کیده همدارنګه زوروبه،زیروبه اوپیښونه یې هم نه درلودل؛ځکه چې مصحف عثماني کې قرانکریم ولیکل شو(۲)په هغه زمانه کې تول حروف مهمله وه،دیادونې ورده چې دوه دوله حروف دي،حروف مهمله اوحروف معجمه؛حروف مهمله هغوحروفونه ویل کیږي چې تکې نلري اوحروف معجمه هغوحروفونه ویل کیږي چې تکې لري.

دنبي کریمﷺ په زمانه کې چې کوم خطونه لیکل کیدل دهغوترمینځ امتیازنه وه،تول حروف یودول لیکل کیدل ترهغه وروسته بیاتکې،درکوع علامې،حزبونه اوداسې نورشیان مینځ ته راغلل علامه ابن ندیم یوکتاب جوړکړی دالفهرست په نوم باندی هلته یې درزګونوکلونومخکی خطونه راغوندکړي په هغه زمانه کې عربي خط داسې نه وکوم چې اوس ده.

علامه ابو عمر الداني کتاب النقط کې لیکلی چې په لومړي حل باندی یحی ابن کثیر د(ب)او د(ی) فرق وکړ چې(ب)ته یې دوه تکې دپاسه او(ی)ته یې دوه تکې دلاندی وکړل.

همدی کتاب النقط کې لیکلي دي چې یووخت کې حضرت معاویه حضرت زیادته خبر ولیږه چې عبیدالله روی دی شام ته راولیږه په هغه وخت کې حضرت معاویه په شام کې وه او حضرت زیادپه مدینه منوره کې اوسیده؛ځکه چې عبیدالله شام ته لارنوپه تلاوت کې یې ډیرتصحیفونه او غلطیانی وکولی،حضرت معاویه ته حان سره وویل:چې دریادزوی چې پلاریې خومره لوی عالم دی اوزوی اصلي عرب هم دي چې دومره تصحیفونه کوي نودعجمو به څه حالت وي؛عبیدالله یې بیرته حضرت

---

۱-وانما افتی المتاخرون بجوازالاستیجارعلی تعلیم القرآن ....وعللوه بالضرورة وهي خوف ضیاع القرآن ردالمحتار۲/۶۴۵.

۲-فقال حذیفه لعثمان یاامیرالمؤمنین ادرک هذه الامة قبل ان یختلفوافي الکتاب اختلاف الیهودوالنصاری فارسل عثمان الی حفصة ان ارسلي الینا بالمصحف ننسخهافي المصاحف...فامرزیدبن ثابت وعبدالله ابن زبیروسعدبن العاص وعبدالرحمن بن الحارث فنسخوهافي المصاحف صحیح البخاري۲/۷۴۵.

زیادته وروليږه حضرت زیادبه دی باندی دیرخفه شو،نوموړی په هغه زمانه کی دمسلمانانو د
امیر وه.

ابوالاسودالدئلي یې راوغوښت چې نوموړی لوی عالم اوتابعي وه هغه ته یې وویل چې یوخه قواعدي
جوړی کړه،حکه چې خلک دقرانکریم په تلاوت کی دیرتصحیفونه کوي؛ابوالاسودداخبره ونه
منله؛حضرت زیادیوه سړي ته وویل چې ته پټ په لاره کی کینه کله چې ابوالاسود دریاندی تیریږي
نوقصدادقرانکریم دیوه ایت غلط تلاوت وکړه؛کله چې ابوالاسودپه لاره باندی تیریده دی سړی
قصداددی ایت کریمه غلط تلاوت وکرچې الله تعالی فرمایلي دي{ أن الله بريء من المشركين
ورسوله}[1] ژباړه:الله تعالی اودهغه رسول له مشرکینوڅخه بیزاره دي؛دلته دی تلاوت کوونکی
د(سوله) پرځای(رسوله) وویلي چې په دی سره یې په معنی کي دیرزیات فرق راخي؛یعنی الله تعالی
له مشرکینواورسول الله څخه بیزاره دی.

کله چې ابولاسود دادول غلط تلاوت واوریده بیرته راوګرځیدحضرت زیادته یې وویل چې نحوه
جوړومه،تردي وروسته یې بیادعلم نحوی لپاره ځیني قواعدوضعه کړلحضرت زیادته یې وویل چې
ماته دیرش کسان راکړه هغه دیرش کسان ورکړل بیایي له دی دیرشوتنوڅخه امتحان واخیست
باالاخره یې یوتن دعبدالقیس له قبیلي څخه غوره کړچې ته قرانکریم درسره ونیسه کوم ځای کی چې
ماشوندی خلاصولی هغه حرف ته فتحه ورکوه،کوم ځای مي چې شوندی ضم کولی هغه حرف ته
ضمه ورکوه اوکوم ځای مي چې شوندی کږولي هغه حرف ته کسره ورکوه.په هغه زمانه کی
فتحه،ضمه اوکسره په دی دول نه وه کوم چې اوس دي؛ضمه دحرف وړاندې طرف ته تکی وه،فتحه
دحرف دپاسه تکی وه اوکسره دحرف لاندي تکی وه.

دیادونی وړده چې تردې وړاندې یحی ابن کثیرحروفوته تکی ورکړي وه؛له دی څخه مخکی زمانه
کي الله تعالی خلکوته دومره زیات مهارت ورکړی وه سره له دی چې حروفونکی هم په
دړلودل،زوروڼه،زیروڼه هم نه وه،بیاهم خلکوصحیح تلاوت کاوه؛که اوس تکي نه و [illegible] څه
دول تلاوت کاوه؟الحمدبه مووېلي،که الجمدبه مووېلي اوکه الخمدبه مووېلي؛ داخدمت په نوموړی حي
باندی یحی ابن کثیرکړی اوتردی وروسته زوروڼه اوزیروڼه ابوالاسودالدئلي ورکړیدي؛الله تعالی دی
ددوی دالوی خدمت په خپل دربارکی قبول کړي؛دلاښه تحقیق لپاره کتاب النقط ته مراجعه وکړي

---

[1] سورة التوبة/٣.

په هغه زمانه کی قرآنکریم ...الفاظو لیکل په تورخط باندی کیدل،دتکو ،زورونو ،اوزیرونو کتابت په سره خط باندی کیدو ... ور ...سته بیا خلیل بن احمدزورونواوزیرونوته چی تردی وړاندی دتکو په څیر وه داوس وخت ... ور ...نو شکل ورکړ؛صرفیان وایي چی الف له دوفتحو څخه جوړ شویدی،داغلطه خبره ده حکه چی الف ...په فتحی څخه وړاندی جوړ شویدی؛بیاتردی وروسته علماوپر محتک کاوه ان تردی چی اشمام،ادغام،تعشیر،دایتونوعلامي اوحزبونه مینځ ته راغلل؛لنده داچی په ابتداء کی قرانکریم له دی ټولو ...نښانو ...څخه خالي وه.

# حکایت

په یوه زمانه کی په مدینه منوره کی دعباسیانو یوبادشاه دمتوکل علی الله په نوم باندی؛نوموړی خپل دمصرگورنرته خط ولیکه چی احصِ عددالزمین یعنی په مصرکی چی کوم زمیان دي هغوی شمارکړه؛دلته داحص په(ح)باندی تکی راغلی وه (خ)ورڅخه جوړه شوی وه

کله چی دمصروالي ته داخط ورسیدهغه ولیدل چی دبادشاه مهراودستخط ورباندی وه په خپل کارپیل وکړ،څومره زمیان چي په مصرکي اوسیدل هغه ټول یې خصیان کړل یواحې دوه تنه ژوندي پاتی شونورټول مړه شول؛کله چی بادشاته خبرورسیده چی ټول ذمیان یې خصیان کړیدی او هغوی ټول مړه شویدي؛دمصروالي ته یې خط ولیږه چي ماخوداسی ندي ویلي چي خصیان یې کړه تولی خصیان کړل؟دمصروالي بیرته هغه خط بادشاه ته مدینی منوری ته ورولیږه کوم چی بادشاه ده ته لیږلی وه؛بادشاه چی کله خپل خط ولیده چي له(ح)څخه (خ)جوړه شویده نوداخبره یې تسلیم کړه چي والي ندی ګرم؛نوکله ناکله یوه نقطه هم دومره زیات کارخرابوي؛کشف الظنون اوتاریخ الخلفاءدعلامه سیوطي کی داحکایت لیکل شویدی.

## دقرانکریم ځیني الفاظ په سره خط لیکل:

بعضي خلک پوښتنه کوي چي اوس مهال په ځینوقرانکریمونوکي دالله تعالی نوم یاځیني نور الفاظ په سورخط باندي لیکل شوی وي یا دعلم احادیثوپه ځینوکتابونوکي صلی الله علیه وسلم په سورخط لیکل شوی وي آیاداشرعاجوازلري؟هو: دقرانکریم ځیني الفاظ په سره خط لیکل جوازلري کتاب النقط کی لیکلي دي چي دصحابه وپه دورکي داسي عادت وه چي زور،زیر اوپیښ به یې په زیرخط لیکل اوپه عراق کی عادت په دي باندی جاري وه چي په سره خط به یې لیکل؛نوپه سوررنګ باندی دقرانکریم ځینی الفاظ یاهم داحادیثوځیني الفاظ لیکل بلکل جوازلري.

## غیرمقلدینوباندی رد:

غیرمقلدینوکی اکثره علماءوایي چي بدعت کي حسن نشته،که بدعت کي حسن نه وی نوپه قرانکریم کي دانقطي(تکي)هم بدعت دي دځه لپاره علماوپه بدعت باندی اجماع کړیده؛هغه خلک چي وایي بدعت کي حسن نشته هغوی دي بیاله قرانکریم څخه نقطي،زوروته،زیروته اوپیښونه هم لري کړي ځکه چي داهم بدعت دي.

## دلاحول ولاقوة الی اخره فائده:

دنبي کریمﷺپه زمانه کي یوسړی کافرانوبندي کړی وه،دهغه موراوپلارنبي کریمﷺته راغلل چي زمونږزوی کافرانوبندي کړیدی؛نبي کریمﷺورته وفرمایل:چي ولاحول ولاقوة الابالله دیروایی زوی به موالله تعالی راخلاص کړي؛بله ورځ بیاداسړی اوښخه نبي کریمﷺ ته راغلل چي زمونږزوی راخلاص شواوڅلورسوه میږی یی هم له کافرانوڅخه راوستلي دي.[۱]

تفسیرمظهري کی لیکلی دي چي مجدد الف ثاني وایي:که څوک غواړي چي علم اورزق یی زیات شي اوالله تعالی یی له مشکلاتوڅخه وساتي؛نودهري ورځي په پیل کي دی سل ځلی درودشریف بیاپنځه سوه ځلی لاحول ولا قوة الابالله العلي العظیم، بیاپه اخرکي هم سل ځلی درودشریف لولي؛نوالله تعالی به یی ټول مشکلات حل کړي.

اوپه تفسیرصاوي کي یوحکایت لیکلی چي په یووخت کي یوه سړي چیرته په سمندري بیړۍکی سفرکاوه،چي یو هاتفي اوازیي واوریده هغه داسي وه چي که څوک غواړي چي دهروخت لپاره یی الله تعالی له مشکلاتوڅخه وساتي؛نوزماپه لاربښونه دی عمل وکړي زه به یوه داسي فائده ورته وښایم چي دهغي په واسطه به دی په هروخت کي له هرمشکل څخه محفوظ وي؛کیشتی کي ناست ټول خلک غلي شول دی یوه سړي ورته وویل:چي سمه ده زه ستاپه لاربښونه عمل کوم؛اوازورته وشوچي له تاسره کومي لس زره روپی دي هغه یولی دریاب ته واچوهداسړی وایي چي ماخپلي ټولی روپی دریاب ته واچولي ورته ومی ویل چي اوس هغه فائده راته وښایهپه هاتفي غږراته وویل شوچي لاحول ولاقوة الابالله العلي العظیم،دیروایه؛ماورته وویل چي سمه ده منکروراته وویل:چي دابه څه

---

[۱] -عن ابي موسی الاشعري قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم یااباموسی الا ادلک علی کلمة من کنزالجنة قلت:بلی قال:لاحول ولاقوة الا بالله - صحیح البخاري۲/۹۴۸.

فائده درورسوي غلط کاردی وکرچي روپی دی په درياب کي واچولي ماورته وویل چي حيران اوس خوشول.

ترلږزندوروسته هواطوفاني شوه،کشتی ماته شوه،څومره خلک چي په دی کشتی کي وه هغوی ټول غرق شول؛زه په يوه تخته باندی کیناستم په دی ډول مي ځان ساحل ته ورساوه.هلته له اوبوڅخه وچي ته ووتلم؛چي گورم يوډيره ښکلي اوښايسته کونه مي ترسترگوشوه،چي هرډول باقوت اوزمرودپکي کارشوي وه؛ددی کوټي په مينځ کي يوه ډيره حسينه جلی وه،چي دادول حسن ماچيرته هم نه وه ليدلی؛ماسلام ورباندی وکرهغي راته وويل انسانه ته دلته څه کوي؟ماخپله ټوله کيسه ورته بيان کره بيامي له دی ښځه وپوښتل چي ته دلته څه ډول راغلی يې؟هغي ځواب راکرچي زه دبصری ديوه تجارلوريمه يووخت کي مونږپه بيری کي سفرکاوه،بيارمونږبيری غرقه شوه زه ديوی تختی په واسطه ساحل راووتلم بياهلته يوديوراغی چي عربی کي ورته غول وايي،زه يی دلته راوړم؛ته پوهيږم چي ديودی اوکه پيری دی له ماسره مستي کوي حوجماع يي نده راسره کری هغه وه ورځي په درياب کي اوسيږي بيادلته ماته راځي.

داسری وايي چي دی جيلی راته وويل:چي څه لاړشه نن دديودراتلوورځ ده ولی ځان ورباندی هلاکوي دی جيلی لاداخبره نه وه خلاصه کری چي يوتورغوندی غټ حيوان مي وليد؛جيلی راته وويل:چي هلاک شوی؛ماورته وويل:خبرچي هرڅه وي اوس خوپيښه ده؛داسری وايي چي په دی وخت کي ماداکلمات له خان سره وويل:لاحول ولاقوة الابالله العلي العظيم،له دی سره ديوپه هوابانديی توټي،توټي شواوپه ځمکه راپريوت؛دی جلی راته وويل:چي داڅه عجيب سری يي داڅه دی ورباندی وکرل؟ماورته وويل چي دقرانکريم داايت مي ورباندی ولوست چي لاحول ولاقوةالخ؛داسری وايي چي مادی جلی ته وويل: اوس نوراځه چي لاړشوهغي راته وويل:دلته خوډيرقيمتي شيان دي دانه هم راسره واخلو،ماورته وويل:سمه ده؛قيمتي شيان موراسره واخيستل اودساحل په لورموحرکت وکرله لری څخه مويوه سمندري بيری ترسترگوشوه؛بيری ته مواشاره وکره هغه دساحل طرف ته راغله مونږپکي سپاره شواوپه دی ډول موخانونه دبصری ښارته ورسول،مادی جيلی ته وويل چي دلته ستاسوکورچيرته دی؟هغي راته وويل:فلانکي ځای کي دهغي کورته ورغلودروازه مووټکوله ؛ چا غږوکرچي څوک يي؟ماورته وويل:چي دفلانی جيلی استازی يم؛هغوی راته وويل حه ورک شه زمونږغمونه دی راتازه کرل،غم زمونږپه کورکي يوڅه ورک شوی وه بيادی زمونږپه کورکي غم جورکر؛ماورته وويل:هغه هم راسره ده له دی سره هغوی ډيرزيات خوښ شول زمايي ډيره قدردانی وکره راته ويي ويل:چي همداجيلی تاته مونږپه نکاح درکو؛ماورته وويل:سمه ده، کوم قيمتی شيان

چي مونږ نه حال سره راوزي وه هغه موږ په خپل واده کي مصرف کړل،نوموري وايي چي دشوررويه مقابل کي الله تعالی دومره زيات نعمتونه راکړل،داتوله دلاحول ولاقوة الخ فتده وه.

# دقرانکريم اعجاز

امام اسمعي وايي چي زه يوه ورځ په يوه لاره باندي تيريدم،څوتنه ماشومان مي وليدل چي په مرڅکوني لوبي کولي،له دوی سره نږدي يوبل ماشوم ديرغلي ناست وه،ده دي ماشوم څخه مي پوښتنه وکړه چي پلار دي چيرته دی؟ځواب يي راکړچي (فالی الفيفايطلب الفي فاذافاءالفيء)

ژباړه:فا په معني درجوع ده،يعني پلارمي تللی جهادته غنيمت طلب کوي،کله چي له کفاروڅخه غنيمت ونيسي بيابيرته کورته راځي.امام اسمعي وايي چي زه ددی ماشوم علم ته حيران شوم چي دڅه عجيب ماشوم دی،په هغه زمانه کي ماشومانوته الله تعالی دومره زيات علم ورکړی وه حوبياهم دوی نه قرانکريم سره مناظره ونشوی کړای،نبي کريمﷺ په واروارد وی دقرانکريم مناظری ته راوبلل خوټول عرب دقرانکريم له مناظری څخه عاجزراغلل.(۱)

# دلبيدحکايت:

لبيدابن ربيعة العامري درسول اللهﷺ مشهورشاعروه،نوموری يووخت کي خپلو دسمانونتدي کړی وه دده دمرګ اراده يي درلوده،يابه همدادنبي کريمﷺ شاعرلبيد وه،يابه کوم بل لبيدوه،هيڅوک هم نه خبرچي لبيدچيرولی دی،نوموری خپلوقاتلانو ته وويل:چي وژنی خومي خوبواحسان راسره وکړي هغه داچي زماله مرګ وروسته زمالورانوته داشعرورسوی چي:يابنتا لبيدان اباکما،هغوی ووېل سمه ده ستاداشعربه ستالورانوته ورسوو.

دلبيدترمرګ وروسته هغه قاتل راغی دلبيدلورانوته يي ووېل:چي ستاسوپلارووېل چي زمالورانوته زماداشعرورسوي‌چي يابنتالبيدان اباکما،دلبيدلورانوپوښتنه وکړه چي ددی شعربه کړی څه نول ده؟هغه ووېل:چي نوريي ماته ندی ښودلی،دلبيد يوی لوربلی ته ووېل:چي ددی شعربه کړی حوبايدداسي وي چي قدقتل وقاتل اتاکما،دومره زيات مهارت الله تعالی په علم دادبياتوکي ورکړی وه،چي سم دلاسه يي دخپل پلارمرګ له شعراوشاعری،وزن اونظم څخه رامستنبط کړويي ويل چي همدازمونږ دپلارقاتل دی نوره يي راواخيسته اودخپل پلارقاتل يي ووژه.دلبيدلوراني نرکانی نه وی

---

*واتقدماهم على ان يأتوابمثل القرآن فعجزواولولا الادبارعع انهم فرسان الفصاحة،وملوك البيان (البيان في علوم القرآن/۹۴).

اونه دکرامت والاوی بواخي په دي وجه چې الله تعالی په فصاحت اوبلاغت کې مهارت ورکړی وه،په دی دول يې دخپل پلارقاتل وپيژانده،په هغه زمانه کې نبي کريمﷺ له مشرکينوڅخه دقرانکريم سره دمناظرې غوښتنه وکړه خوهيڅ چاهم له قرانکريم سره مناظره ونشوی کړای.

## دقرانکريم په مقابل کې دمشرکينوخيني الفاظ:

رسول اللهﷺ به واروارمشرکين مناظرې ته راوبلل،خوهغوی هيڅکله هم دقرانکريم مناظرې ته نه حاضريدل؛بواخې دوی دقرانکريم په مقابل کې خيني الفاظ ليکلي وه چې هغه ددوی په اندله قرانکريم سره مقابله کول وه؛چې هغه خيني الفاظ علامه ابي بکرالعاقلاني په خپل کتاب اعجازالقرآن کې نقل کړيدی هغه داچې يووخت کې يومتنبي دقرانکريم مناظرې ته راغی دنبي کريم په حضورکې يې خپل جوړشوی قران په دی دول ولوست؛(والشاة والوانها،واعجبيهاالسودوالبانها،والشاة السوداءولبن الابيض،انه لعجب محض).[1]

ژباړه:پسونه اورنګونه يې،ترټولوښه پسونه هغه دي چې توروي اوشودې يې،پسه توراوشودې سپينې،داخالص عجائب دي. دادمشرکينوقران جوړول وه؛همدارنګه دوی دقرانکريم په مقابل کې خيني نورالفاظ . هم جوړکړي وه،دبيلګې په توګه: ياوبروواياوبرو،(انت حفرنقر؛ياوالنساءذات الفروج،اوالفيل ماالفيل،ومادراک ماالفيل،له ذنب وبيل،وخرطوم طويل).[2] سره له دې چې دوی ته الله تعالی په علم دادبياتوکې نهايت زيات مهارت ورکړی وه؛خوبياهم دوی دقرانکريم له مناظرې څخه عاجزشول.

تاريخ ادب العربي ديوهکتاب نوم دی هلته يې دعربوهغه خطباذکرکړيدی کوموته چې الله تعالی په علم دبلاغت کې زيات مهارت حاصل وه،هلته يې دبوه سري ذکرکړيدی چې هغه دری ورځې پرله پسې تقريرکړی وه خوبوه لفظ يې هم تکرارنه وه ويلی؛کوم لفظ به يې چې يوځل ويلی وه بيابه که هغه لفظ ته ارتيا پيداشوه،دهغه پرځای به يې بل داسې لفظ راوړچې دهغه لفظ معنی به ورڅخه اخيستل کيدله کوم چې مخکې ذکرشوی وه؛خوبياهم دوی دقرانکريم له مناظرې څخه عاجزشول.

---

1-(التبيان في علوم القرآن/۱۴۷)

۲-(التبيان في علوم القران/۱۴۷) ومن قرائة المفتري باضفدع بنت ضفدعين نقي ماتنقين نصفک في الماء ونصفک في الطين لاالماءتكدرين ولاالشارب تمنعين-(التبيان في علوم القرآن/۱۴۷)

# په قرانکریم خبري کول:

کتابونوکي يوحکايت راحي چي علي ابن حسين مشهورپه زين العابدين،چي نوموړی دحضرت علي دخاندان سری وه،دده يوی مينځي يوه ورځ دده په سرباندي اوبه وراچولي؛په دی وخت کي ددی مينځي له لاس څخه بدني پريوته اودهغه سرورباندي مات شو؛دی په غوسه باندی شومينځه يي ديره هوښياره وه هغي سم دلاسه دقرانکريم دا ايت ولوست چي {وَٱلۡكَـٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ}[۱]ده ورته وويل:چي څه ومي بښلي،مينځي بياوويل:چي {وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِ}[۲]ده ورته وويل چي څه عفوه مي هم درته وکره،مينځي بياوويل:چي {وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ}[۳]دومره تکره مينځه وه تولي خبري يي په قرانکريم باندي کولي.[٤]

کتاب الاذکياء دابن جوزی کي ليکلي دي چي چي يووخت کي څوکسانوپه يوه لوښي کي وريجي اچولي وی.په مينځ کي يي غوري اچولي وه؛دوی له يوبل سره وويل:چي ترهغوبه خوراک نه پيل کووچي هريوه زمونږله دی غوريوڅخه دځپل خان طرف ته لاره جوړه نکړوخوهريوزمونږبه ددی ثبوت په قرانکريم باندی کوو؛په دوی کي يوتن وويل:چي {أَنَّا نَسُوقُ ٱلۡمَآءَ إِلَى ٱلۡأَرۡضِ ٱلۡجُرُزِ}[۵]په دی سره يي ځپل طرف ته له غوريوڅخه لاره جوړه کره؛بل وويل: {فِيهَا عَيۡنٌ جَارِيَةٌ فِيهَا عَيۡنٌ جَارِيَةٌ}[۶]ده هم خانته لاره جوړه کره؛بل وويل: {فِيهِمَا عَيۡنَانِ تَجۡرِيَانِ}[۷]له دي سره يي حانته دوه لاری جوړی

---

[۱]-سورة ال عمران/۱۳۴.

[۲]-سورة ال عمران/۱۳۴.

[۳]-سورة ال عمران/۱۳۴.

[٤]-معارف القرآن۸۹/۲-.

[۵]-سورة السجده/۲۶.

[۶]-سورة الغاشية/۱۲.

[۷]-سورة الرحمن/۵۰.

کړی،بل یوه وویل:چې زه به څه وکړم ترلږسوچ وروسته یې وویل: { إِذَا زُلْزِلَتِ ٱلْأَرْضُ زِلْزَالَهَا }[1]له

دې سره یې ټولی وریژی او غوري سره ګډوډکړل.

علامه عبدالله بن المبارک په دنیاکي لوی عالم تیرشویدی.له هغه څخه علامه شهاب الدین الابیهي په خپل کتاب المستطرف في کل فن مستظرف کي نقل کریدی؛[2]چي توموږی وایی:زه په خپله اوښه باندي سپوروم ،بیت الله ته دحج په اراده روان وم چي په لاره کي می له لرې څخه بوځوک ترسترګوشول؛کله چي نږدی ورغلم ومي لیدل چي یوه زړه ښځه ده،ماسلام ورباندی وکړچي السلام

علیکم،زړې ښځي په دې آیت کریمه خواب راکړچي {سَلَٰمٌ قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ }[3] ماپوښتنه ورڅخه

وکړه چي موږی دلته څه کوی چي په دې صحرا اودښته کي یواځي ولاړه یې؟خواب یې راکړچي

{مَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَا هَادِيَ لَهُۥ }[4] زه یوې شوم چي لاره تري ورکه شویده؛بیامي پوښتنه ورڅخه وکړه

چي چیرته روانه یې؟خواب یې راکړچي { سُبْحَٰنَ ٱلَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ إِلَى

ٱلْمَسْجِدِ ٱلْأَقْصَا }[5] زه پوی شوم چي دبیت المقدس طرف ته ځي؛بیامي پوښتنه څنې وکړه چي څومره

وخت وشوچي ته دلته ولاړه یې؟خواب یې راکړ { ثَلَٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا } [6]یعني درې ورځي کیږي چي

لاره راڅخه ورکه شوي؛عبدالله بن المبارک وایی چي مادخان سره وویل:داخه عجیبه ښځه ده چي ټولی خبرې په قرانکریم باندې کوي؛بیامې پوښتنه ورڅخه وکړه چي دلته خودخوراک هیڅ هم نشته

دادرې ورځي دې څه شي خوړل؟په خواب کي یې وویل:{ وَٱلَّذِى هُوَ يُطْعِمُنِى وَيَسْقِينِ }[7] یعنې الله

---

[1]-سورة الزلزال/۱.

[2]-(المستطرف في کل فن مستظرف/٦٢)

[3]-سورة يس/٥٨.

[4]-سورة الاعراف/١٨٥.

[5]-سورة اسراء/۱.

[6]-سورة مريم/۹.

[7]-سورة الشعراء/٧٩.

تعالی هغه ذات دی چې ماته دخوړنو او څښلو شیان راکوي؛بیامې پوښتنه ورځخه وکړه چې موری دلته خواوبه هم نشته دادری‌ورځې دی په څه شي باندی اودس کاوه؟راته ویې ویل {فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا }[1] یعنی په تیمم باندی مې لمونځونه کول؛ورته ومې ویل چې دالږخوراکي شیان له ماسره موجوددي داوخوره؛زړی ښځي راته وویل: {ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ }[2] یعنی زماروژه ده؛ماورته وویلي چې اوس خودروژی میاشت نده روژه دی څرنګه نیولی؟ځواب یې راکړ {وَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ }[3] ورته ومې ویل چې الله تعالی خوحکم کړیدی چې په سفرکی روژه مه نیسی،هغې راته وویل:{ وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ }[4] بیامې پوښتنه ورځخه وکړه چې ولی له مهاسره په دی خپله ژبه خبری نه کوي؟ځواب یې راکړ {مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ }[5] یعنی زه ځکه په قرانکریم خبری کوم چې زماټول اعمال په قرانکریم باندې ولیکل شي.

بیامې پوښتنه ځنې وکړه چې موري اصل کې دکوم ځای یې؟ځواب یې راکړ { إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا }[6] مطلب داچې دعبثوشیانوپوښتنه مه کوه،ځپلی سترګی،غوږونه اوزړه دی په عبثیاتوکی مه استعمالوه؛ځکه چې دقیامت په ورځ په الله تعالی دعبثوکارونوپوښتنه کوي؛اورته ومې ویل چې موري ډیره به ستړي شوي یې زه به داخپله اوښه درته چوکرم ته ورباندی

---

[1]-سورة النساء/۴۲.
[2]- سورة البقره/۱۸۷.
[3]-سورة البقرة/۱۵۷.
[4]-سورة البقرة/۱۸۳.
[5]-سورة ق/۱۷.
[6]-سورة اسراء/۳۵.

سپره شه؟ راته ويې ويل: { وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللَّهُ }[1] يعنى تاسي چې كوم خير كار كوئ نو هغه ښتدى الله تعالى علم لري؛ عبدالله ابن المبارک وايي چې څرنګه مې اوښه چوکړه راته ويې ويل { وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ }[2] مطلب داچې دمؤمن له شان سره ښايي چې کله نامحرمې ښځې ووينې خپلې سترګې ښکته كړې؛ نوموړې وايي چې ماخپلې سترګې ښکته كړې كله چې په اوښه سپره شوه له ځان سره يې وويل: { سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ }[3] عبدالله ابن المبارک وايي چې اوښې ته مې حرکت ورکړ تيزمزل مې ورباندې کاوه اوله ځان سره مې په زوره شعرونه ويل؛ زړې ښځې راته وويل: { وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ وَاغْضُضْ مِن صَوْتِكَ }[4] مطلب داچې اوښه په کراره بېايه او غږ دې هم ورکرار کړه؛ نوموړې وايي چې په دې سره يې ډير سخت خجالت کړم وروسته تردې مې له ځان سره په کراره شعرونه ويلې؛ دې زړې ښځې راته وويل: { فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ }[5] نوموړې وايي چې بيامې پوښتنه ترې وکړه چې ميړې ورته دې کړي اوکنه؟ جواب يې راکړ { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ }[6] يعنى تاسې داسې شيانو پوښتنې مه کوئ چې که حقيقت درته څرګندشي غمجن به شئ.

عبدالله ابن المبارک چې اوښه مې روانه کړې وه تردې چې قافله راورسيده ورته وې ويل چې ميړونه دې په دې قافله کې شته؟ راته ويې ويل: { الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا } مطلب دا چې

---

[1] سورة البقرة/١٩٦.

[2] سورة النور/٣٠.

[3] سورة الزخرف/١٢.

[4] سورة لقمان/١٩.

[5] سورة المزمل/١٩.

[6] سورة المائده/١٠٠.

[7] سورة الكهف/٤٥

دی قافله کي زماځامن دي؛نوموړی وایي چي اوس مي جوګړه دی زړی ښځي نه مي ووښ چي نزامنونومونه دی راته ووایه چي زه غرورنه وکړم؛راته وبي ویل {وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا}[1] {وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا}[2]{يَا يَحْيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ}[3] نوموړی وايي چي زه پوی شوم چي نزامنونومونه يي خليل،موسی اويحيی دي؛په زوره مي اوازونه وکړل داری واړه ځوانان له خيموڅخه راووتل؛ دی زړی ښځي خپلوزامنو ته رويي ورکړی ورته وبي ویل {فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ}[4] مطلب دا چي داروپی واخله له بازارڅخه حلال خوراک وربقدی راووړه؛کله يي چي خوراک راوړ خپلوځامنوته يي وویل: {كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ}[5] یعني وخوری اوڅښی ځکه چي په دی نړیوورځوکي به وږي شوي پاست؛عبدالله ابن المبارک وايي چي ما ددی ښځي زامنوته قسم وکړچي زه ترهغوستاسونودی نه خورم چي تاسي ماته دی خپلي مورسم حال ونه وايي؛هغوی راته وویل:چي زمونږدی مورځلويښت کاله عادي خبري نه دي کړي هره خبره په قرانکریم بندی کوي؛عبدالله ابن المبارک وايي چي زه په ژړاشوم اوله ځان سره مي وويل چي {ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ}[6]

---

[1] سورة النساء/١٢٥.
[2] سورة النساء/١٦٤.
[3] سورة مريم/١١.
[4] سورة الكهف/١٩.
[5] سورة الحاقة/٢٣.
[6] سورة الجمعة/٤.

ترلږزندوروسته مي مورله خوب څخه راوېښه شوه ماته يې اشاره وکړه چې اوبه راکړه ماکوزه ورته ونيوله مورمې چې داوبوکوزه واخيستله نوزمادګوتي پوستکی هم ورسره وشليده،له کوټي څخه مي ويني رواني شوی مورمي راته وويل: زويه داولي؟ماتوله کيسه وته بيان کړه؛نومورې وايي چې مورمي دزړه له اخلاصه دعا راته وکړي څکه زه الله تعالی داسي لويومقامونوته رسولی يم؛بوکه څوک غواړي چې دلويومقاماتوخاوندوګرځي دموردعادي خانته حاصلې کړي.

ديوبل سړي پلارپه زندان کي يوځای ورسره بندي وه،پلاريي څه ناروغي درلوده په يخواوبويي اودس نشوکولای؛بيابه دي زوی خپل پلارته داوداسه لپاره اوبه ګرمولي څه وخت وروسته دزندان مشرامروکړ چي په زندان کي اورمه بلوی؛بيابه دي زوی خپل پلارته دقنديل په واسطه اوبه ګرمولي توله شپه به قنديل ته ولاړوه تردي چي اوبه به ګرمي شوي؛څه وخت وروسته دزندان مشرله دی څخه هم منعه وکړه قنديل يې ورڅخه پورته کړ؛بيابه ده خپل پلارته په دي ډول اوبه ګرمولي چي کله به ويده کيده ديخواوبوکوزه به يې راواخيستله په خپل زړه پورې به يې ونيوله څکه چي زړه هم يوڅه حرارت لري ترسهاره به په هغواوبوکي يوڅه ګرم والی بيداشو؛دخپل پلاردرضالپاره يې دومره زيات تکليف په حان منلی وه؛ په دي ډول دی الله تعالی دلوی مقام خاوندوګرځاوه؛نزهة المجالس کتاب کي داحکايت ليکل شويدی.

# دسبحي(تسپو)بيان.

تسپوته په عربي کي سبحه وايي،په دي اړه يوحديث په مسندالفردوس دامام دُيلمي کي له حضرت علی کرم الله وجهه څخه روايت شويدی چي نعم المذکرالمسبحة.يعني ښه وريادونکی هغه سبحه ده.علامه علی القاري ميرقاة کي ليکلي دي چي داحديث ضعيف دی.[1]خوعلامه ناصرالدين البانی چي په مسندالفردوس دامام ديلمي باندي کوم تعليق کړی هلته يې ليکلي چي داحديث موضوعي ده؛خوصحيح خبره داده چي داحديث ضعيف دی.

أياسبحه په اسلام کي جوازلري اوکه بدعت ده؟څيني غيرمقلدين وايي چي دتسپواستعمال ناجائزدی،خوداخبره صحيح نده؛ دتسپودجوازلپاره علماءله دي حديث څخه استدلال کوي چي حضرت سعدابن ابي وقاص وايي:چي زه يوه ورځ له رسول اللهﷺ سره ديوی ښځي کورته لاړم،له هغي سره

---

[1] - وجاءبسندضعيف عن علي رضي الله عنه مرفوعانعم المذكرالمسبحة ميرقاة المفاتيح ۳/۴۳.

شکي یاهم دخورماخستکي وي،په هغو باندي یي ذکرکاوه.[۱] له دي حدیث څخه علماءاستدلال کوي چي په شګوباندي ذکردرسول اللهﷺ په زمانه کي ثابت دی.

علامه ابن حجرلیکلي چي داپه صحیح احادیثوباندي ثابته ده چي نبي کریمﷺ په دی باندی صحابه وته امرونه کړي وه؛ نبي کریمﷺ اوصحابه وبه چي کوم ذکرونه کول هغه هم په شګوسره وه.علماولیکلي دي چي دشګواوتسپوڅه توپیردی؟ یواځي دومره توپیردی چي شګي منثوري دي اوتسپي منظومي دي.

په دی اره بل حدیث په کتاب الزهدد امام احمدبن حنبل کي راغلی دي،دحضرت ابی هریره په مناقبوکي چي له نوموړي سره یواوړدتاروه،چي زرداني غوټي پکي وي ترڅوبه یي چي داتاردولس خلي وانه ړاوه،نه به ویده کیده.په هغه زمانه کي خوداماشینونه نه وه کوموباندي چي اوس تسپي جوړیږي.علامه اسماعیل ابن کثیرپه البدایه والنهایه کي هم داحدیث راوړیدی.[۲] علامه ابن جوزي هم په صفة الصفوه کتاب کي داحدیث راوړي اوعلامه ابونعیم هم په حلیة الاولیاء کي داحدیث راوړیدي؛چي داهم دتسپودجوازلپاره لوی دلیل دی.

اوله فاطمي ابن حسین چي دادحضرت حسین لوراودرسول اللهﷺ کروسی ده له هغي سره هم یواوړدتاروه اوپه هغه تارکي غوټي وي په هغه به یي ذکرکاوه.[۳] داحدیث په طبقات الکبری دابن سعدکي روایت شویدی؛چي داهم دتسپودجوازلپاره لوی دلیل دی.

ډیروعلماودتسپوپه جوازباندی فتوی ورکړیده،یوله دي علماوڅخه علامه سیوطي دی نوموړي په دی اړوندمستقل کتاب لیکلي چي نوم یي دی المنحه في السبحه هلته یي دتسپوپه جوازباندی فتوی کړیده.بل علامه لکنوي دی نوموړي هم په دي اړه مستقل کتاب لیکلي چي نوم یي دی نزهة الفکرفي السبحة في الذکرهلته یي هم دتسپوپه جوازباندي فتوی کړیده؛علامه ابن تیمیه په مجمع الفتاوی کي لیکلي:که دریا په خاطرنه وي بلکل جوازلري،نوروډیرومحققینوهم دتسپوپه جوازفتوی ورکړی منهم:علامه عبدالرحمن مبارکپوري في التحفة الاحوذی،علامه اعظمي في عون المعبود،علامه

---

۱- عن عائشة بنت سعدبن ابي وقاص عن ابیها انه دخل مع رسول الله صلی الله علیه وسلم علی امرأة وبین یدیها نوی اوحصی تسبح به- سنن ابي داود۱/۲۱۰-.

۲- عن ابي هریره انه کان له خیط فیه الناعشرة الف عقدة یسبح به قبل ان ینام وفي روایة القاعقدة فلاینام حتی یسبح به وهواضح من الذي قبله-البدایه والنهایه ۸/۷۰۵-.

۳- عن فاطمه بنت حسین انها کانت تسبح بخیوط معقودفیها- طبقات الکبری۸/۳۴٦-.

شوکاني في النیل الاوطار، علامه سهارنپوري في بذل المجهود،[1] علامه محمدیوسف کاندهلوي في التعلیق الصبیح، علامه علي القاري في المرقاة، علامه ابن نجیم في البحر الرائق، علامه امیر الحاج في الحلبي و علامه شامي في ردالمحتار.[2] همدادنیامحققین علماءدي چې دوی تولودتسپودجوازقوی ورکړی‌اوپه تسپوباندي ذکرکول بلکل جوازلري.

## ذکرپه تسپوباندي غوره دی اوکه په لاس؟:

په دی اروند علماولیکلي دي چې په لاس باندي ذکرکول ډیرفضیلت لري،خوکه غلطي یکي راتله بیاپه تسپوباندي غوره دی؛ ځکه چې نبي کریمﷺ فرمایلي دي:فلیکن باالتسبیح والتهلیل وان یعقدن باالانامل فانهن مسؤلات مستنطقات.[3] یعني تاسي په خپلوګوتوباندي ذکرکوی،ځکه چې دقیامت په ورځ به له ګوتوڅخه پوښتنه کیږي.

نودکرپه لاس باندي غوره دی،اوکه څوک يې په لاس باندي کوي بیابه یې په ښي لاس باندی کوي په دی اره هم په ابوداودکي یوحدیث روایت شویدی؛[4] نودذکرپه ګوتوباندي کول غوره دي.

## ایادلرګي تسپي په نوروتسپوباندي فضیلت لری؟

خلکوکي مشهوره ده چې دلرګي تسپي ډیرثواب لري،په نسبت سره دتیږي یاهم مثالي تسپوته خوداخبره بلکل غلطه ده، دعواموا صطلاح ده،کتابونوکي په دي اړوندڅه نشته.

په تسپوکي کی دوریښموتاراچول هم جوازلري؛کذافي نزهة الفکرللعلامه لکنوي.اوتسپي ډیری نوری فاندي هم لري، یووخت کي یوعالم له یوی قافلي سره په سفرروان وه،په لاره کي په دی قافله باندي غله راغلل دقافلي تول خلک یې تلا شي کړل چاسره به چې روپۍ وی هغه به یې ځني اخیستي؛دی

---

1-وهذا اصل صحیح لتجویزالسبحة بتقریره صلی الله علیه وسلم فانه في معناها اذلافرق بین المنظومة والمنثورة فیمایعدبه بذل المجهود۲/۳۵۵.طبعه مکتبة الشیخ بهادراباد کراتشي.

2-لابأس باتخاذالمسبحة:بکسرالمیم آلة التسبیح،والذي في البحروالحزائن بدون میم.قال في المصباح السبحة خرزات منظومة....ودلیل الجوازمارواه ابوداودوالترمذي والنسائي والحاکم وقال:صحیح الاسناد عن سعد بن ابي وقاص انه دخل مع رسول الله علی امرأةوبین یدیها نوی احصاة تسبح به ردالمحتار۲/۵۰۸.

3-عن یسیرة اخبرتها ان النبي صلی الله علیه وسلم امرهن ان یراعین بالتکبیروالتقدیس والتهلیل وان یعقدن بالانامل فانهن مسؤلات مستنطقات سنن ابي داود۱/۲۱۰.

4-عن ابن عمر قال:رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم یعقدالتسبیح قال ابن قدامة بیمینه سنن ابي داود۱/۲۱۰.

عالم سره تسبي وی هغه يي په خپله پکړی کي ايسي وی غلوچي کله دده له پکړی دده له سرڅخه يو ره کړه په دی وخت کي دده له پکړی څخه تسپي ولويدی،غلوپه خپل مينځ کي يوه اوبل ته وويل چي پری يي پردی دسبحي والادی،له دی سره يي دی هم پربينوداوروپي يي هم ورڅخه وانه حيستلي

# دابومسلم خولاني نادرحکايت.

حضرت ابومسلم حولاني له مخضرمينوڅخه دی،مخضرم هغه چاته ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي موجودوي ،په هغه يي ايمان راوری ويخوليدلی يي نه وي؛ابومسلم خولاني يوه ښيه ناسب وه په تسپوباندي يي ذکرکاوه؛ تسبي يي په خپل مروندکي اچولي وی په دی وخت کي تسپوحيته ذکرپيل کرکله به چي يوه تسپه کته راغورخيدله دادول غږبه ورڅخه پورته کيده چي:يامنبت النبات يادائم الثبات،ابومسلم خپلی مورته ورغږکړيا ام مسلم تعال فاالنظراعجب العجاله يعني ای موری راشه ډيره نادره وګوره؛موريي راغله هغه هم ورته ولاړه وه،کله به چي يوه تسپه راکوزيده بيابه دادول غږورڅخه پورته کيده يامنبت النبات يادائم الثبات يعني ای شين کونکی دشين کونکو.ای هميشه ثبات راوستونکيه؛ابومسلم وايي چي کله مي مورکيناستله تسپي هم بندی شوی.تاريخ ابن عساکرکي داحکايت ليکل شويدی.

# دحج بيان.

زمونږپه هيوادکي حج اکبرهغه حج ته ويل کيږي چي عرفات يي دجمعي په ورځ وي؛په دی اره علامه عبدالرحمن مبارکپوري په تحفة الاحوذي کی ليکلي دي چي حج اکبرپه اسلام کي نشته؛نوموري ليکلي چي په دې اړه يواځي يوحديث روايت شويدی،هغه داچي نبي کريمﷺ فرمايلي دي:کوم حج چي عرفات يي دجمعي په ورځ باندي وي،ددې حج ثواب په نوروحجونوباندی اوياځلی زيات دی.[1]علامه مبارکپوري ليکلي چي دحج اکبرنوم ورته کيښودل په اسلام جوازنلري؛ علامه بنوري هم په معارف السنن کي دغه خبره ليکلي ده.[2]

---

[1] - وعن طلحة بن عبيدالله بن كريز ارسله افضل الايام يوم العرفة اذا وافق يوم الجمعة فهوافضل من سبعين حجة من غيريوم الجمعة-رواه رزين كذافي جمع الفوائدمن جامع الاصول ومجمع الزوائد٢/٣٤٣-. وارشاد الساري/٢٦. مخرج حماسي.

[2] وبالجملة ليس الحج الاكبرفي تعبيرالقران والحديث ماشتهرعلى السنة العامة من ان حج الاكبرماكان فيه الوقوف بعرفة يوم الجمعه معارف السنن٦/٢١٨.

خوعلامه علي القاري په دی اړه مستقل کتاب لیکلي چې نوم یې دی الحظ الاوفر في حج الاکبر هلته یې په دې اړونددیرتحقیق کړیدی اوارشادالساري علی مناسک علي القاري چې دادنوموړي په کتاب شرحه ده،هلته یې هم لیکلي دي چې هغه حج چې عرفات یې دجمعې له ورځې سره برابرشي دهغه ثواب په نسبت سره نوروحجونوته اویا څلي زیات دی؛سره له دی چې داحدیث ضعیف دی خوپه فضائلوداعمالوکي ضعیف حدیثونه هم داعتبارووړوي؛داحدیث په مجمع الزوائدکي هم علامه هیثمي راوړی اوپه جامع الوصول کتاب کي هم روایت شویدی.

علامه علي قاري لیکلي دي چې په احادیثوکي دی دول حج ته حج اکبرندي ویل شوي،نه خورسول اللهﷺ دې حج ته حج اکبرویلي،نه کوم صحابي اونه هم کوم تابعي؛خوعرف په دی باندی ده چې ددی حج ثواب په نسبت سره نوروحجونوته اویاځلي زیات دی نوځکه چې حج اکبرورته وویل شي؛قال ابن مسعودومارأه المسلمون حسنافهوعندالله حسنا.[1]

# په حراموروپیوحج:

ایاپه حراموروپیوباندي حج اداکیږي؟هو:په حراموروپیوهم حج اداکیږی خوثواب یې نشته

# مکه مکرمه غوره ده که مدینه منوره؟:

په دې اړه دجمهوروعلماورایه داده چې مکه مکرمه غوره ده په نسبت سره مدینې منورې ته،خوامام مالک وایي چې مدینه منوره غوره ده.یوخوهغه ځاوره ده چې دنبي کریمﷺ له مبارک بدن سره نښتي ده هغه بیاله عرش معلی څخه هم غوره ده؛ دلانبه تحقیق لپاره وفاءالوفا دعلامه سمهودي ته مراجعه وکړی.[2]

دمکي مکرمي دری مشهورتار یخونه دي:تاریخ المکه دعلامه ابوالولید الارزوقي،تاریخ المکه دعلامه فاسي اوتاریخ المکه دعلامه فاکهي؛ادوی دری واړه دیرمتقدمین علماءتیرشویدی په تاریخ المکه دعلامه فاکهي کي یوحدیث روایت شویدی چې: نهی رسول اللهﷺ ان یتکلم في الطواف بااللغة

---

[1] سبق تخریجه.

۲- وقال الفاکهي قالو:لاخلاف ان البقعة التي ضمت الاعضاءالشریفة افضل بقاع الارض على الاطلاق حتى موضع الکعبة ثم قال واقول انا افضل بقاع السموات ایضاً-وفاءالوفاء۱/۳۱-.

الفارسیة.[1] نوموړي داحدیث په سندباندي ذکرکړیدی چي رسول اللهﷺ منعه کړیده په فارسي ژبه له خبروکولوڅخه.والله اعلم.

اوپه همدي تاریخ المکه کي لیکل شویدی چي په لومړی خل باندي ممبربیت الله ته دحضرت معاویه په خلافت کي راوړل شوتردي وراندي په بیت الله کي ممبرنه وه،نبي کریمﷺ به په بیت الله کي به ولاړه خطبه ویلی.

## دنبي کریمﷺپه زمانه کي له بیت الله څخه گرددریدل نه وه:

لکه څرنګه چي اوس خلک دلمانځه پرمهال له بیت الله څخه گرددریږي،دنبي کریمﷺ په زمانه کي داډول دریدل نه وه؛امام به دبیت الله ددروازي لوري ته ولاړوه،خلک به له وروسته صف صف پسي ولاړوه؛په لومړي خل باندي دصفونوګرد دریدل خالدبن عبدالله القسري پیل کړل؛کذافي تاریخ المکه للعلامه فاکهي.[2]

## مقام ابراهیم:

په دې مقام کي دحضرت ابراهیمؑ دپښوچاپ موجوددی،کله چي حضرت ابراهیمؑ کعبه جوړه کړه په دې وخت الله تعالی ورته وفرمایل: { وَأَذِّن فِي ٱلنَّاسِ بِٱلْحَجِّ }[3] حضرت ابراهیمؑ په دې تیږه باندي ودریده،داتیږه ډیره زیاته له ځمکي څخه پورته شوه؛کله چي ابراهیمؑ اعلان وکړتولي نړۍ ته دااعلان ورسیده؛په لومړي خل باندي دیمن خلکولبیک ورته وویلی.

داچي داچاپ په دې تیږه کي له کوم وخت راپاتي ده؟په دې اړه دعلماومختلف اقوال دي ځیني علماءوایي چي کله ابراهیمؑ په دې تیږه باندي ودریده اوداتیږه پورته شوه بیاابراهیمؑ اعلان وکړله همدي وخت څخه په دې تیږه کي دابراهیمؑ دپښوچاپ پاتي شو.

---

1- عن مکحول قال:نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم انتکلم بالفارسیة في مسجدالحرام-اخبارمکة للفاکهي۱/۱۹۶-. رقم الحدیث ۳۲۰.

2- ذکرادارة الصف،واول من فعله،واول من احدث التکبیرین التراویح حول البیت في شهررمضان،وتفسیرذالک ویقال:ان اول من ادارالصفوف حول الکعبة خالدبن عبدالله القسري-اخبارمکة للفاکهي۲/۱۰۱-.

3- سورة الحج/۲۶.

خیني نوراقوال وايي چې کله ابراهیم ﷺ کعبه جوړوله،داتیږه به په حپله.ورسره یوړته کیدله اوکوزیدله؛له هغه وخت څخه داچاپ په دی تیږه کي پاتي شویدی.خوپه تاریخ مکه دعلامه فاکهي کي لیکلي دي چې کله ابراهیم ﷺ له شاهم څخه مکي مکرمي ته داسماعیل ﷺ اوهاجري بي بي کورته راغی؛نودده سرمبارک خیرن شوی وه،داسماعیل ﷺ ښځي ته یي وویل:چې هغه دجرهم له قبیلې څخه وه چې زماسرراباندي ومینځه؛هغي داتیږه راواخیستله دأس یوه طرف ته یي کینبوده ابراهیم ﷺ حپله پښه په دی تیږه باندي کینبوده،خپل سریي راکوزکرداسماعیل ﷺ بي بي دهغه دسریوطرف ومینځه،بیایي داتیږه چې اوس مقام ابراهیم دی،راواخیستله دأس بل طرف ته یي کښودله؛ابراهیم ﷺ خپله بله پښه په دی تیږه باندي کینبودله اوداسماعیل ﷺ بي بي یي دسربل طرف ومینځه،نودلته دابراهیم ﷺقدمونه په دی تیږه کي نقش پاتي شول.والله اعلم

## دزمزم اوبه:

کله چې یوڅوک بیت الله ته دحج لپاره لاړشي،نودزمزم اوبه له خان سره راوړل سنت دي؛نبي کریم ﷺ به چې کله بیت الله ته لاړ،دبیرته راتلوپرمهال به یي له خان سره دزمزم اوبه راوړلي.

حضرت سهیل بن عمروو وايي:چې زه بیت الله ته دحج لپاره تلم،رسول الله ﷺ راته.وفرمایل چې له مکي مکرمي څخه به ماته دزمزم اوبه درسره راوړې؛سهیل وایي چې مابیاله خان سره یوه یاهم دوه راویه روایتونوکي اختلاف دی اوبه له خان سره راوړلي.[1] دیادوني وړده چې راویه هغي اوښې ته ویل کیږي چې اوبه ورباندي باروي.

اوام المؤمنین حضرت عائشې به دزمزم اوبه په قوایرو(بوتلونو)کي له خان سره وړلي؛چاپوښتنه تری وکړه چې ته دااوبه دڅه لپاره وړې؟هغي خواب ورکړچې خکه یي له خان سره وړم چې نبي کریم ﷺ به هم له خان سره دزمزم اوبه وړلي؛ بیابه یي په مریضانوباندي څښلي.[2] نودزمزم اوبه له خان سره راوړل سنت دي،دادول عمل په احادیثوکي ثابت دی.

---

[1] -حدثني ابن ابي حسين ان النبي صلى الله عليه وسلم كان كتب الى سهيل بن عمرو ان جاءك كتابي ليلا ،فلاتصبحن ،اونهارفلاتمسين،حتى تبعث الى من ماءزمزم....ثم ملأهماماء،فبعث بها على بعير.اخبارمكه للفاكهي ۲/۳۲-. رقم الحديث ۱۰۸۸.

۲- عن عائشة انهاكانت تحمل ماءزمزم في القواريروتذكران رسول الله فعل ذالك زادفيه غيره عن ابي كريب وكان يصب على المرضى ويسقيهم.شعب الايمان-۶/۳۱. رقم الحديث ۳۸۳۴.

# دمديني منورې لنډتاريخ:

مدينه منوره تقريبا نوي نومونه لري،علامه سمهودي په خپلودواړوكتابونو وفاءالوفاءاوخلاصة الوفاء كې دمديني منورې نومونه دكركړيدى،چې يوله هغونومونوڅخه يثرب ده خواوس په څوک يثرب نه ورته وايي خكه چې په دې اړه دمنعي احاديث راغلي دي.[1] خوبياپه دې کې دعلماواختلاف دی چې دانهيه تحريمي ده كه تنزيهي؟ممكن كراهيت به تنزيهي وي خكه چې وروسته له منعې څخه هم په ځينواحاديثوكې يثرب ورته ويل شويدي اوپه قرانكريم کې هم يثرب لفظ موجوددي

## آيامدينه منوره حرم ده؟

آيامدينه منوره هم حرم ده اوكنه؟ونې پريكول ياهم ښكارپكې كول جوازلري اوكنه؟پرته له احنافوڅخه حنابله و،شوافعواوموالكو رايه داده چې مدينه منوره هم حرم ده،لكه څرنګه چې بيت الله کې ښكاركول ياونې پريكول ناروادي همدارنګه دمديني منورې دحرم هم دغه حکم ده.ذكرشوي درې واړه مذاهب وايي چې كوم حكم په حرم دمكې مكرمې پورې خاص دى هغه حكم دمديني منورى دحرم هم ده.

خواحناف علماءوايي چې مدينه منوره حرم نده،ښكارپكې كول ياهم ونې پريكول يې جوازلري. دلابنه تحقيق لپاره وفاءالوفا ته مراجعه وكړى[2]هلته يې داحنافودمذهب يودليل داسې راوړيدى چې كله نبي كريمﷺ مسجدنبوي جوړاوه هلته ونې وې نبي كريم هغه قطعه كړې اوجومات يې وربانډې جوړكړ[3] خودادليل دمخالفينوله لوري څخه ردشويدى؛علماوله دې حديث څخه يوبل استدلال هم كړيدى چې دجومات دجوړولولپاره دونوقطع كول جوازلري؛كذافي عون المعبود،وبذل المجهود وتعليق الصبيح.

---

[1] -وروى احمدوابويعلى حديثا:من سمى المدينة يثرب فليستغفرالله،وهي طابة. وفي رواية فليستغفرالله ثلاثا واهناقال عيسى ابن دينارمن سمي المدينة يثرب كتبت عليه خطيئته وكره بعض العلماءتسمية بذالك-وفاءالوفاء١/١٢-.

[2] - وقداختلف العلماءفي تحريم المدينه وعدم تحريمهافقال محمدبن ابي ذئب والزهري والشافعي ومالک واحمدواسحاق المدينه لهاحرم فلايجوزقطع شجرهاولاصيدها....وقال الثوري وعبدالله بن المبارک وابوحنيفه وابويوسف ومحمد ليس للمدينه حرم كماكان لمكة فلايمنع احد من اخذصيدهاوقطع شجرها-وفاءالوفاء٢/٣٠٢-.

[3] -عن انس قدم النبي صلى الله عليه سلم المدينه وامربناءالمسجد فقال:يابني نجار ثامنوني قالوالانطلب ثمنه الا الى الله فامربقبورالمشركين فنبشت ثم بالخرب فسويت وبالنخل فقطع- صحيح البخاري١/٢٥١-.

## دمديني خاوره شفاءده:

داحاديثوپه کتابونوکې راځي چې دمديني منورې خاوره شفاده،ددې بیان په دوار بحوکې شکرسوتدی چې کله نبي کریمﷺ دتبوک له غزا څخه راستون شو،هغه مخلفین چې له نبي کریمﷺ سره نه ؤ په جهادکې برخه یې نه وه اخیستې هغوی مخې ته ورغلل په دې وخت کې ګردجوړشو،ځینوصحابه وځان ته وتړل،خپلې سپورمې یې پټې کړې،نبي کریمﷺ خپل لثام لرې کړویې فرمایل چې ولې موخپل پوزې وتړل،زه خپل پوزبندلرې کوم ځکه چې دادمديني خاوره ده په دې کې شفاده[1]

اول داچې یووخت کې نبي کریمﷺ دبني حارث قبیلې ته ورغی،هغوی دتبوناروغي درلوده نبي کریمﷺ ورته وفرمایل چې لردمدینې منورې خاوره په پیاله کې واچوی بسم الله ټح ...ردی ووایې،بیاهغه وڅښي نوالله تعالی به شفادرکړي.[2]

حتی چې علماوداسې هم لیکلي دي چې دسیدالشهداءحضرت حمزه له قبرڅخه به خلکودشفالپاره خاوره وړله؛علامه سمهودي لیکلي چې دسلفوله زماني څخه ان دخلفوترزماني پورې دحضرت حمزه له قبرڅخه خاوره وړل کیږي؛نوموړي لیکلي چې ماهم له دې ځای څخه دخپل ناروغ بچي لپاره خاوره راوړله بیامې وروڅښله په دې سره الله تعالی شفاورکړه.[3]

نوموړي په خپلودواړوکتابونو:وفاءالوفاءاوخلاصة الوفاءکې لیکلي چې کله الله تعالی حضرت ادم ...جوړاوه؛نودنبي کریمﷺ خاوره له مديني منورې څخه اخیستل شوې وه،دهغې خاورې له پورې خاورې څخه توپیروه،هغه خاوره له همدغه ځای څخه اخیستل شوې وه کوم ځای کې چې اوس نبي کریمﷺ دفن دی.[4]دحضرت ابوبکراوحضرت عمرخاوره هم له همدې ځای څخه اخیستل شوې وه

---

[1] -عن سعد رضی الله عنهقال:لمارجع رسول الله صلی الله علیه وسلم من تبوک تلقاه رجال من المخلفين من المؤمنين فاثاروغبارا،فخمرفغطی بعض من كان مع رسول الله انفه فازال رسول الله اللثام عن وجهه وقال:والذی نفسي بيده ان في غبارهاشفاء من كل داء-وفاءالوفاء ۱/۵۹-.

[2] -وروی ابن زبالة ويحی بن الحسين وابن نجاركلاهمامن طريقه ان النبی صلی الله عليه سلم الی بلحارث فاذاهم روبي فقال:مالكم يابني الحارث روبي؟قالواصابتنايارسول الله هذه الحمی قال هل انتم عن صعيب؟قالوايارسول الله مانصنع به؟قال تأخذون من ترابه فتجعلونه في ماءثم يتفل عليه احدكم ويقول بسم الله،تراب ارضنا بريق بعضنا،شفاءلمريضنا باذن ربنافغعلوفتركتهم الحمی-وفاءالوفاء ۱/۶۰-.

[3] -ثم رأيت الزركشي قدقال:ينبغي ان يستثنی من منع نقل التراب الحرم تربة حمزه لاطباق السلف والخلف علی نقلهاللتداوی من الصداع قلت:عندالوقوف عليه ابن هومن تراب لماقدمناه فيه....ان جماعة من العلماءذكروانهم جربواتراب صعيب للحمی فوجدوه صحيحا قال: وانا بنفسي سقيته غلاما لي مريضامن نحوسنة تواظبه الحمی فانقطعت عنه من يومه-وفاءالوفاء ۱/۶۰-.

[4] - لماارادالله ان يخلق محمدصلی الله عليه وسلم امرجبرئيل فاتاه بالقبضة البيضاء التي هي موضع قبره صلی الله عليه وسلم-وفاءالوفاء ۱/۳۴ .

حکه اوس له نبي کریمﷺ سره یوځای دفن دي.په یوه حدیث شریف کي راحي چي کوم ځای کي څوک دفن کیږي له هغه ځای څخه ملکودهغه خاوره اخیستي وي.[1]حضرت عیسی؈ هم له همدی خاوری څخه جوړ شویدی،کومه چي دنبي کریمﷺ دحضرت ابوبکراوحضرت عمرخاوره ده؛حکه به دی هم دنبي کریمﷺ سره په مبارکه روضه کي دفن کیږی.

اوله تاریخي پلوه هم دمدیني منوري دیرلرغوني ښاردی،چي یوله دی تاریخي ځایونوڅخه یي دنبي کریمﷺ شنه گمده ده، چي دایه شپږسوه اوڅو..هجري قمري کال کي دمنصورابن قلان بادشاه له لوري رغول شویده؛چي اوس یي تقریباڅه دپاسه اته سوه کلونه تیرشویدي.

اوبل ددي ښارله تاریخي اثاروڅخه دنبي کریمﷺ منبروه،چي تردیره وخته په مدینه منوره کي موجودوه؛یووخت کي حضرت معاویه له شام څخه مدیني منوری ته تللی وه؛نوموړي اراده کړی وه چي دنبي کریمﷺ منبرله حان سره شام ته یوسي کله یي چي منبرله خپل ځای څخه بی ځایه کاوه په دی وخت کي په ټوله مدینه منوره باندی لرزه راغله اولمرتورشو؛له حضرت معاویه څخه چاپوښتنه وکړه چي په منبرباندي څه کوی؟هغه خپله خبره بدله کړه ویې ویل:دنبي کریمﷺ منبرمی څکه وکوت چي وینانه وی خوړلی.[2] بیانوموړي په لومړی ځل باندي دنبي کریمﷺ منبرته پوښ ورکړ؛مدخل دامیرالحاج کي لیکلي چي منبرته پوښ ورکول بدعت نه بلکه وحضرت معاویه سنت ده.

## حکایت:

په یوه زمانه کي دمسلمانانویوعادل بادشاه وه دمحمودزنګي په نوم باندي،یووخت نوموړی مدیني منوري ته لارهلته یي پرله پسي دری شپي نبي کریمﷺ په خوب کي لیده،په خوب کي به نبي کریمﷺ ورته ویل:چي دادوه اشقرین(بادنجاني رنګه)سري ماته تکلیف رسوي،بالاخره محمودزنګي دمدیني منوري والي ته ورغي هغه ته یي دخپل خوب بیان وکړ اودایي هم ورته وویل:چي نبي کریمﷺ ماته په خوب کي وفرمایل:چي داخوب ربښتونی دی،دروغ یي مه ګڼه؛نوموړي دمدیني منوري والي ته وویل:چي خامخایوڅه کول پکاردي بالاخره یي مشوره په دی باندی راغله چي یوڅه صدقه به برابره کړوپه دي سره به دمدیني منوري ټول خلک راغوندکړوبیایي همداسي وکړل دمدیني

---

[1] عن ابن عمران جیشادفن في المدینة قال:رسول الله صلی الله علیه وسلم دفن باالطینة التي خلق منها-(شرح الصدور/۱۰۵)

[2] قالوالماقدم معاویه عام حج لحرک المنبرواراد ان یخرجه الی الشام فکسفت الشمس یومئذحتی بدت النجوم فإعتذرمعاویه الی الناس وقال:اردت انظرالی ماتحته وخشیت علیه من الارضة قال بعضهم وکساه یومئذقبطیة اولینة-وفاءالوفاء ۲/۱۰-.

منوري تول خلک يې راجمعه کړل؛خودوه تنه چې هغوی داندلس هیوادوکړي وه هغوی راتعلل،دوی په مدینه منوره کې دنبي کريمﷺ مزارته څیرمه دقبلي لوری ته يوکورپه کرايه باندي نیولی وه

بادشاه پوښتنه وکړه چې دمديني منوري تول اوسيدونکي حاضرشويدي؟خلکوحواب ورکړچې تول خلک راغلي خودوه نفره ندي حاضرشوي؛بادشاه حکم وکړ چې هغوی دې هم راشي کله چې هغوی ته دبادشاه داعيان ورغلل هغوی ورته وويل:چې مونږروپیوته ارتیانلرو،مونږله خان سره دومره تونبه راوړیده چې بس موشي؛محمودزنګي حکم وکړچې داخلک خامخا راولی کیدلای شي چې په دوی کې څه فسادوي کله يې چې دوی راوستل محمودزنګي چې ورته وکتل هماغه دوه کسان وه کوم چې ده ته په خوب کې ورښودل شوي وه؛دوی دواړه يې له خان سره بوتلل ترتحقیق وروسته داثابته شوه چې دوی نصرانیانوددي لپاره رالیږلي وه چې دنبي کريمﷺ قبرته سوری وکړي اودهغه جسداطهرمبارک له خان سره مصرته یوسي؛ دوی له دې کورڅخه کوم چې دوي په کرايه باندی نیولی وه دنبي کريمﷺ دقبرپه لوردځمکې لاندې تونل پیل کړی وه،کومه خاوره چې دوی له تونل څخه ویستله هغه يې په يوه کاریزکې اچوله ددې لپاره چې ددوی رازافشانشي؛بیادادواړه اندلوسي وکړي دمرګ په سزا ورسول شول.

تردې وروسته حکم وشو چې دنبي کريمﷺ له قبرڅخه دې دمیسودیوال چاپیرکړای شي؛اوس في الحال هم درسول اللهﷺ دقبردریولوروته میس اوسرف پراته دي يواځې پورتنی طرف يې په خپل حال پاتې ده؛تحقيق النصره الى معالم دارالهجره کتاب کې داحکایت لیکل شوی دی؛دمديني منوری دهرارخیزتحقيق لپاره وفاءالوفاءدعلامه سمهودي ته مراجعه وکړی،وايضأفلترجعواالى التحفة الطيفه في تاريخ مدينة الشريفه.

## دتول عالم مرکزلمردی:

په دنیاکي هغه مخکنی حکمت چې حکمت بتل موسي وه، هغوی به ویل چې دتول عالم مرکزحمکه ده اودانوري سياري له ځمکي څخه تاویږي؛خوهغه حکمت اوس مردود دی کوم به چې مونږپه میبذي اوصدراکي ويلي.

اوسنی حکمت وايي چې دټول عالم دنظام مرکزلمردی،چې همداصحيح خبره ده که څوک اعتراض وکړي چې الله تعالی په قرانکريم کې فرمايلي دي{ وَٱلشَّمۡسُ تَجۡرِي لِمُسۡتَقَرّٖ لَّهَا }[۱]يابل حديث کې راځي چې لمرهره ورځ ترعرش لاندی الله تعالی ته سجده کوي[۲] اوحکماءوايي چې لمرپه خپل ځای باندی ولاړدی؟ددی اعتراض لپاره خوندورځواب صاحب دروح المعاني اوعلامه شبيراحمدفتح الملهم کی کړی هغه داچی په علم دتصوف کي يوبحث دی تطوردولي ورته وايي،يعنی يوبزرګ اوولی کولای شی چې په يوه وخت کي ځان په څوصورتونومتطورکړي؛دبيلګی په توګه:په دنياکې يوعالم تيرشوی دقضيب البان په نوم باندې يوه ورځ دمازديګردلمانځه وخت وه خلک ټول جمعي ته لاړل نوموړی په خپل ځای باندې ناست وه؛چاپوښتنه ورځخه وکړه چې ته خولوی بزرګ يي لمونځ دی ولې ونکړ؟ده ته په دی خبره باندې غوسه ورغله ځان يي متطورکړدکوټې په يوه کونج کي هم دی ولاړوه،په بل کونج کې هم دی ولاړوه،دريم اوڅلورم کونج کې هم دی ولاړوه؛خلکوته يې ووېل:ووايي:چې کوم يوه لمونځ ندی کړی؟خلک حيران شول چې داڅه عجيب سړی ده؛قضيب البان ورته ووېل چې زه په يوه صورت کې مکې مکرمي ته لاړم هلته مي دمازديګرجمعه وکړه.

علامه سيوطي په دې اړوندمستقل کتاب جوړکړي چې نومېي دی القول المنجلي في تطورالولي هلته يې ليکلي دي چې يووخت کي يوبزرګ وه ځان يي متطورکاوه،يوهسړي به ويل چې دفلانکي بيګا له ماسره شپه وه،بل به ويل چې له ماسره شپه وکړه خلکوبه دده په سرقسمونه کول ويل به يي که نن يي له ماسره شپه نه وی تيره کړي نوپه مادي ښځه طلاقه وی دوی علامه سيوطي ته راغلل هغه ته يې ووېل چې دچاښځه طلاقيږي؟علامه سيوطي ورته ووېل:دهيڅ چاهم نه طلاقيږي ځکه داتطوردولي ده.

بل داچې کله رسول اللهﷺ معراج ته وخوت هلته يې له ډيروانبياؤسره ملاقاتونه وشول،اوحال داچې هغوی په قبرونوکي وه؛اوبل داچې دعلم تصوف علماءوايي چې بيت الله په کال کي دوه ځلي ديوه ښه ولي الله زيارت ته ورځي؛بيايې دي باندې علماواعتراضونه کړي چې دازموږداحنافودمذهب په فتاوای ولوالوجيه کي هم شته چې کله بيت الله دولي الله ملاقات ته ورشي نوداخلک لمونځونه کوم لوري ته کوي؟اوداخلک چې شپه اوورځ په طواف بوخت وی هيڅ چاهم داسي ندي ويلي چې بيت الله په خپل

---

[۱]- سورة يس/۳۸.

[۲]-عن ابي ذرقال:قال النبي صلى الله عليه وسلم حين غربت الشمس اتدري اين تذهب قلت:الله ورسوله اعلم قال:فانهاتذهب حتى تسجدتحت العرش فستأذن فيؤذن لها-صحيح البخاری۴۵۴/۱-.

خای نه وه؟بیاعلماوددی لپاره داسی حواب کړی چی بیت الله په خوصورتونوباندی حار متطورکوي په یوصورت په خپل خای باندی پاتی وي په بل صورت دولي الله زیارت ته حي.

اوعلامه ابن العربي وايي:زه چي کله بیت الله ته لاړم هلته بیت الله له ما څخه داسی علوم زده کړل چي مخکی دبیت الله نه وه زده؛بعضی علماءوايي چی علامه ابن العربی لیونی دی؛حو هلته سري نه معلومات کیږي چی کله دهغه فتوحات مکیه مطالعه کړي،نوموري لیکلي دي چی یوه ورځ می یوخط ولیکه حجراسودته می وویل:خوله دی خلاصه کړه حجراسودخپله خوله خلاصه کړه ماهغه کاغذیه خوله کي ورکړ،ورته ومي ویل چي داکاغذبه دقیامت په ورځ شاهدي وايي چي ره حج ته راغلی وم؛دیادونی وړده چي حجراسوددخلکوله خلکوڅخه فلمونه اخلي،ځوک چی حج ته تللي وي په هغوباندي دقیامت په ورځ شاهدي وايي؛علامه ابن العربي وايي چي زه په بل کال بیامکی مکرمی ته لاړم حجراسودچي کله زه ولیدم خوله یي راته خلاصه کړه چي ستاکاغذمی ساتلی ي؛نودبیت الله په اره هم علماداخواب کوي چي په اصلي صورت باندی په خپل خای پاتي وي په بل سورت دولي الله ملاقات ته ورحي؛لمرهم په اصلي صورت په خپل خاي پاتي وي په بل صورت حی الله تعالی ته سجده کوي؛کذافي التفسیرروح المعاني.

## دشپواوورځوتحقیق:

په کال کي دوه داسي وختونه وي چي شپه اوورځ پکي مساوي وي،دواړه دولس،دولس ساعته وي؛هغه یودمیزان دمیاشتی لومړي ورځ ده اوبل دحمل دمیاشتی لومړی ورځ ده؛دالله تعالی دیرعجیب نظام دی قرانکریم کي الله تعالی فرمایلي دي{ وَءَايَةٌ لَّهُمُ ٱلَّيۡلُ نَسۡلَخُ مِنۡهُ ٱلنَّهَارَ }[1]

ژباړه:دالله تعالی دقدرت یولوی دلیل دادی چي له شپي څخه ورځ راباسي.دمیزان دمیاشتی په لومړی ورځ باندي شپه اوورځ یودول وي،بیاهمدادمیزان په میاشت کي شپي لوییږي اوورحي کوچنی کیږي؛دمیزان له لومړی نیتي څخه تردیرشمی نیټي پورې هره شپه نصف ددرجی لوییږي اوشپه نصف ددرجي کوچنی کیږي؛لکه څرنګه چي مخکي ذکرشویدي چي یوه درجه څلور دقیقي ده؛لنده داچي دمیزان په میاشت کي پنځلس درجي شپه لوییږي اوورځ کوچنی کیږي چي داپنځلس درجي دیرش دقیقي کیږي.

---

۱- سورة یس /۳۶.

تردی وروسته دعقرب برج پیل کیږي،چي په دي میاشت کي شپه ثلث ددرجي لوبیږي اوورځ ثلث ددرجي کوچنی کیږي بیاتردی وروسته دقوس برج پیل کیږي،په دي میاشت کي شپه سدس ددرجي لوبیږي اوورځ کوچنی کیږي دیادوني وړده چي په شپوکي ترتولویه شپه دقوس دمیاشتي روستني شپه ده

تردی وروسته خبره بیرته برعکس کیږي،دجدي دمیاشتي له لومړی نیټي څخه شپه بیرته سدس ددرجي کوچنی کیږي اوورځ سدس ددرجي لوبیږي؛بیاددلوي په میاشت کي شپه ثلث ددرجي کوچنی کیږي اوورځ لوبیږي؛بیادحوت له لومړی نیټي څخه پیل شپه نصف ددرجي کوچنی کیږي اوورځ لوبیږي؛بیاچي کله دحمل دمیاشتي لومړی نیټه شي،نوشپه اوورځ سره مساوي کیږي،لکه څرنګه چي دحوت په میاشت کي شپه نصف ددرجي کوچنی کیږی اوورځ لوبیږي همداسي دحمل په میاشت کي هم دغه دول وي؛بیادثوردمیاشتي له لومړی نیټي څخه شپه ثلث ددرجي کوچنی کیږی اوورځ لوبیږي؛بیادجوزا په میاشت کي شپه سدس ددرجي کوچني کیږی اوورځ لوبیږي.

بیادسرطان په میاشت کي خبره بیرته برعکس ګرځي،ورځ سدس ددرجي کمیږي اوشپه سدس ددرجي لوبیږي؛بیادٲسدپه میاشت کي ورځ ثلث ددرجي کوچنی کیږي اوشپه لوبیږي؛بیادسنبلی په میاشت کي ورځ نصف ددرجي کوچنی کیږي اوشپه لوبیږي؛دالله تعالی څومره عجیب نظام دی چي دحضرت آدم له زماني څخه نیولی تردي دمه پوري هیڅ کومي شپي یاورځي کي تغیرندی راغلی.

## دباد پیداکیدلو علت:

اصل کي دبادونودپیداکیدلو علت داوي چي کله په ځمکه کي لوندوالی اورطوبت موجودوي،نوهلته هواهم رطوبتي وي؛کله چي په دي هواباندي لمرراشي نوهغه وچه کړي؛بیاداوچه هواپورته خیږي له پاسه نوره هوادځمکی لورته راکوزیږي؛اکثره سیموکي باددماسپښین په وخت کي دیروي علت همداوي چي کله ځمکه ګرمه شي هغه هواچي ځمکی ته نږدی وي هغه پورته طرف ته زورکوي اوله پاسه لاندی طرف ته نوره هواراکوزیږي،نوپه دي وخت له دی هواڅخه بادجوړشي؛ دبادونو اصلي علت همداوي.

اواصل کي دبادپه طبیعت کي برودت اویخ والی وي،کوم ګرم والی چي په بادونوکي وی،هغه په دی وجه وي چي کله بادپه ګرموسیموباندی تیرشي بیاپه هغه بادکي ګرم والی پیداکیږي اوکه په یخوسیموباندی مروروکړي بیادیریخ شي.

# غرونه په خمکه میخونه دي:

ساینسادانان وايي چې غرونه په خمکه باندې میخونه دي،څومره چې دغره ارتفاع اولوروالی وي دهغه دوه چنده بیرته په خمکه کې ننوتلی وي؛چې داهم دقرانکریم حقانیت ثابتوي کماقال الله تعالی{ وَٱلْجِبَالَ أَوْتَادًا }[1]ژباړه مونږګرځولي دي غرونه په خمکه باندې میخونه.بل ځای کې الله تعالی

فرمايلي دي{ إِنَّ فِي خَلْقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱخْتِلَٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ }[2]ژباړه

بیشکه په پیدایښت دځمکی اواسمانونوکي همدارنګ په اختلاف دشپواوورځوکي دالله تعالی دقدرت لويي نښاني اودلائل دي.

همدارنګه ساینس دانان وايي کچیرې داغرونه په خمکه باندې نه وی،نوځمکه به په خپل حالت باندی نه وه پاتې شوی؛ خامخابه یې حرکت درلود،دوی ددې لپاره داسې مثال وايي:چې کله دیګ بخارکي هوادیره شي،بیايې چې سرلړ غونډي خلاص کړای شي کومه هواچې له دیګ بخارڅخه وځي له هغې سره ټول دیګ بخارحرکت کوي؛ایقاني ته چې کله هواورکړل شي،بیايي چې کله لړ سرخلاص کړای شي کومه هوا چې ورڅخه وځي توله پقاني ورسره بنوروي؛علمادعلم جیالوژي وايي چې که په خمکه باندې غرونه نه وی نوځمکي به هم دغه دول حرکت کاوه.کماقال الله تعالی{ وَأَلْقَىٰ فِي ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِىَ }[3]

ژباړه:اوپیداکړی یې دي غرونه په خمکه باندې میخونه محکم ددې لپاره چې ونښوري په تاسي باندې خمکه.داکه دالله تعالی وجودنه وی اوداقرانکریم که دالله تعالی کتاب نه وی،نوعلم جیالوژي رسول اللهﷺ چیرته لوستي وه؟ساینسدانان اوس دې عقیدې ته رسیدلي چې غرونه په خمکه باندی میخونه

---

[1] - سورة النبأ/۷.

[2] - سورة ال عمران/۱۹۰.

[3] - سورة النحل/۱۴.

دي،چي داهم دقرانکریم یوه معجزه ده،بل ځای کې الله تعالی فرمایلي دي{ وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِهِمْ وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ }[1]

ژباړه:اوپیداکړي دي مونږپه ځمکه باندې درانه اومحکم غرونه،چې ونه خوځیږي داځمکه په دوی اوګرځولې دي مونږپه دې ځمکه اوغرونوکي لویې لارې،ددې لپاره چې دوی پرته له کوم تکلیف څخه مقصودته ورسیږي.

## په نړۍ کې کومې اوبه غوره دي؟:

په نړۍ کې ترټولوغوره اوبه هغه دي کومې چې دنبي کریمﷺ له مبارکوګوتوڅخه وتلې وې.دهغې په غزاکې چې کله رسولﷺ الله داوبوپه لوښي کې خپل مبارک لاس کیښود.دهغه دګوتوله منځونوڅخه اوبه وبهیدلې په سلګونوصحابه وله دې اوبوڅخه څښاک اواودسونه وکړل [2] نوداوبه په توله نړۍ کې ترټولوغوره اوبه دي؛کذاقال علامه علي القاري وعلامه عبدالباقي الزرقاني في الشرح مواهب الدينيه وايضافي الفتاوى المعمى.

بیاتردې وروسته په نړۍ کې ترټولوغوره اوبه دزمزم دي،حتی چې په ماءالکوثرباندې هم بهتره دي؛ځکه چې درسول اللهﷺ مبارک زړه یې هم همدادزمزم په اوبوباندې مینځلی وه؛له دې څخه معلومیږي چې دااوبه دکوثرله له اوبوڅخه هم غوره دي.

## په طوفان نوح کې توله نړۍ غرقه شوې وه که یواځې عراق؟:

خیني علماءوایي چې په هغه وخت کې په توله نړۍ کې دحضرت نوح عليه السلام امتیان اوسیدل حضرت نوح عليه السلام تولې ته دالله تعالی استازې وه نوځکه په هغه زمانه کې توله نړۍ غرقه شویده ددې لپاره علماوکړ شمیردلائل وړاندې کړیدي؛چې یوله هغودلائلوڅخه داده چې علماءدعلم جیالوژۍ وایي چې کله مونږپه غرونوکي علمي تحقیقات کوونوهلته ماهیانوهډوکي راپیداکیږي؛دوی وایي چې په

---

[1] - سورة الانبياء/٣١.

[2] - عن جابرقال:عطش الناس يوم الحديبة ورسول الله صلى الله عليه وسلم بين يديه ركوة فتوضأ منها ثم اقبل الناس نحوه فقال:رسول الله مالكم قالوامارسول الله ليس عندناماء نتوضأ به ولانشرب الاماقي ركوتك قال:فوضع النبي صلى الله عليه وسلم يده في الركوة فجعل الماءيفورمن بين اصابعه كامثال العيون قال فشربناوتوضأنا -صحيح البخاري٢/٥٩٨.

غرونوکي داهدوکي له کومه شویدي؟له دی ځخه معلومیږي چي په طوفان نوح کی داماهیان له اوبوسره غرونوته پورته شویدي،کله چي اوبه بیرته تیتی شویدی داماهیان هلته په غرونوکی پاتی شویدي؛له دی ځخه علماءاستدلال کوي چي طوفان نوح کي توله نړی غرقه شویده بیالله تعالی بیرته ځمکي ته حکم وکړچي ته دی خپلي اوبه وچی کړه؛داکوم بحرونه اودریابونه چي اوس مهال په نړی کي موجود دي داداسمان اوبه دي ځمکی خپلی تولي اوبه هلته بیرته جذب کړیدي؛والله اعلم

## دسپوږمی بیان:

سپوږمی له ځمکي ځخه دیره کوچنی ده،علامه موسی خان بازي هیئة الکبری اوهیئة الصغری کتابونوکي لیکلي دي چي له سپوږمی ځخه ځمکه یوکم پنځوس ځلی لویه ده؛دعلم هیئت علماچي کله دسپوږمی تعریف کوي داسي وایی چي کویکب، یعني دایوروکی غوندی ستوری دی په نسبت سره نوروستوروته.

بل داچي سپوږمی په خپله رڼانلري له لمرځخه رڼااخلي،لکه دمنطقوپه کتابونوکي راغي چي نورالقمرمستفاد من نورالشمس که ځوک پوښتنه وکړي چي سپیره ځمکه ځرنګه رڼاکوي؟مونږځواب ورته کووچي تاسي په تیاره کي یوه بجلی راواخلی یوه سپیره دیوال ته یي رڼاکړی هغه ناچي په دیوال باندي لویدلي وي هغه بیرته رامعکس کیږي توله کوټه ورسره رڼاکیږي.

بل داچي په سپوږمی کي هوا اواکسیجن شتون نلري،هلته که ځوک خبری کوي هغه بلکل ځوک نشي اوریدلای.اوپه سپوږمی کي جاذبه قوت هم دیرکم دی،که ځوک دځمکي په سرپورته توپ کړي کیدلای شي چي یومترهم له ځمکي ځخه پورته نشي خوکه ځوک په سپوږمی کي پورته توپ کړي نوشپږمتره دسپوږمی له تل ځخه پورته کیدلای شي،ځکه چي دسپوږمی جاذبه قوت له ځمکي ځخه دیرکم دی.اوکله چي په شپه کي سپوږمی راختلي وي دسیندونواوبه دیرشپهس کوي؛علت یي داي چي سپوږمی یودول جاذبه قوت لري چي اوبه دخپل خان طرف ته کش کوي؛ځومره چي په شپه کي اوبه په سیندونوکي دیري وي دورځي بیاهغومره نه وي؛علت یي همدادی چي ذکرشو

اوبل داچي سپوږمی ته ختل په اوسني دورکي له بدهیاتوځخه دي،کوم خلک چي سپوږمی ته ختل نه مني هغه دهغوی شخصي نظردی؛سپوږمی ته ختل اوس مهال په تواترباندي ثابت دي؛دتولي نړی علماوایي چي سپوږمی ته ختل کیدلای شي اوشوي هم دي.اوپه سپوږمی کي یودول درز دي لکه چي یوحل ماته شوی وي،بیابیرته پیوند شوی وي؛په دی اره دعلم هیئت علماوایی چي داولی؟ترا وسه

پوري دوی ددی علت ندی پیداکړي اوددی لپاره یی قانع کونکی دلیل ندی موندلی حوموږمسلمانان وایوچي داشق دقمر ده،دادنبي کریمﷺ معجزه ده په هغه زمانه کی دمکی مشرکینوله نبی کریمﷺ څخه دامعجزه غوښتي وه،بیانبي کریمﷺ دالله تعالی په حکم دامعجزه ورته وسودله [١]

## سپوږمی ته دعا:

أیاسپوږمی ته دعاکول جوازلري؟علماولیکلي چي سپوږمی ته دعاکول جوازلري خوپه دی دعا کی له رسول اللهﷺ څخه لاس پورته کول ندي ثابت؛خوکه څوک یي پورته کوي هم څه باک نلري،حکه چي یوه حدیث شریف کی راحي چي:اذاسألتم الله فاسئلوه ببطون اکفکم ولاتسألوه بظهورها [٢]

له دی حدیث څخه استدلال کیږي چي که څوک لاس پکي پورته کوي هم څه باک نلري؛ بعضو علماوخولاداهم لیکلي چي پرته له استسقاءڅخه په نورولمونځونوکي له سره لاس پورته کول نشته،په دی باندي بیاعلماوسخت ردونه کړي په دې اړه علامه سیوطي خانګړی کتاب لیکلی چي نوم یي دی التدریب الراوي هلته نوموړي لیکلي چي په دي اړه ماسل احادیث راغوندکړی په یوه مستقله رساله کی می راجمعه کړیدي،همدارنګه نوموړي په فض الوعاءکي هم په دی اړه پنځه پنحوس حدیثونه راوړیدی هلته یی لیکلي چی داخبره بلکل غلطه ده چي پرته له استسقاءڅخه په نورودعاګانوکی دلاسونوپورته کول نشته؛علامه سخاوي په الاجوبة المرضیه کی لیکلي چي داخبره بلکل مردوده ده ځکه ډیرداسي احادیث راغلي چي رسول اللهﷺ دعاهم کړي اوپه مخ یی لاسونه هم کش کړیدي؛لنده داچي په دوعاکی لاس پورته کول اوپه مخ باندي دلاسونوکش کول له رسول اللهﷺ څخه ثابت دي.دلابنه تحقیق لپاره فض الوعاء دعلامه سیوطي ته مراجعه وکړی،په حق به واقف شي

## سپوږمی کي دڅه معلومیدل:

کله چي سپوږمی دڅوارلسوشپوشي بیلیوڅه پکي ښکاري،ځیني خلک وایي:چي حضرت اسرافیل ده شپیلی یي په لاس کي نیولی اوبعضي خلک څه نوري خبری کوي،خوعلامه سیوطي په حاوي الفتاوی کی لیکلي اوعلامه ابن حجرفتاوای الحدیثیه کی لیکلي:چي جمیلالفظ پکي لیکلي په تنویر سرد،تفسیرروح المعاني کي علامه شهاب الدین الوسي لیکلي چي لااله الاالله محمدرسول الله پکي لیکلي دي

---

[١] عن انس بن ملك ان اهل مكة سألوا رسول الله صلى الله عليه وسلم اعيهم ايةفاراهم القمرشقتين حتى رأواحراءبينهما.صحيح البخاري ١/٥٤٦
[٢] - مشكاة المصابيح١/١٩٥.

خو په دې اره یو ی ساینس وایي چې هیڅ شی هم نه دې کی لیکل شوي سیورمی کی هم غرونه ومکانی ... کوموخایونو باندی چې لمر نه لویږي همه تیاره بنکاري اکه څوک ووایي دنیاکي چې کله لمرو ي سیورې هم ورسره رناوي خوسیورمی کي داسې نده خمکه کي الله تعالی یو دول دری پیداکړي چې دهغوي واسطه دلمررناسیوري کي هم وي خو په سیورمی کي دادول دري نشته کوم خای کي چې رناوي یواځې همه خای وربانذی رناوي نوحکه همه تتکي او غرونه چې لمر نه وربانذی لویږي همه تور معلومیږي مایه حیله هم په سیورمی کي دلوی دوربین په واسطه دري ساعته مطالعه کړیده.

## خمکه غوره ده که اسمان؟:

په دې اره دعلامه ابن حجر ،علامه سمهودي اوعلامه سبکي رایه داده چې اسمان غوره دی،حوپرته له هغې خمکي چې درسول اللهﷺ له مبارک بدن سره نښتی،هغه بیاله حمکې او اسمان دواړوځخه غوره ده؛همدادجمهورو علماورایه ده.

خوعلامه سیوطي حاوي الفتاوی کي لیکلي چې خمکه غوره ده په نسبت سره اسمان ته؛اویوه رایه داسې هم ده چې که له خمکي سره درسول اللهﷺ مبارک بدن شمارشي بیاحمکه غوره ده،اوکه دنبي کریمﷺ جسداطهرورسره شمارنشي بیااسمان غوره ده.والله اعلم

اوپه نړی کي په غرونوکي کوم یوغرغوره دي؟په دې اره علامه ابن حجرفتاوی الحدیثیه کي لیکلي دي چې جبل طور غوره ده؛ځکه چې الله تعالی هلته له حضرت موسیٰؑ سره خبری کړیدي.

خودتولي نړی دجمهوروعلماورایه داده چې جبل احدغوره ده کذاقال علیه السلام:هذاجبل یحبنا ونحبه.نبي کریمﷺ فرمایلي دي:چې داحدغریوداسې غردی چې هغه له مونږسره محبت لري اومونږله هغه سره.[1] دیادونې ورده چې احدته ځکه احدوایي چې داغریواځې ده له نوروغرونوسره لری نه لري.

## (لولاک لولاک لماخلقت الافلاک)[2]حدیث شریف کي تحقیق:

کله چې الله تعالی حضرت آدمؑ پیداکرنوهلته په عرش باندي یوحدیث شریف لیکل شوی وه چې:لولامحمدلماخلقتک الخ، یعني کچیری محمدﷺنه وی نومابه ته نه وی پیداکری؛ داحدیث دلولاک

---

[1] - صحیح البخاري۱/۵۸۵-.

[2] - لولاک لماخلقت الافلاک-قال:الصنعاني موضوع-(المصنوع في معرفة حدیث الموضوع/۱۸۵،فقره ۲۵۵)

لولاک الخ حديث معنى ده.داحديث چي لولامحمدالخ حاكم په مستدرک کې راوړی بيايي ليکلي چي داحديث صحيح دي خوعلامه ذهبي ليکلي چي داحديث موضوعي دي؛[1]بياعلامه علي قاري ليکلي چي ددی حديث لفظ دروغ ده خومعنى يې صحيح ده اوپه معجم الكبير اوسبل الهدى کې هم داحديث روايت شويدي.

ددی حديث چي:لولامحمدالخ،لفظ هم محققين علماءموضوعي کني،که داحديث موضوعي شي نودلولاک الخ حديث معنى هم صحيح نشوه.والله اعلم.

# دذبحې بيان.

له هرڅه مخکې ديادوني ورده چي کله يوڅوک قصداپه مذبوحې باندی دالله تعالى نوم ذکرنکړي، نوهغه مذبوحه مرداره ده؛ اوکه سهواځني پاتي شي بياذبيحه نه مرداريږي؛[2]خوداحکم يواځې دمسلمان لپاره ده که دکافرلپاره هم ده؟داهل کتابوذبيحه هم پاکه ده،بعضي خلک وايي:داکومه غوښه چي له بهرنيو هيوادونوڅخه زموږهيوادته راځي ددې خوراک جائزدی ځکه چي دااهل کتابوذبيحه ده اواهل کتاب که بسم الله وربانديٍ ونه وايي بيايي هم ذبيحه پاکه ده آياداخبره صحيح ده؟

تقريبا دټولوشوافعو،دټولوحنابله اودټولواحنافوخلاف له اکثره موالکوڅخه مذهب دادی چي لکه څرنګه دمسلمان لپاره دبسم الله ويل شرط دي،همدارنګه داهل کتابي لپاره هم دبسم الله ويل شرط دي؛که مسلمان په مذبوحې باندی قصدابسم الله ونه وايي نومذبوحه مرداره ده،همدارنګه که اهل کتابي قصداتسميه ترک کړي په دې سره مذبوحه مرداريږي؛کذافي ردالمحتار للعلامه شامي.[3]په فقه دحنابله وکي المغني لابن القدامه کې دامسئله ذکرشويده،کشاف القناع يانورهغه کتابونه چي په فقهه شافعي کې جوړشويدی هغوټولوکي دامسئله ليکل شويده.اوپه موږاحنافوکې مفتي محمدتقي عثماني ليکلي دي:کوم شرطونه چي په اسلام کې دمسلمان ذابح لپاره وضعه شوي هغه به اهل کتاب هم

---

[1] - عن عمربن الخطاب قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لمااقترف الادم الخطيئة قال يارب اسالک بحق محمد لماغفرت لي فقال الله ياادم وكيف عرفت محمدولم اخلقه؟قال:يارب لانک لماخلقتني بيدک ونفخت في روحک رفعت الى قوائم العرش مكتوبا لااله الا الله محمدرسول الله....غفرت لک ولولامحمدماخلقتک.هذاحديث صحيح الاسناد.وقال الذهبي:بل موضوع.المستدرک على الصحيحين ۲/۶۷۲- رقم الحديث ۴۲۲۸.

[2] - ذهب جمهورالفقهاءالى انه يجب للذكاةالشرعيه ان يذكرالذابح اسم الله عندالذبح فان ترک التسمية عمدافلاتحل ذبيحته عندابي حنيفه ومالک واحمدوجمهورالفقهاء واماإذانسيهافالذكاة معتبرة عندالحنفيه والمالكيه-(بحوث في قضايافقهية المعاصرة/۳۹۳)

[3] - ولاتحل ذبيحة من تعمدترک التسمية مسلما اوكتابيا لنص القرآن ولانعقادالاجماع-ردالمحتار ۹/۴۹۹-.

مراعت کوي،که مراعت یې نکړي نودهغوی ذبیحه هم پاکه ده اوکه مراعت یې نکړي بیاذبیحه مرداره ده،کذافي کتاب الذبائح والبحوث في قضایافقهیة المعاصره [1]

په اوسني عصرکې چې کوم چرګان په مسلخونوکې حلالیږي،اياددې چرګانو خوړل جوازلري؟په دې اړه ځينواسلامي علماوچې هغوی له مسلخونوڅخه لیدل کړي،هغوی وايي چې دايودول ماشین دی چې چرګان له یوځخه ترل کیږي دیرچرګان په یوه سیخ کې اچول کیږي چې دتولوسرونه یکځه اوښکته یې پورته وي،بیاهلته یوه لویه په دانروي شکل باندي چاره وي مخکې له دې چې چرک چرګ ته ورشي بخی اوبه ورباندي راځي هغه ددې لپاره وریاندې تویوي چې وبه ځنی لاړه نشي اواصل مقصودیې ذبحه کې دمسفوحي وینې وتل وي، بیاله دې وروسته سکین دوارته ورځي دغه سکین دواردبعضوچرګانو په سینه راځي دبعضوبیخي سرنه کټ کوي خواکثره داسې وي چې سرپې وریاندې پرې کیږي وروسته له دې ځخه دیرې ګرمي اوبه وریاندي اچول کیږي،هغه ددې لپاره چې بیایې بڼکې په اسانۍ سره لرې کیږي. [2]

دلته دري شیان دچرګانودمریني عوامل دي،یخي اوبه،سکین دواراوګرمي اوبه،دلته دانه معلومیږي چې دیخواوبوپه واسطه مرشوکه دسکین دوارپه واسطه مرشواوکه ګرمواوبوپه واسطه مرشو،کوم چرګان چې دسکین دوارپه واسطه یې سرونه ندي کټ شوي هغه خوسل په سلوکې معلوم دي چې دګرمواوبوپه واسطه مره شوي،اووینه هم نه ورځخه وځي کوم چرګان چې له بهرنیوممالکوڅخه افغانستان ته راځي دهدوکورنک یې توروي داددې علامه ده چې وینه یې نده وتلې،داتول ددې نحرمت عوامل دي،په یخواوګرمواوبوخوله سره ذبحه صحیح کیږي نه. [3]

بعضې علماوایي چې نه سل په سلوکې یې چاره وزني،خودلته بیاذبحه کونکی ندی معلوم اوپه اسلام کې داحکم دی چې ذبحه کونکی به معلوم وي،اکه څوک وایي چې بټن وهونکی دابح دی،داخبره هم نده صحیح ځکه چې زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې لیکلي:چې که یوڅوک حیوان دذبحې لپاره څملوي بسم الله الله اکبر هم ووايي،بیایې هغه پریږدي بل نفرراشي هغه یې ذبحه کړي داذبیحه مرداره

---

1-حاالصحیح الراجح المؤیدباالنصوص الظاهره ان ذبائح اهل الکتاب المأكل اذاراعواجیع الشروط الذبح المنصوص في القرآن والسنة (بحوث في قضایافقهیة المعاصره/۳۱۲)

2-یعلق کل دجاج برجلیه بحیث تعلق رجلاه في عروة العلاقه وسائرجسمه معلق معکوسا.....حتی تأتي الی منطقة ینصب فیهاالماءالبارد.....ثم تأتي هذه العلاقات الی منطقة وضع في اسفلها سکین دوارةبدورسرعة شدیده.....ثم مرحلة منطقة ینصب فیهاالماء من فوق مرةاخری ولکن هذاالماءحاروالمقصودالمرورعلیه نتف الریش الدجاج (بحوث في قضایا فقهیة المعاصره/۳۱۹)

3-ان وجدته غریقا في الماءفلاتاکل،فانک لاتدري الماءقتله اوسهمک،صحیح مسلم رقم الحدیث ۹۲۳.

ده؛په سکین دوارکی هم دغه حکم دی سکین دوارچي کله په حرکت راشی هغه بیاکله دانسان په اختیارکي ده اودچری حکم داده چي هغه به دذابح په اختیارکي وي؛که داهم ومنوچي چاره ددابح په اختیارکي ده چي کله بتن ووهي بسم الله الله اکبروواييي نودلته خودابسم الله په یوه چرک وویل شوه اوحال داچي په یوه دقیقه کي په لسهاوه چرګان حلالوي.[1] زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکی لیکلي دي چي که څوک یوحیوان دذبحي لپاره څملوي بسم الله الله اکبرهم ورباندی ووایي بیایه دی وخت کی هغه حیوان اوچت کري دهغه پرځای بل راولي هغه ذبحه کري داذبحه مرداره ده،حکه دابح حوپه هغه بل حیوان باندی بسم الله ویلی وه؛دلته په سکین دوارکي هم دغه حکم دی کومه چرګه چي بننی ته بربره وي په هغي بسم الله وویل شوه په نورزوونه ویل شوه؛داټول ددی دلائل دي چي کوم چرګان په مسلخونوکي ذبحه کيږي دهغوخوړل ناروادي.

بعضي خلک وايي چي په اوسني عصرکي دچرګانوغوښي د ایران له هیواد څخه راحي نوددی خوراک جائزدی؛خوداخبره نده صحیح ځکه چي هغوی هم په مسلخونوباندی ذبحه کوي.بل داچي هغوی کي داسي خلک شته چي دحضرت علي کرم الله وجهه نوم ورباندی یادوي؛لنده داچي په مسلخونوکي چي کومي ذبیحي کیږي هغه که مسلمانانو وي اوکه دکافرانو دټولویودول حکم دي

دیادوني ورده کوم هیوادکي چي څوک ژوندکوي اوهلته مسلمانان اکافران ګډژوندکوي لومړی به خان ته دامعلومات کوي چي ذابح مسلمان دی،که اهل کتابي دی او که بت پرست دی؟علماولیکلي کوم ځای کي چي مسلمانان اوکافران ګډژوندکوي اودامعلومات نه وي چي ذبحه چاکړي؛که هلته مسلمانان ډیروه نودغوښي خوراک جائزدی؛ځکه ګیدلای شي چي مسلمان ذبحه کړي وي؛اوکه کفارډیروي بیايي خوراک ندی جائزځکه چي کافران ډیروي کیدلای شي چي کافربه ذبحه کړی وي.که مسلمانان،کافران اوبت پرست ګډژوندکوي هلته هم ذبیحه مرداره ده؛اوکوم هیوادکي چي مسلمانان لږوي اواهل کتاب ډیروي بیادهغوی ذبیحه خوړل جوازلري خوپه دي شرط که هغه شرطونه یي مراعت کول کوم چي دمسلمان لپاره دي.[2]

---

[1] -والظاهر من النص القرآني(ولاتأكلوممالم يذكراسم الله عليه)ان كل حيوان يحتاج الى تسمية مستقلة-(بحوث في قضايافقهية المعاصره/٤٢١)

[2] - اذاكان غالب اهل البلد من الكفارغيراهل كتاب فاللحم المعروض للبيع في السوق لايحل للمسلمين...اذاكان اهل البلدمختلطين مابين مسلم ووثني اومجوسي،لان ماوقع فيه الشک لايحل حتى يتبين كونه حلالا...امااذاكان غالب اهل البلدمن اهل الكتاب فالاصل فيه حكم المبين لكن اذاعرف باليقين اوظن الغالب-(بحوث في قضايافقهية المعاصره/٤١٨-٤١٧)

## دمسلخ په واسطه دحيوان ذبحه:

په مسلخ کي دحيوان دذبحه کولولپاره متعددي طريقي دي،يوه طريقه داده چي حيوان ته ګازورشيندي چي دهغه په واسطه دحيوان تنفس بندشي،په دي سره هغه پريوځي بيايي ذبحه کوي.بله طريقه داچي دبرقي ماشين په واسطه چي هلته دحيوان سرورننه باسي بيابئ وربانديووهي هلته يوه تيره اوسپنه دحيوان په سرکي ننوځي په دي سره حيوان په ځمکه ولويږي لکه مرداسي شي ترهغه وروسته يې ذبحه کوي.[1]خودادول ذبحي په اسلام کي جوازنلري.[2]

په اوسني عصرکي دادويمه طريقه په نړی کي ډيره مروجه ده،په دي اره مفتي تقي صاحب په بحوث کي ليکلي چي سل په سلوکي ددي پته نه لږيږي چي وروسته ترميخ وهلوپه هغه کي حيات پاتی کيږی اوکنه؟خوځيني علماوايي چي ترڅودقيقو پوري هغه حيوان ژوندی وي؛دلته خويودانشومعلوم چي په دي حيوان کي حيات وه اوکنه؛[3] بل داچي کافران ددي څه پرواکوي چي زربې حلال کړي اوبل دامعلومه نشوه چي ذبحه کونکي بسم الله وربانديوويلي اوکنه؟که اهل کتاب وي هغوی به هم دذبحي تول شرايط مراعت کوي اوسني عصرکي اکثره اهل کتاب په خپل دين باندی ندي پاتي؛علماوليکلي چي يواځي ديهودونبيحه اوس هم صحيح ده ځکه چي هغوی دخپل دين پوره مراعت کوي،خودهغوی ذبيحي زمونږ هيوادته نه راځي؛داتول دحرمت دلائل کيدلای شي په اوس وخت کي چي کومي غوښي زمونږ هيوادته راځي هغه اکثره دبت پرستوهيوادونوڅخه واردیږي دبيلګي په توګه:هندوستان،جاپان،چين اوداسي نور..کومي غوښي چي له دي هيوادونوڅخه راځي دهغوخوړل مطلقاحرام دي؛کدافي الفقه الاسلامي وادلته والبحوث.[4]

## حرام مغزمرداردي اوکنه؟:

خلکوکي مشهوره ده چي حرام مغزمرداردي اياداخبره صځيح ده؟دحيوان دملا په هدوکي کي يوشی وي چي هغه ته حرام مغزويل کيږي،ددي دحرمت دليل تراوسه ماکوم کتاب کي ندی ليدلي،سره له دي چي دحرمت کتابونه مي مطالعه کړيدي؛ زمونږدفقهي حنفی په کتابونوکي ليکلي دي چي په

---

۱-ويضعون المسدس في وسط جبهته الحيوان فيطلقونه فتخرج منه الابرة اوالقضيب وتثقب دماغ الحيوان فيفقدالحيوان الوعي فوراوبعد ذالک يذبح- (بحوث/۴۳۰)

۲ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذاقتلتم فاحسنواالقتلة واذاذبحتم فاحسنواالذبحة-صحيح مسلم رقم الحديث ۱۹۵۵.

۳ فيتوقف فيه الحكم على ان هذه التدويخ بسبب الموت ام لا؟...ولايمعان يموت به الحيوان فيصيرموقودة-(بحوث/۴۳۱)

۴- ان مايستورد من اللحوم من البلادالغيرالمسلمة لايجوزاكلها وان كان توجدعليهاالتصريح بانهامذبوحة على الطريقة الاسلاميه-(بحوث/۴۳۲)

حیوان کې وه شیان حرام دي،چې هغه بهیدونکې وینه،تناسلي اله،خصیتیني،حبه(مقعد)،غدونکوم چې دپوستکي او غوښې ترمینځ وي،مثانه(دتشومتیازومرکز) اومراره(ترېخې)دي؛ اوحرمت یې هم تحریمي دی،په دې کې څوحرام مغزدی ذکرشوی،ترڅو له دې چې کوم اجزاء په حیوان کې دي دهغوتولوخوړل جوازلري؛کذافي ردالمحتارکتاب الذبائح،[1]فتوای الهندیه،فتوی کاملیه، عمص العیون والبصائر،بدائع الصنائع والفقه الحنفي في ثوبه الجدید

ددې لپاره زمونږ احناف علماءپوحدیث هم دلیل راوړي،چې هغه حدیث په معجم الاوسط امام طبراني اوکتاب الاثاردامام محمدکې روایت شویدی اوهغه حدیث هم مرسل حدیث دی چې مرسل حدیث هم زمونږداحنافوپه نزدحجت دی.[2]زمایه دې اړه دحرمت فتوی ده،طحطاوي علی الدر المختارکې هم په دې باندې دحرمت فتوی شویده.

## بنخه هم ذبحه کولای شي:

بعضي خلک وایي چې دښځې ذبیحه مرداره ده،آیاداخبره صحیح ده؟دایوه مردوده عقیده ده،په اسلام کې دښځې ذبحه بلکل جوازلري؛زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې دامسئله لیکل شویده،اعلاءالسنن کې ددې لپاره باب خانګړی شوی،هلته یې احادیث راوړیدي له بخاري شریف څخه یې نقل کړی چې حضرت عبدالله ابن عمریاهم په خپلوروایتونوکې بل صحابي راځي هغه وایي چې زما یوه مینځه وه،هغې به میږې څرولې بیایوه میږه دمرینې په حالت کې وه،دې مینځې یوه تیږه په بله ویشتې وه اوپه تیره تیږه یې میږه حلاله کړیده؛هغه صحابي له رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ایاله دې میږې څخه خوراک جائز دي؟نبي کریم ورته وفرمایل:هوبلکل یې خوراک جوازلري [3]

---

[1] - مایحرم أكله من اجزاءالحیوان المأکول سبعة:الدم المسفوح،والذکر،والانثیان،والقبل،والغدة،والمثانة والمرارة،ردالمختار ٩/٥١٨-.

[2] - وعن ابن عمر قال كان رسول الله عليه وسلم يكره من الشاة سبعا المراره، والمثانة،والحيا،والذكر،والانثيين والغدة،والدم رواه الطبراني في الاوسط ٦/٢٨١-. وكتاب الاثار للامام محمد رقم الحديث ٨٠٨. ومراسيل امام ابي داود رقم الحديث ٤٦٥. وعبد الرزاق في المصنف رقم الحديث ٨٧٧١. مخرج حماسي.

[3] - عن سعدبن معاذاخبره ان جارية لكعب بن مالك كانت ترعى غنمابسلع فاصيبت شاة منهافادركتهافذبحتها بحجرفسئل النبي صلى الله عليه وسلم فقال كلوها-صحيح البخاري ٢/٨٢٧-.

## دیوچاداحترام لپاره دحیوان ذبحه:

که څوک دیوچاداحترام لپاره حیوان ذبحه کړي،له دی حیوان څخه غوښه خوړل ناروادي؛اوکه ددی لپاره یې ذبحه کړي چې غوښه یې وخوري،مقصودیې دغوښې خوراک وي بیایې خوړل جوازلري.اوکه په دی ذبحه کی یې دهغه تعظیم یاخوشحالي مقصودوي سره له دی چې دذبحې پرمهال یې بسم الله الله اکبرهم ویلي وي بیاهم له دی ذبحه شوي حیوان څخه غوښه خوړل ناروادي،حکه چې دلته له ذبحې څخه مقصودوینه تویول دي غوښه خوړل ندي.

## دقرباني متعلق مسائل.

۱-که یوفقیرسړی چې قرباني نه ورباندی کیږي قرباني واخلي هغه په ده باندی نذرګرځی،سره له دی چې ده په خان باندی نه وي نذرکړي خوپه دي فعل سره چې دقرباني اخیستل دي په ده باندی نذرګرځی؛دبیلګی په توګه:کله چې یوڅوک په نفلوباندی پیل وکړي،نوهغه نفل په ده باندی نذرکیږي بیاکه دڅه عذرله وجی له ده څخه پاتي شي هغه په ده باندی واجب ګرځي بیابه یې قضایی راوړي دازمونږه احنافومذهب دی؛دلته هم دانفل کونکي په خوله باندی نه دی ویلي چې په مادی نذروی،دفعل په واسطه نذرګرځي؛قرباني کی هم دغه حکم دی اوپه نذرکي حکم دادی چې له منذری څخه به دناذراصول اوفروع خوراک نه کوي،نودافقیربه داقرباني ذبحه کوي اوغوښه به یې توله صدقه کوي.علامه شامي ردالمحتارکی دامسئله ذکرکړي،نوموړي لیکلي دي چې که فقیرسړی قرباني واخلي هغه په ده باندی نذرګرځي دا اخیستل داسی دي لکه ده چې په خوله باندی ویلی وي چې په مادی نذروي؛فتح المعین اوفتاوی عالمګریه کي هم دغه خبره لیکلی ده.[۱]

۲-که یوفقیرسړی دقرباني په ورځوکي قرباني واخلي،بیادده قرباني عیب ناکه شي داسی عیب چې هغه دقرباني مانع وي نودافقیربه دقرباني لپاره بل حیوان اخلي اوکنه؟که دغریب قرباني عیب ناکه شي غریب به سره له عیبه همدغه حلالوي، خکه په ده باندی په شراءلازمه شوی اوشراءیی دهمدغه حیوان کړي کوم چې عیب ناک شویدی،نوغریب به سره له عیبه همداقرباني ذبحه کوي.اوکه دخان قرباني عیب ناکه شی بیاڅه حکم ده؟که دخان قرباني عیب ناکه شي هغه به بل حیوان دقرباني لپاره اخلي،حکه چې دهغه په ذمه قرباني لازمه ده،همدغه خونده لازمه کومه چې عیب ناکه شویده؛داعیبناک حیوان بیرته هم پلورلای شي.

---

[۱] - ولوذبحهاتصدق بلحمها....ولایأکل الناذرمنها....لان شراله لهایجري مجری الایجاب وهوالنذر بالتضحية عرفا-ردالمحتار ۹/۵۳۲-.

۳-که خان یاغریب دقرباني لپاره حیوان واخلي بیاهغه له دوی څخه ورک شي،هغوی دقرباني لپاره بل حیوان واخلي چې کله داختروورځ شي هغه ورک شوي حیوان هم راپیداشي،اوس به دوی ډواړه حلالوي اوکه یوه؟کچیری غریب وي دواړه به حلالوي ځکه چې غریب باندی نفس په وسیله نذرشوی ده لومړنی اودیمه دواړه په ده باندی داخیستلوپرمهال نذرشویدي نوځکه به دواړه حلالوي.اوکه په خان باندی دادول پیښه وشي نوهغه به یوله دی دوقربانیوڅخه حلالوي،ځکه په ده باندی خوپه شراء نه لازمیږي؛کذافي مالابدمنه.

۴-که یوڅوک خان لپاره قرباني واخلي بیانورخلک شرکت ورسره کولای شي اوکنه؟په دی اره علماولیکلي دي چې مع الکراهیت جوازلري؛ځوکه غریب دخپل خان لپاره دقرباني حیوان واخلي ترهغه وروسته که دی نورخلک له خان سره شریکان جوړوي بلکل یې شرکت نه صحیح کیږي ځکه چې داتول حیوان په غریب باندي نذردهګ[1]کذافي مالا بدمنه.

اوکه یوڅوک دخپل خان لپاره یوحیوان دقرباني په نیت واخلي، دبیلکي په توګه،په لس زره یې واخلي،بیاوروسته شپږنور شریکان له خان سره ونیسي، بیادالس زره روپۍ په دی شپږوکسونو لوېشلی ورتقسیم کړي خپل خان ورڅخه وبلسي دادول عمل شرعا جوازنلري؛ځکه چې په دی ګنون کې به تمول(نورمال حاصلول)نوي مقصود.یاده په لس زره اخیستی وي نوروکسون والونه یې قیمته شمارکړي،داهم شرعا جوازنلري ځکه چې یوخل ځاروی دقرباني په نیت واخیستل شي بیا په هغه کې تمول ندی جائز.

د-بعضي خلک دمړولپاره قرباني کوي آیاداشرعا جوازلري؟ علماولیکلي دی چې دمړولپاره قرباني جوازلري،اوکومه قرباني چې دمړی لپاره شوی وي،دهغي قرباني غوښه خوړل جوازلري؟که مړي وصیت کړی وي چې زمالپاره قرباني وکړي بیا یې خوړل ناروادي ځومره برخه یې چې وي هغه به ټوله صدقه کوي.اوکه څوک تبرعا دمړي لپاره قرباني کوي بیایې خپله هم خوړلای شي اوصدقه کولای یې هم شي.

## دخوراک بیان.

دسلفوپه زمانه کي دلاسونومینځل په دي دول وه چې په یوه لویه کاسه کي به اوبه راوړل شوې،کوموکسانوبه چې دخوراک اراده درلوده هغوتولوبه له هغي کاسي څخه خپل لاسونه ومینځل؛خوپه اوسنی زمانه چلمچي ګاني راپیداشویدي اوس که یو څوک چاته اوبه وراچوي آیادا اوبه

[1] - وهذاالحول على الفني لم تعين لوجوب الضحية بها...فلذاالتقيرفلايجوزله ان يشرك فيهالانهاوجبتاعلى نفسه بالشراءالاضحية-ردالمختار ۹/۵۲۶.

به یه ولاړه وراچوي اوکه په ناسته؟په دي اره ښینو علماولیکلي دي چي په ولاړه داوبوور اچول غوره دي،اوځيني نورعلماءوایي چي په ناستي داوبووراچول غوره دي؛خوصحیح خبره داده کومه چي علامه علي القاري په شرحه دعین العلم کي لیکلي چي دواړه دوله اوبه وراچول جوازلري

## دکورڅښتن به میلمه ته اوبه وراچوي:

کله چي دچاکورته یوڅوک میلمه ورشي،نودکورخاوندبه میلمه ته دلاسونومینځلولپاره اوبه وراچوي اومیلمه به هم منعه نه راوړي؛په الفقه الحنفي في ثوبه الجدیدکتاب کي لیکلي دي چي یووخت امام مالک ته امام شافعي رحمه الله راغی،امام مالک رحمه الله دلاس مینځلواوبه ورته راواخیستي؛امام شافعي رحمه الله ورته وویل:چي ته ځرنګه زمالاسونوته اوبه را اچوي ته خوزما استاذیي؟امام مالک رحمه الله ورته وویل:اذااتاکم کریم قوم فکرموه.یعني کله چي تاسي ته یونیک بنده راشي نوتاسي هغه ته عزت ورکوی له دی څخه ځرګندیږي چي کله دچاکورته میلمه ورشي نودکورڅښتن به یي عزت کوي.[1]

اوځینوخلکوکي عادت وي چي دډوډی ترخوراک وروسته دلاس مینځلوله اوبوسره صابون راوړي،بیاپه هغه باندي لاسونه مینځي داهم لابأس به ده،ځکه چي زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي لیکلي چي ترخوراک وروسته دلاسونومینځل په اوروباندي هم جوازلري،په مکنی زمانه کي صابون نه وه یوډول بوټي وه په هغوبه خلکولاسونه مینځل؛علامه علي القاري په شرحه دعین العلم کی لیکلي دي چي له خوراک وروسته دلاسونومینځل سلفوعادت وه؛غوره داده چي ترخوراک وروسته لاسونه په صابون باندي ومینځل شي.

## دخوراک په پیل دبسم الله ویل:

کله چي یوڅوک خوراک پیل کوي،نوبسم الله به وایی؛یواځي بسم الله به وایی که بسم الله الرحمن الرحیم؟په دي اره علامه ابن علان البکري الشافعي په التحفة الربانیه کي لیکلي،امام نووي په کتاب الاذکارکي لیکلي نورودیرو علماوهم لیکلي دي چي غوره داده چي بسم الله الرحمن الرحیم ووایي،کنی نفسي جوازیواځي بسم الله ویل هم لري.

---

[1] ويصب صاحب المنزل على يد ضيفه كما فعل المالك بالشافعي، كنافي شرح عين العلم ۱/۲۵۵- وفقه الحنفي في ثوبه الجديد ۵/۳۲۴. مخرج حماسي.

اوبسم الله به په جهرسره وايي چي نورخلک يي واوري هغوی نه هم وريه يادشي اويه مجلس کي چي څومره خلک موجود وي هغه ټول ته بسم الله وايي که يواځي يوتن؟په دی علامه بن علان ليکلي چي ديوه تن ويل کافي دي خو علامه علی قاري ليکلي چي ټول ته يي وايي.[1]

کومه ډودی باندی چي بسم الله وويل شي په هغه ډوډی کي بياشيطان ګډون نشي کولای شاولی الله رحمه الله حجة الله البالغه کي ليکلي چي يوه ورځ يوه سري خوراک کاوه،په دي وخت کي يوه ډوډی ورځخه ورغريده سري وريسي منډی کړی هغه ډوډی يي بيرته راونيوله؛نوموړی وايي چي ماله ورځ مجلس کي پيريان اوشيطانان ناست وه،زه هم ناست وم يوه پيري وويل:چي تيره ورځ له هغه فلانکي سري څخه يوه ډوډی ورغښتله مونږديرزيات وري وه خوهغه سري بيرته هغه ډوډي له مونږڅخه واخيستله شاولي الله رحمه الله خوداحالت په کشف سره مشاهده کړی وه خودايه حقيقت بناده کله چي څوک بسم الله ووايي بياشيطان دهغه په خوراک کي ګډون نشي کولای.

## ميلمه ته به ست کوي

خلکوکي مشهوره ده چي ميلمه ته ست مه کوی خوداخبره بلکل غلطه ده،اصل کي داده چي ميلمه ته به ست کوی ترهغه چي موړشي؛کله چي موړشي بيابه ست نه ورته کوی؛

امام نووي ددي لپاره کتاب الاذکارکي خانګړی باب راوړی،هلته يي دبخاري شريف له حديث څخه استدلال کړی چي حضرت ابي هريره وايي:زه يوه ورځ ديرسخت وږی شوم،په لاره کي ناست وم حضرت ابوبکرراغي ماسلام ورباندي وکړديوه ايت کريمه پوښتنه مي خني وکړه،دتعريض په دول چي دی پوی شي چي زه وږی يم حضرت ابوبکرپازمايه خبره پوی نه شو اويايي په کورکي څه شی نه وه کله چي هغه لاړحضرت عمرراغي له هغه څخه مي هم تعريضاپوښتنه وکړه هغه هم پوی نه شولاړ،په دي وخت کي نبي کريم راغي له هغه څخه مي هم دتعريض په دول پوښتنه وکړه هغه پوی شو راته ويي فرمايل:چي ابي هريره ماپسي راځه،نبي کريمﷺ چي کله کورته ورسيده پوښتنه يي وکړه چي په کورکي دخوراک څه شی شته؟ورته وويل شول چي هو:يوه پياله شودي شته،نبي کريمﷺ ماته وفرمايل چي ورشه اصحاب صفه ټول راوله چي هلته وه ياهم څلورسوه صحابه کرام رضي الله عنهم اوسيدل؛کذافي فتوحات الالهيه،مادخان سره وويل چي په يوه پياله شيدوبه څه وشي، لاږم

---

۱- وينبغي ايسمى كل واحد من الاكالين،فان سمي واحدمنهم حصل اصل السنة،قلت:هوخلاف ماعليه الجمهورمن انه سنة في حق كل واحد؛مرقاة المفاتيح ۸/۸۳-.

اصحاب صفه مې تول راوستل.رسول اللهﷺ وفرمایل:چې فلانکي ته دشیدوپیاله ورکره فلانکي ته یې ورکره په دې دول تولوصحابه وته هغه شودې ورسیدې اوتول ورباندې ماړه هم شول.بیارسول اللهﷺ ماته وفرمایل:چې اوس یې ته وڅښه، حضرت ابي هریره وایي چې بیالومړی ماهغه شودې وڅښلې نبي کریمﷺ راته وویل:نورې هم وڅښه بیامې له هغې پیالې څخه نورې شودې هم وڅښلې اوپه دریم ځل یې هم راباندې وڅښلې ماورته وویل چې بس ده ماخوست کاوه خوښي کریمﷺ هغه شودې ترهغه پورې په ماوڅښلې چې راباندې پوې شوچې زه موړشوم.[1] له دې حدیث څخه علماءاستدلال کوي چې میلمه ته به ست کوي څکه چې بعضې خلک بې زړه وې خوراک نشي کولای.

## دخوراک پرمهال خبرې کول:

خلکوکې عادت دی چې دخوراک پرمهال خبرې نه کوي خوښایي چې دخوراک په وخت کې خبرې وشي،څکه چې نبي کریمﷺ به دخوراک پرمهال خبرې کولې [2]اوزمونږ دفقهي حنفي په کتابونوکې هم لیکلي دي چې دخوراک پرمهال سکوت مکروه دی څکه چې دادمجوسیانوعادت دی.نوسنت اومستحب داده چې دخوراک په وخت کې خبرې وشي،که علماوې علمي بحثونه به کوي اوکه عام خلک وي ادبي خبرې به کوي دقازوراتوخبرې به نه کوي؛امام نووي ددې لپاره مستقل باب وضعه کړی اوطحطاوي على الدرالمختارکې هم دامسئله لیکل شویده.

## خوراک به په ښي لاس کیږي:

په اسلام کې داسې حکم دی چې خوراک به په ښي لاس باندې کیږي،په چپ لاس به یې نه کوي څکه چې شیطان په چپ لاس خوراک کوي.[3]خوکه څوک معذوروي بیاڅه باک نلري؛اصل سنت داده چې په ښي لاس خوراک وشي کني په چپ لاس هم نفس جوازلري.

---

[1]- عن ابي هريره قال:دخلت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فوجدلبنا في قدح فقال:ياباهرالحق باهل الصفة فادعهم الي فاتيتهم فدعوتهم فاقبلوافاستأذنوفاذن لهم فدخلوا-مشكاةالمصابيح ۲/۴۰۰-.

[2]- عن جابران النبي صلى الله عليه وسلم سأل اهله ادام فقالوا ماعندنا الاخل فدعى به فجعل يأكل منه ويقول نعم ادام الخل نعم ادام الخل-(الاذكارللنووي/۲۳۲) يكره السكوت حالة الاكل لانه تشبه باالمجوس ويتكلم باالمعروف وبكلمات الصالحين-ردالمحتار ۹/۵۶۲-. وطحطاوي على الدرالمختار ۴/۱۷۵-. مخرج حماسي.

[3]- عن عبدالله بن عمر ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:لاياكل احدكم بشماله ولايشرب بشماله فان الشيطان ياكل بشماله ويشرب بشماله-جامع الترمذي ۲/۲-.

## دپریوتي دودی حکم:

دخوراک پرمهال چي کومه دودی له چاڅخه پروځي چي عربي کي ورته سواقط ویل کیږي هغه به هم خوري.[1]خلکوکی مشهوره ده چي کله له چاڅخه ډودی ولویږي هغه هم خوري دوی وایي چي بیااولادښایسته راځي؛داخبره مایه کتابونوکی نده لیدلي خوداخبره په کتابونوکی شته چي دادحورو مهرګرځي؛علامه علي قاري په شرحه دعین العلم کي لیکلي چي دحورومهر همداسواقط وي اوبل داده چي الله تعالی بیادده اولاداحمق(بی عقل)نه پیداکوي اوپه رزق کي یي هم الله تعالی وسعت راولي.

## دپیسي ښبنلوشرعي حکم:

سره له دي چي پیسي داوسنی زماني اختراع ده خوپه متقدمینوکتابونوکی هم په دی اره لیکل شته؛علامه سیوطي په جامع الصغیرکي حدیث راوړي چي پیسیاني ډیري مه خوری،[2]ځکه چي مسلمان به له حدنه زیات خوراک نه کوي اوددی په واسطه هضمه راځي،په هغه زمانه کي یي دی ته جوارش ویلي؛ښه خبره داده چي یوڅوک به پیسي په دي نیت نه خوري چي خوراک زیات وکړي نفس خوراک یي جوازلري.

## له خوراک وروسته دعا:

ترخوراک وروسته دعاکول سنت ده،خوپه دي دعا کي لاسونه پورته کول له رسول اللهﷺ څخه ندي ثابت؛ډیري داسي نوري دعاګاني هم شته چي په هغوکي له رسول اللهﷺ څخه دلاسونوپورته کول ندی ثابت؛دیروکتابونوکي دامسئله لیکلي منهم میرقاة المفاتیح،[3]عون المعبود،بذل المجهود،طحطاوي علی مراقي الفلاح والکاشف عن حقائق السنن.دی تولوکتابونوکي لیکلي چي رفع الیدین بعد الاکل له رسول اللهﷺ څخه ندي ثابت؛خواسي هم ندي لیکل شوي چي پورته کول یي بدعت دي،بعضی علماوګانی ته بدعت ویلي ایاداخبره صحیح ده؟

---

[1] - عن جابران النبي صلی الله علیه وسلم قال:اذااکل احدکم طعامافسقط لقمة فلیمط مارابه منها ثم لیطعمها ولایدعهاللشیطان جامع الترمذي ۲/۲-.

[2] - قیل لعمر الاتتخذ لک جوارشاًقال:مایکون الجوارش؟قیل هو الهواضم یهضم الطعام فقال:سبحان الله ویأکل المسلم فوق الشبع- رواه البیهقي في الشعب الایمان رقم الحدیث ۵۶۸۶. وکتاب الکسب للامام محمد/۱۷۲. ونهایه لابن اثیر۱/۳۱۳-. مخرج حماسي.

[3] - وعندالنوم وبعدالاکل،وامثال ذالک ولم یرفع یدیه ولم یمسح بهماوجهه-میرقاة المفاتیح ۵/۱۳۲-.

له خوراک وروسته دعا کې دلاس پورته کول بدعت ندي،څکه یوحدیث شریف کې راحي عن مالک بن یسار قال:قال رسول اللهﷺ اذاسألتم الله فاسئلوه ببطون اکفکم ولاتسألوه بظهورها [۱] په دې حدیث شریف کې اذادعاموو ختونولپاره راخي،یعني کله چې تاسې له الله تعالی څخه غوښتنه کوی نوتاسې دخپلولاسونوپه بطونوباندې سوال کوي.داحدیث امام ابي داودپه خپل سنن کې روایت کړی،المنح المطلوبه کې هم داحدیث ذکرشویدی،امام نووي داحدیث په التحفة الزاکرین کتاب کې راوړی بیایي لیکلي چې اسنادهذالحدیث اسنادصحیح،امام احمدبن حنبل په خپل مسندکتاب العلل کې راوړی،علامه طبراني په خپلودوکتابو نومسندشامیین اومعجم الکبیرراوړی اوعلامه سیوطي هم داحدیث په فض الوعاءفي احادیث الرفع الیدین بعدالدعاءکې روایت کړی بیایي لیکلي چې اسناده صحیح.

همداډول حدیث له حضرت ابي بکرة څخه هم روایت شویدی چې:سلواالله ببطون اکفکم ولاتسالو بظهورها.رواه الطبراني في معجم الکبیروعلامه هیثمي في مجمع الزواندوایضاعلامه سیوطي فی فض الوعاء.[۲] نودلاسونوپورته کول له خوراک څخه وروسته دعاکې بدعت نه بلکه مباح دي.

## ددودی مچوکول:

آیاددودی مچوکول جوازلري؟په احادیثوکې ددودی مچوکول ندي ثابت،بواخي دومره ثبوت شته چې تاسې ددودی احترام کوي.خوعلماوددې په جوازباندې فتوی کړیده؛علامه شامي په تنقیح الفتاوی الحامدیه کې لیکلي،فتاوی تقي الدین السبوکي کې هم لیکلي اوعلامه سیوطي حاوي الفتاوی کې هم لیکلي دي چې ددودی مچوکل جوازلري.

اوبل داچې دودی به کوچنی کوچنی وي،علامه سیوطي جامع الصغیرکې یوحدیث راوړی چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي:چې دودی کوچنی کوچنی پخوی؛څکه چې الله تعالی برکت کې اچوي.[۳] خوداحدیث ضعیف ده؛علامه ابن حجرلیکلي چې په دې اړه مادیره پلټنه وکړه چې درسول اللهﷺ په زمانه کې څه ډول دودی پخیدلي غټې وې که کوچنی پاستي وه که دستکې؟له دې ضعیف حدیث پرته مې نور هیڅ هم پیدانکړل؛والله اعلم باالحال.

---

[۱] - سبق تخریجه.

[۲] - فض الوعاء في احادیث رفع الیدین باالدعاء۱-/۸۷. رقم الحدیث ۴۳.

[۳] - عن ابي الدرداء عن الرسول صلی الله علیه وسلم قال:قوتو طعامکم یبارک لکم فیه قال ابراهیم:سمعت بعض اهل العلم یفسره یقول تصغیر الارغفة قال البزار:لانعرفه روی متصلا الی بهذ الاسناد واسناده حسن من اسانید هل العلم مجمع الزوائد۵/۳۵-. والالی المصنوعه للسیوطي۲/۱۸۳-. مخرج حماسي.

# له دوډۍ څخه مخکې اووروسته مالګه خوړل:

بعضې خلک له ډوډۍ مخکې یاوروسته لږمالګه خوري آیاداشرعاجوازلري؟په دې اړوندعلامه سیوطي په اللالي المصنوعه في احادیث الموضوعه کې لیکلي او علامه فتني په تذکرة الموضوعات کې لیکلي چې دمالګې په اړوندکوم احادیث روایت شوي دېیلګې په ډول مالګه ددیرو ناروغیودواده اودا سې نور..داحدیثونه ندي صحیح،کشف الخفی دعلامه عجلوني اوالمقاصدالحسنه دعلامه سخاوي هم لیکلي چې داحدیثونه صحت نلري.

خوعلامه ابن حجرپه المطالب العالیه کې یوحدیث راوړی دحضرت علي کرم الله وجهه په روایت سره چې کله څوک ډوډۍ خوري ترهغه مخکې اووروسته دې لږمالګه وخوري.[1]علامه ابن حجرلیکلي دي چې داپول عمل سنت ده،اتحاف الخیره کتاب کې علامه بُسیري هم داحدیث راوړي خودی دواړوعلماولیکلي دي چې داحدیث ضعیف دی؛خوپه فضائلوداعمالوکې ضعیف احادیث هم داستدلال وړوي.زموږداحنافوپه ډیروکتابونوکې لیکلي دي چې له ډوډۍ مخکې اووروسته دمالګې خوراک جوازلري؛کذافي احیاءالعلوم وفتاوی تاترخانیه.

# په یوه ځای ډوډۍ خوړلوکې برکت وي:

په یوه ځای باندې خوراک کول سنت ده،له رسول اللهﷺ څخه چاپوښتنه وکړه چې زموږپه خوراک کې برکت نشته؛نبي کریمﷺ ورته وفرمایل په یوه ځای باندې ډوډۍ خوري الله تعالی به برکت کې واچوي.[2]له ډیرواحادیثوڅخه داسې معلومیږي چې په یوه ځای باندې ډوډۍ خوړل سنت دي؛علامه زبیدي اتحاف کې لیکلي اوعلامه غزالي احیاءالعلوم کې لیکلي چې په کومه کاسه چې لاسونه ډیرکته اوپورته کیږي په هغې کې ډیربرکت وي.

خلکوکې عادت دی چې خپل میلمه ته هریو یوه مړی ورکوي داهم سنت ده؛دنبي کریمﷺ په زمانه کې به چې کوم کورته میلمه ورغی،کله به یې چې خوراک کاوه بیابه تولویوهیوه مړی هغه میلمه ته ورکوله؛کذافي جامع الصغیرللعلامه سیوطي وفیض القدیرللعلامه مناوی وایضافتاوی البزازیه

---

[1]- عن علي قال:قال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا أكلت فابدأبالملح،وختم بالملح-المطالب العاليه٥/٧٠١٠- رقم الحديث ٢٣٩٠.

[2]- عن عمربن الخطاب قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كلواجميعاولاتفرقوافان البركة مع الجماعة-مشكاة المصابيح٣٧٠/٢-.

نمک داني چي عربي کي ورته ملکحه وايي دابه هم په دودی برسیره نردي،حکه چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: واکرموالخبز.[۱] اوکاسه به هم له پاسه په دودی نردي،علماودی نه مکروه ویلي.اولاسونه به هم په دودی باندی نه پاکوي، خوپه دي شرط دلاسونوپاکول به دودي باندي جوازلري چي هغه دودی به بیاخوري.اوبل داچي ددودی مینځ وخوري اوشوندی پریږدي داهم جوازنلري،اوکه بل داسي څوک وي چي هغه ددودی شوندی خوري بیاځه باک نلري

# دزاولوزودیلوشرعي حکم:

په دي اړوندیوحدیث شریف معجم الکبیرکي علامه طبراني راوړی اومجمع الزوائد کي علامه هیثمي روایت کریدی چي الله تعالی ترهغه وخته دسدوم کلی هلاک نکرچي دوی زاولی وردویلی.[۲]یعني دادزاولوزدویل یوبدعمل وه ځکه الله تعالی دوی هلاک کړل؛خوداحدیث ضعیف ده،علامه هیثمي لیکلي چي ددی حدیث په سندکي یوسړی متروک ده؛نوحدیث چي ضعیف وي بیاداستدلال ورنه ګرځي،ځکه چي ضعیف حدیث په احکاموکي حجت نه جوړیږي.

علامه ابن الهمام فتح القدیرکي لیکلي دي چي دزاولوزودیل دبنځولپاره مستحب دي،اودنرانولپاره مکروه دي؛سره له دي چي خیني علماءیي دنرانولپاره هم جائزي بولي؛خوصحیح خبره داده چي دنرانولپاره دزاولوزدویل مکروه تنزیهي دي؛کذافي فتاوی النابلوسیه ونهایة المراد.

بل په مونږاحنافوکي علامه شرنبلالي امدادالفتاح دروژي په بحث کي لیکلي دي چي دبنځولپاره دزاولوزدویل جوازلري خودنرانولپاره که عذروي بیاجوازلري اوکه عذرنه وي بیاجوازنلري؛ اوالمحیط البرهاني علی مذهب النعماني کتاب الاستحسان کي لیکلي دي چي دبنځولپاره دزاولوزدویل جوازلري اودنرانولپاره هم جوازلري خوپه دي شرط چي تقي به نه وربادی کوي.

۱- عن عائشة ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:أكرموالخبز رواه الحاكم في المستدرک على الصحيحين۴/۱۲۲-وايضارواه امام اصفهاني في حلية الاولياء۵/۲۴۶-.

۲- عن ابن عباس قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ماهلكت سدوم وماحولهامن القرى حتى استاكوابالمساويک ومضغواالعلک في المجالس مجمع الزوائد۵/۴۶-رقم الحديث ۸۰۵۴.

## دپریوتي میوې دخوړلوشرعي حکم:

کتابونوکې لیکلي دي چې کومه میوه په خمکه باندې پریوتي وي،دابه له دوحالتونوڅخه خالي نه وي؛یابه دامیوه ژرخرابیونکې وي لکه:توت،زردالواوداسې نور..اویابه دامیوه ژرنه خرابیږي لکه:بادام،چهارمغزاوداسې نور..بیاحکم دادی چې یابه داسیمه بازاري وي اویابه اطرافي وي،که ښاري سیمه وي بیاخوک داحق نلري چې له ونوڅخه پریوتي میوه راواخلي؛هغه که ژرخرابیدونکې وي اوکه ژرخرابیدونکې نه وي،ترڅوچې دمالک اجازه نه وي دهغې میوې خوړل شرعاجوازنلري.

اوکه اطرافي سیمه وي هلته بیادپریوتي میوې خوړل جوازلري،خوهغه میوه چې هغه ژرخرابیدونکې وي که دمالک اجازه وي اوکه نه وي؛خوکه داسې میوې وي چې هغه زرنه خرابیږي،هلته بیاحکم داسې دی چې که دمالک اجازه وي بیایې خوراک جائزدي اوکه اجازه نه وي بیایې خوراک شرعاجوازنلري.

## دحیواناتوترمخ به خوراک نه کوې:

دعلم فلسفې علماولیکلي دي چې ښایي دحیواناتوترمخ خوراک ونکړای شي،حکه چې دحیواناتوله سترګوڅخه یودول جراثیم صادریږي،کله چې هغه جراثیم په دوډۍباندې ولویږي بیاهغه خوړونکې ناروغیږي؛نودحیواناتوترمخ خوراک کول ناوړه اغیزه لري.

## په ولاړه اوبه څښل:

په دې اړه بعضې احادیث دمنعې راغلي اوبعضې دجواز،بیاپه دې مسئله کې دعلماوګڼ شمیرمذهبونه دي،یوابن حزم الظاهري مذهب دی،هغه وایي:په ولاړه اوبه څښل حرام دي.په دې اړه بل مذهب داسې دی چې کوم احادیث دمنعې دي هغه منسوخ دي دجوازاحادیث یې ناسخ دي.اوپه دې اړه بل مذهب داسې دی چې دجوازحدیثونه منسوخ دي اودنه جوازحدیثونه یې ناسخ دي.

اوس حکم داسې دی چې دنهي احادیث چې په هغوکې رسول اللهﷺ په ولاړه له اوبوڅښلوڅخه منعه کړې هغه دکراهیت تنزیهي لپاره دي؛اوپه ولاړه چې رسول اللهﷺ اوبه څښلي هغه دنفس جوازلپاره دي؛ نوکراهیت تنزیهي له نفس جوازسره یوځای کیدلای شي؛چې همدازمونږداکثرواحنافوراېه ده؛کذاقال علامه زکریافي اوجزالمسالک.دعلامه سیوطي،علامه نووي اوعلامه ابن بطال هم دغه رایه ده

دزمزم داوبواوله اوداسه څخه دپاتې شوواوبوحانته حکم دي،بعضې علماوايي چې ددې دوازو اوبوحکم داده چې دابه په ولاړه څښي،خوصحيح خبره داده چې دزمزم داوبواوله اواسه څخه چې کومې اوبه پاتې شي ددې په ولاړه څښلوکې کراهيت نشته،له دې پرته دنوروواوبوپه ولاړه باندې څښل مکروه تنزيهي دي.

خيني خلک چې کله دزمزم اوبه څښي بياورته درېږي،دوی فکرکوي چې ددې اوبوپه ولاړه باندې څښل مستحب دي؛خوپه ولاړه باندې دزمزم اوبه څښل مستحب نه بلکه مباح المطلق دي؛که څوک اعتراض وکړي چې رسول اللهﷺ ولې په ولاړه څښلي؟مونږورته خواب کوچې هلته ازدحام وه دناستې ځای نه وه،څکه نبي کريمﷺ په ولاړې څښلي دي؛نودزمزم اوبه په ولاړه څښل مستحب ندي نفس جوازلري؛اوله اوداسه څخه چې کومې اوبه پاتې شي دهغوهم دغه حکم دی؛سره له دې چې بعضوعلماوليکلي دي چې ددې دواړواوبوپه ولاړه څښل مستحب دي داهم يوه رايه ده خودتحقيق رايه هغه ده چې تاسې ته بيان شوه.

# دنکاح بيان.

په ودونوکي ديراوهل سنت اومستحب عمل دی،دامسئله په احاديثوکي هم ثبوت لري اوزمونږدفقهې حنفي په کتابونوکي هم ليکلې ده؛يوه حديث شريف کي راځي نبي کريمﷺ فرمايلي دي: واعلنوابالدف.[1]يعني تاسې په ديراباندې اعلان وکړئ.

بل حديث شريف کې راځي چې نبي کريمﷺ فرمايلي دي:چې دزنا اوسهي نکاح ترمينځ توپيرپه ديراوهلوکې دي،څکه چې زناپه پټه سره کيږي اوپه سهي نکاح کې ديرا وهل کيږي.[2]

په دې اره دبعضوعلماورايه داده چې ديراوهل په ودونوکي سنت ده،بعضې علماوايي چې ديراوهل په ودونوکي مستحب دي اوخيني نورعلماوايي چې نفس جوازلري؛خوپه دې شرط چې په ديراکې به شرنگاني نه وي اودښخواوازبه نه ورسره پورته کيږي،که ښځې سندرې ورسره وايي هم څه باک نلري خوښځې به په داسې محفوظ ځای کې وي چې غربې سرې نه اوري؛ په اوس وخت کې

---

[1] - عن عائشة قالت:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اعلنواهذاالنكاح واجعلوه في المساجد واضربوه عليه بالدف جامع الترمذي۱/۲۰۷ .

[2] - عن محمدبن حاطب قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فصل مابين الحلال والحرام الدف جامع الترمذي۱/۲۰۷ .

دادواره شرطونه به مراعت کیږي؛زمونږدفقهي حنفي په ډیروکتابونوکي دامسئله لیکلې ښوي ردالمحتار ،[1] فتاوی الهندیه والبحر الرئق.

## دنکاح خطبه:

په نکاح کي خطبه ویل سنت ده،که څوک یې نه وایي هم څه پروانلري خونکاح به یې بی برکته وي.اوپه خطبه کي تلاوت کول یادرودویل هم جوازلري،خطبه وړاندی صحیح کیږي.

بل داچي دخطبي لوستل له ایجاب اوقبول څخه وړاندی مستحب دي،زمونږپه هیوادکي اکثره داسې عادت دی چي خطبه له ایجاب اوقبول څخه وروسته وایی خوغوره داده چي مخکي ولوستل شي؛کذافي ردالمحتاروفتاوی الهندیه والبحر الرائق.

اوبل داچي تولي خطبي لوستل په ولاړې مستحب دي،په ناستي هم نفس جوازلري خوغوره داده چي په ولاړې وویل شي؛کذافي فتاوای حقانیه،مجموعة الفتاوی وامدادالفتاوی.

## دنکاح ترلوپرمهال دجیلی دنوم یادونه

که جلی په مجلس کي موجوده وه بیایي دنوم یادولوته څه ارتیانشته څکه چي په اشاره سره یې هم تعین راځي.اوکه جلی په مجلس کي نه وي بیاغوره داده چي نوم یې ذکرشي.

خلکوکي عادت دی چي کله شاهدان جیلي ته ورولیږي،بیاکله چي هغوی بیرته راشي نوحیني پوښتنې ورڅخه کوي دبیلګی په توګه:له کوم خایڅخه راغلی؟بیاهغوی ځواب ورکوي چي له ښهروکالته اوداسی نور..دی دول خبروته هیڅ ارتیانشته یواځي دومره پوښتنه دې ورڅخه وکړي چي:دځپل نفس اومهروکیل یې څوک ونیوه؟هغه به ووایي:فلانکی،دویم شاهدته دې ووایی:چي ته هم په دی باندی اقرارکوی؟هغه به ووایي:هو،له دې څخه زیاتوخبروته هیڅ ارتیانشته.

اوبل داچي دایجاب اوقبول یوځل ویل هم کافي دي،خودری ځلی تکراریی مستحب ده؛علامه اشرف علي لیکلي دي چي یوځل ویل یې ضروري دي اودری ځلی ویل یې مستحب دی اوپه مستحبوباندی التزام کول بدعت دي؛نوښایي چي کله یوځل، کله دوه ځلی اوکله هم دری ځلی وویل شي.

---

[1] - وعن الحسن:لابأس باالدف في العرس ليشتهروفيالسراجيه:هذا اذالم يكن له جلاجل ولم يضرب على هيئته الطرب،ردالمحتار ٦-٩/٥٧

# دنکاح خط لیکل:

په اوسني دورکې بعضي خلک نکاح خت لیکي،په خانګړي دول په ساري سموکي داړواج نېردي اباندې لیکل شرعا جوازلري؟دنکاح خط لیکل کوم ضروري امرندی حکه چې درسول اللهﷺ ، صحابه واوتابعینو په زمانه کې ددی لیکل نه وه؛ نوپه اسلام کې څه اصل نلري؛ خومتاخرینو علماولیکلي دي چې لیکل يې ښه دي،ځکه چې اوس ضرورتونه راپیداشويدي؛ كذافي البحر الرائق للعلامه ابن نُجیم ومجمع الفتاوی للعلامه رفعت قاسمي.

## په زوم باندې شریني شیندل:

دنکاح ترتړلووروسته په زوم باندې شریني شیندل سنت دي،په دې اړه امام طبراني په معجم الکبیرکې یوحدیث راوړی چې یوه ورځ رسول اللهﷺ یوه واده ته تشریف یووړ ،کله یې چې خطبه وویلې اونکاح وتړل شوه،په دې وخت کې په قابونوکي بادام اوخرما راوړل شول نبي کریمﷺ هغه په زوم باندې وشیندل،مجلس کې ډیرصحابه موجودوه هیڅ چاهم نه تولول، رسول اللهﷺ وفرمایل:ولې يې نه تولوي؟صحابه و وویل:یارسول اللهﷺ تاموږ له چورڅخه منعه کړي یو؛نبي کریم وفرمایل:هغه مې په جهادکې له چورڅخه منعه کړي یاست،کله چې په جهادکې غنیمتونه ونیول شي هغه به وراندې له ویش څخه نه چورکوی.[1]له دې حدیث څخه علماءاستدلال کوي چې نثردسکر، لوزاوخرماپه زوم باندې سنت ده،داحدیث علامه هیثمي مجمع الزوائد کې هم راوړي اوعلامه ظفراحمداعلاءالسنن کې هم نقل کړیدی.

اوبل داچې اوس مهال خلکوکې عادت دی چې کله نکاح وتړی تر هغه وروسته یوڅه مقدارشریني چې په پاکټونوکي تړل شوی وي خلکوته ورکوي ایاپه دې باندې سنت اداکیږي؟په دې اړه علماولیکلي دي چې ورکول یې څه پروانلري خوسنت چې هغه نثرده هغه نه ورباندې اداکیږي.اوپه زوم باندې دروپیوشیندل هم جوازلري؛زموږداحنافودمذهب په ډیروکتابونوکې دامسئله لیکلې ده؛کذافي محیط البرهاني وفتاوی الخیریه.

---

[1]- عن معاذبن جبل انه شهداملاک رجل من الانصارمع رسول الله فخطب رسول الله وانکح الانصاري....وأقبلت السلال فيهاالفاكهة والسكرفنثرعليهم فامسک القوم فلم ينتهبوافقال:رسول الله مالكم الحلم الاتنتهبون؟قالوايارسول الله انک نهيتناعن النهبه يوم كنا وكذافقال:انمانهيتكم عن النهبة العساكر،ولم انهكم عن النهبة الولائم-مجمع الزوائد-۴/۲۹۰-رقم الحديث ۷۵۲۴.

# آیاملاصاحب ته په نکاح تړلو اجرت جائزدی؟

کله چې دجوماتونو ملاامام نکاح وتړی بیاهغه دنکاح والاخلک ملاصاحب ته یوڅه مقدار روپی ورکوي ایادارو پی ورکول شرعاجوازلري؟علامه اشرف علي تهانوي په خپلودوکتابونوبو ادرالنوادر اوامداد الفتاوی کې همدارنګه مفتي محمد فرید په فتاوی فریدیه کې په دی اړه مکمل تحقیق کړی چې حاصل یې په دی ډول دی چې اجره اخیستل دملاصاحب لپاره دنکاح تړلوپه مقابل کې بلکل جوازلري اوکومې روپی چې ده ورکول کیږي هغه دده لپاره حلالې دي.

## دزفاف په شپه اوبه څوړول:

دغیرمقلدینولوی مقتدا علامه ناصرالدین البانی یوکتاب جوړکری اداب الزفاف هلته یې یوحدیث شریف راوړی چې دهغه حدیث نسبت یې مسنداحمد،سنن الکبری اوحلیة الاولیاءته کړیدی؛هغه حدیث په دې ډول ده چې اسماڼه بنت عمیس صحابیه وایي:کله یې چې عائشه صدیقه په لیلة الزفاف باندی نبي کریمﷺ ته وروستل شوه،هلته نوري ډیرې ښځې هم ناستې وې په یوه جام کې یې اوبه یاخپنورواېتونوکی راخې چې شودې څوړې کړی وی،ترټولودمخه له هغه جام څخه نبي کریمﷺ اوبه وڅښلې بیایې هغه جام ماته ونیوه ماحضرت عائشې ته وویل:چې ته یې له رسول اللهﷺ څخه واخله،بیاهغه جام حضرت عائشې له رسول اللهﷺ څخه واخیست هغې هم اوبه ورڅخه وڅښلې بیرته یې رسول اللهﷺ ته ورکړ اسماءه وایي چې مانبي کریمﷺ ته وویل چې ته اوس بیاتړاوبه ورڅخه وڅښه،نبي کریمﷺ بیاله هغه جام څخه اوبه وڅښلې بیاهغه جام ماراواخیست دجام په کوم ځای باندې چې نبي کریمﷺ خپلې شوندې مبارکې ایښې وی له هغه ځای څخه ماهم اوبه وڅښلې،بیاپه دې مجلس کې چې څومره ښځې وی هغوټولوله دی جام څخه اوبه وڅښلې.[1]نوداوبوڅوړول په دې شپه باندې سنت دي.

اوبل په دې شپه باندی سنت اومستحب داده چې وارله مخه به له خپلې معامله نه پیل کوي یوڅه تلاعب به کوي؛علماولیکلي دي چې کله نرکفترله ښځې کفترې سره معامله کوي وارله مخه معامله نه پیل کوي یوځل ښه ورڅخه تاویږي خان یې هم ښه ښېرکړی وي،همدارنګه چرګ چې کله له چرګې

[1] - عن اسماءبنت عميس قالت كنت صاحبة عائشة التي هيأتهاوادخلتهاعلى رسول الله صلى الله عليه سلم ومعي نسوة قالت:فوالله ماوجدناعنده قري الاقدحا من لبن قالت:فشرب منه ثم ناوله عائشة فاستحيت الجاريه فقلنالاتردي يدرسول الله خذي منه فاخذته على حياء فشربت منه- مسنداحمد٢٥/٤٦٣- رقم الحديث٢٧٤٧١.

سره معامله کوي یوځل بنه ورځخه تاویږي بیاترهغه وروسته جماع ورسره کوي،انسان به هم لومړي تلاعب کوي ترهغه وروسته به جماع کوي.

اوبل داچي علماءدعلم طب وايي چي دجماع لپاره دسهارله لمانځه څخه وروسته بنه مناسب وخت دي،ځکه چي په دې وخت کي انسان بنه په راحت باندی وي؛اوچي یوځوک بنه په راحت باندی وي اوصحت یي هم برابروي بیايي چي هروخت وغواړي کولای یي شي.

## داخترونوترمینځ نکاح:

بعضي خلک په دی عقیده دي چي داخترونوترمینځ نکاح کول ناوړه اغیزه لري، دادجاهلیت عقیده ده دنبي کریمﷺ په زمانه کي هم داډول عقیده موجوده وه؛داخبره بلکل غلطه ده ځکه چي داخترونوترمینځ نکاح کول سنت ده؛دحضرت عائشي ام المؤمنین نکاح دشوال په میاشت کي ترل شوې وه.

اوځیني خلک وايي چي دمازدیګراومابنام ترمینځ نکاح ترل ندي صحیح،داهم یوه مردوده عقیده ده؛علامه اشرف علي تهانوي په اغلاط العوام کي لیکلي دي چي ددواخترونوترمینځ،همدارنګه دمازدیګراومابنام ترمینځ نکاح ترل بلکل جوازلري.

## دحضرت آدمؑ نکاح چاترلې؟:

داچاته نده معلومه چي دحضرت آدمؑ نکاح چاترلي ده،خوداخبره په کتابونوکي شته چي حضرت آدمؑ ویده وه،کله چي له خوب څخه راویښ شو،ویي لیدل چي له چپي پوښتی څخه یی بي بي حواپیداشویده؛آدمؑ اراده وکړه چي خپل لاس ورنږدي کړي په دی وخت کي ملائکوغروربادی وکړچي ترڅودي مهرنه وي وکړی لاس نشي ورنږدي کولای؛آدمؑ وویل:مهریي څه شی ده؟پرښتوورته وویل په نبي کریمﷺ باندي درودویل؛حضرت آدمؑ په نبي کریمﷺ باندي دردووویلي هغه یي مهرشو؛کذافي التفسیرصاوي،جمل،سلوة الاحزان،القول البدیع وایضابدائع الظهور.خوداخبره هیڅ چاته نده معلومه اونه کتابونوکي لیکل شوي چي دحضرت آدمؑ نکاح چاترلي.

# لاسونه سره کول:

خلکوکي عادت دی چي دزوم لاس په نکریزوباندي سورکوي،خوداپه شرعه کی جوازلري،مطلق دنرلپاره دلاسونوسره کول حرام دي؛خودښځي لپاره دلاسونوسره کول مستحب دي،نه بي کریم (ص) سره یوی ښځي بیعت کاوه هغی حپل لاسونه په نکریزوباندي نه وه سره کړي،نبي کریم (ص) ورته وفرمایل.چي زه نه پوهیږم چي دادښځي لاس دی که دکوم درنده حیوان لاس دی [1] الهدی حدیث څخه علماءاستدلال کوي چي ښځی به خپل لاسونه سره کوي خپل نوکان به هم ورسره سره کوي

اوایا ښځي به حپل لاسونه په ساده دول سره کوي اوکه نقش به هم پکي جوړوي؟په دی اره امام احمدبن حنبل کتاب الورع کی لیکلي دي چي دښځولپاره په لاسونوکی نقش جوړول ناروادی. کنزالعمال کی هم په دی اره احادیث روایت شویدي.خو المطالب العالیه کی علامه ابن حجربوحدیث راوری چي کله ښځي خپل لاسونه سره کوي نونقش به هم پکی جوړوي.[2]کوم حدیثونه چي ددی په منعه کي راغلي هغه موقوف دي اوالمطالب العلیه کی چي کوم حدیث روایت شویدی هغه مرفوع حدیث دی؛زمایه خپله باندی فتوی داده چي دښځي لپاره په نکریزوباندی نقش جوړول هم جوازلري.دیادوني ورده چي دضرورت پرمهال دسریولپاره هم دنکریزواستعمال جائزدی.

# دمهربیان:

زمونږداحنافوپه مذهب دمهرکمه اندازه لس درهمه ده،ددي لپاره دلیل داحدیث درسول الله ﷺ دی چي:لامهر اقل من عشردراهم.[3]ددی حدیث په اره علامه بغوي لیکلي چي داحدیث صحیح دی،حافظ ابن حجرتلخیص الحبیرکي لیکلي دي چي داحدیث حسن دی اوعلامه ظفراحمداعلاءالسنن کی لیکلي دي چي داحدیث داستدلال وردی.

که څوک اعتراض وکړي چي په احادیثوکي خوداسي هم راغلي دي چي به مهرکي بواحي څپلی ورکرل شویدی؟ددی لپاره زمونږاحنافوکړ شمیرځوابونه کړیدي؛لنده داچي مهربه له لسودرهموڅخه کم نه وي.اوس دالس درهمه په متعارفوروپیو څومره کیږي؟هره شرعی روپی لس قیراته

---

[1] - عن عائشة ان هندابنت عتبه قالت:یانبي الله بایعني قال:لاابایعک حتی تغیري کفیک کانهماکفاسبع-سنن ابي داود۲/۵۷۴-.

۲- عن جدته قالت:تان النبي صلی الله علیه وسلم دخل علیهاوهي تخضب فقال:هلایام فلان هکذاعم طهرکفه بعني النقش-المطالب العالیه۱۰/۳۱۹-رقم الحدیث ۲۲۲۶.

[3] - رواه البیهقي في السنته الکبری۷/۱۳۳-. ورواه دارقطني في السنته۳/۲۲۵-.

ده،اویوقیرات پنځه اوربشي کیږي،نوهره روپی اویااوربشي ده؛اویومثقال سل اوربشي ده همدارنګه یوګرام په پخوانی اصطلاح څلورنیمی ماشي ده،چې اوس له ماشي څخه تعبیربه ګرام باندی کیږی؛ لنده داچي لس درهمه یالس شرعي روپی وه مثقاله کیږي اویومثقال څلورنیم ګرامه کیږی چې اوس په معاصره نړی کې سره اوسپین زرپه ګرام باندی پلورل کیږي.

بیابه دسپینوزرودګرام قیمت معلوم کړودبیلګي په توګه:دیوه ګرام سپینوزروقیمت اتیاافغانی ده، وه څلي څلورنیم یودیرش نیم ګرامه کیږي چې په اتیاروپی شي(۲۴۲۰)افغانی کیږي دیادونی وړده چې هرکال دسپینوزروقیمت فرق کوي سږکال چې(۱۳۹۱)لمریزکال دی که څوک نکاح کوي نومهربه(۲۵۲۰)افغانیوڅخه کم نه ورکوي،چې دادمهرترټولوکمه اندازه ده پورته چې څومره وي هغومره جوازلري.

حضرت عمررضی الله عنه یوه ورځ په منبرباندې ناست وه خلکوته یې وعظ کاوه،ویې ویل:چې تردې وروسته به څوک له څلوروسودرهموڅخه زیات مهر نه ورکوي؛کله چې له منبرڅخه رابکته شو یوې زرې ښځې داآیت کریمه ورته تلاوت کړچې الله تعالی فرمایلي دي{ وَإِنْ أَرَدتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا }[1]

حضرت عمربیرته منبرته وختو خلکوته یې وویل:چې زه غلط شوی یم دمهرتحدیدپه اسلام کې نشته؛خوغوره داده چې ایسرمؤنة به وي،زمونږدفقهي حنفي په دیرزکتابونوکې بابونه کیښودل شوېدی چې برکتي ناوی هغه ده چې تکلیف اومهریې لږوي،کنې مهرچې څومره زیات وي بیاهم جوازلري؛ابوحوددامتعارف ولوردی داخونه سره په شرعه کې جوازلري،په دې اره ښیرتحقیق وراندی راتلونکی دي.

اوځینی علماوایي چې فاطمي مهرمستحب دي،دبي بي فاطمي مهر (۴۸۰)درهمه یابه څیټور وایبونوکې راځي چې(۵۰۰) درهمه وه،چې اوس یې په افغانیوباندي قیمت تقریبا(۱۲۵۰۰۰)کیږي

---

[1] - سورة النساء/۲۰.

# ولورحرام دى:

آيادلولوراخيستل په اسلام کې جوازلري؟په دې اروندبخاري شريف اوسنن ابن ماجه کې يوحديث راځي چې نبي کريمﷺ فرمايلي دي:چې الله تعالى وايي:زه به دقيامت په ورځ باندې له دريوکسانوسره مخاصمه کوم اوزه به په مخاصمه کې غلبه هم ورباندې حاصلوم،يوله دې دريوکسانوڅخه هغه سړى دى چې بيعه دحر (اصيل)کوي.[1]

اوس وخت چې يوڅوک خپله لورياخورچاته ورکوي اوپه مقابل کې روپۍ اخلي داحرڅول دي که نه شي؟يواځې دخرڅولو نوم نه ورباندې ږدي نور هغه بيعه دحرده؛اوس چې يوڅوک چاته ورشي ورته ووايي:چې دوستي ياخپلوي راسره وکړه هغه،ورته ووايي چې سمه ده زه به ليست درته وليکم بيايې په هغه ليست کې پنځه لکه روپۍ اونورقيمتي شيان ليکلي وي، آيادغه پنځه لکه روپۍ دڅه په مقابل کې دي؟داخومهرهم نشي کيدلاى ځکه مهريواځې دجيلۍ حق دي،داپنځه لکه روپۍ خوپلاردخپل خان لپاره اخلي؛له دې څخه معلومه شوه چې داپنځه لکه روپۍ خالص دجيلۍ په مقابل کې دي؛آيادابيعه دحرنده؟تاسې له له خپل خان سره قضاوت وکړئ؛بعضي خلک ددې لپاره دليل وراندې کوي چې په لورمې مصرف کريدى،داخوڅه شرعي دليل نشي کيدلاى.

اوځيني خلک وايي:چې ديرملايان په خپلولورانوباندې روپۍ اخلي،که ناروا وى نوولې هغوى په خپلولورانوباندې روپۍ اخيستلې؟مونږورته خواب کو چې:نحن لانعرف الحق باالرجال ولکن نعرف الرجال باالحق.مونږحق په سړيوباندې نه پيژنو،سړي په حق باندې پيژنو.اوزمونږداحنافودمذهب مشهورکتاب ردالمحتارکې ليکلي دي چې که زوم دخپل خسرکورته په خپله خوښه باندې کوم شى ورووړي،ددې خوړل حرام دي اوکه خسرورڅخه غوښتي وي هغه خوپه طريقه اولى سره حرام دي.

دياودني ورده چې کله زوم له خپل خسرڅخه واده وکړي ترهغه وروسته زوم کولاى شي چې په اسلامي محاکموکې په خپل خسرباندې دعوه وکړي چې له ماڅخه يې په ناحقه باندې روپۍ اخيستي دي؛نودلته به داسلامي محکمې قاضي تولې هغه روپۍ اخلي کومې چې خسرله زوم څخه اخيستي دي؛همدارنګه دوريژو،غوزيواونوروشيانوتاوان به هم له خسرڅخه اخلي اوزوم ته به يې ورکوي؛

---

[1]- عن ابي هريره عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:قال الله ثلاثة انا خصمهم يوم القيمة رجل اعطى بي ثم غدر ورجل باع حرافاكل ثمنه ورجل استأجراجيرافاستوفى منه ولم يعط اجره-صحيح البخاري ۱/۲۹۷-.

کذافي ردالمحتار للعلامه شامي،[۱] وطحطاوي على الدرالمختار کتاب الحظر والاباحة،وفتاوی الهندیه وایضاالفقه الحنفي في ثوبه الجدید.

اوبل جهازده پلارچي دخپلي لورلپاره کوم شی اخلي دی ته جهازویل کیږي،چي دابه احادیثوکی هم ثبوت لري،سنن النسایي کی ددی لپاره خانګری باب ذکرکریدی(باب جهاز الرجل ابنته)هلته یی حدیث راوړی چي کله رسول الله ﷺ بي بي فاطمه ودوله یوه کمپله،یوه توشکه اویوبالښت یی هغی ته په جهازکي ورکړل.[۲] همدارنګه دوه ژرندي وي کیدلای شي چي دوه به نه وي دژرندي دوه پلونه به وه اودوه مشکه وه چي اوبه پکي راوړل کیدلي.اوس هم که پلارخپلي لورته له خپل خان څخه څه شی ورکوي نوداپه اسلام کی ثابت عمل دي.اوداجهازدمیره حق وي اوکه دښځي؟اصل کي یی پلارخپلی لورته ورکوي نوحق هم ښځي دی.

## دجیلی په بدي کي ورکول:

بعضوخلکوکي عادت دی چي په بدي کي جینکی ورکوي آیاداشرعاجوازلري؟داپه اسلام لویه ګناه ده،په بدي کي دجنکیوورکول په شرعه کي بلکل جوازنلري؛په یوه حدیث شریف کي راخي چي خنساءبنت خدام الانصاریه کونده وه، پلاریي چاته په نکاح باندي ورکړې وه،خودديٰ هغه میړه نه وه خوښ رسول الله ﷺ ته راغله ورته ویي ویل چي دامیره زه نه کوم؛رسول الله ﷺ ورته وفرمایل تالره اختیارده بیاهغه نکاح بیرته فسخه شوه.[۳]

یوبل حدیث په سنن الکبری دامام بیهقي کي روایت شویدی،ابوداوداومسنددامام احمدبن حنبل کي هم شته چي نبي کریم ﷺ ته یوه جیلي راغله،پلاریي چاته په نکاح باندي ورکړې وه،خودديٰ جیلیٰهغه میړه نه وه خوښ نبي کریم ﷺ ته یي وویل چي زه له هغه سره ژوندکول نه غوارم نبي کریم ﷺ هغی ته هم اختیارورکړ.[۴] داحدیثونه دعلم احادیثوپه دیروکتابونوکي روایت شویدي پیغله هم ذکرشوی اوکونده هم ذکرشویده چي دوی له خپلوخاوندانوسره ژوندنه غوښت نورسول الله ﷺ ددوی نکاح

---

۱- بان ابی ان یسلمها اخوهااونحوه حتی یاخذشیا،وکذالوابی ان یزوجهافللزوج الاستردادقائماوهالکا لانه رشوة-ردالمحتار ۲/۳۰۵-.

۲- عن علی قال:جهزرسول الله صلی الله علیه وسلم فاطمه في خمیل،وقربة،ووسادة ادم حشوهااذخر-السنن الکبری للنسائی۵/۲۴۳-. رقم الحدیث ۵۵۴۶.

۳- عن خنساءبنت خدام الانصاریه ان اباهازوجهاوهي ثیب فکرهت ذالک فجاءت رسول الله صلی الله علیه وسلم فذکرت ذالک له فردنکاحها سنن ابي داود۱/۲۸۶-.

۴- عن ابن عباس ان جاریه بکرا اتت النبي صلی الله علیه وسلم فذکرت ان اباهازوجها وهي کارهة فخیرها النبي صلی الله علیه وسلم سنن ابي داود ۱/۲۸۵.

فسخه کړله،نوکله چې په بدې کې څوک جېلی ورکوي دلته خوېودجېلی خوښه نه وي،بل داچې ددښمن په کورکی بې ورکوي هغوی بیادون دول ظلمونه ورباندی کوي اوبل داچې قاتل بل چاکړی وي بناېي چې هغه قاتل بې جسېره وکلي،داچې بوه معصومه جېلی دهغه په بدله کې ورکول کېږي داد جاهلیت دزمانې دود دی،دادول عمل په اسلام کې ناروا ده،شرعا جوازنلري.

دېرخلی غربیان هم په موږ نه وي ملامت چې وايي:په افغانستان کې دبشرحقوق نه مراعت کېږي،که څوک وايي چې داصلحه ده،هيڅ کله مونږدی دول عمل ته صلحه نشوويلای،صلحه خوبه له شرعی سره موافقه وي،داخوصراحة له شرعی سره نکرده،په شرعه کې دادول عمل ناجائز اوحرام دی،کذافي فتاوی حقانیه.

اوبعضي خلک خپلی لوراني دروپیوپه مقابل کې بومشرسري ته ودوي،وايي چې خه خان ده روپی راکوي،چې داه له خپل اولادسره لوی ظلم دی،که بوه حوان ته څوک ووايي چې هغه فلانکی زړه ښخه به درته په نکاح کړو،خوان به داخبره ورسره ومني؟جېلی هم نفس لري له دی سره هم دادول عمل کول شرعا جوازنلري.

## دجېلی دوه ولیان:

که دجېلی دوه ولیان وي دمثال په دول دوه ورونه یې وي،بووروروداجیلی په نکاح ورکړي،بل وروروايي چې زه بې نه ورکوم په دې صورت کې به دچاخبری ته ترجیح وي؟زمونږداحنافوپه فتاوی هندیه اوبحرالرائق کې لیکلي دي چې که دکومې جيلی دوه ولیان وي،کوم ولي چې داجېلی په نکاح باندې ورکړه دهغه خبره صحیح ده،هغه بل چې فسخه غواړي هغه فسخه نشي کولای.[۱]

## دخپلي خوریالوردنکاح وړاندیزعارنه دی:

خلکوته عاراوپیغورښکاري چې دخپلي خوریالوردنکاح وړاندیزچاته وکړي،خوکه څوک بوصالح سړی پیداکړي دی کولای شي چې هغه ته ووايي چې زه مې خپله خوریالورتاته په نکاح درکوم،دی کې هيڅ دول عارنشته داپه شرعه کې جوازلري.کله چې حضرت موسی ﷺ مدین ته لاړ هلته حضرت شعیب ﷺ ورته وویل:چې زه اراده لرم چې تاته خپله لورپه نکاح درکړم.

---

[۱] عن سمرة بن جندب ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:ايماامرأة تزوجهاوليان فهي للاول منهما-جامع الترمذي١/٢١١-.

په احادیثو باندې هم دامسئله ثابته ده،بخاري شریف کې یوحدیث راغلی چې کله دحضرت عمرلوربي بي حفصه کونډه شوه، حضرت عمرحضرت عثمان ته وویل:چې زه غوارم چې داخپله لورتاته په نکاح درکړم،هغه ورته وویل چې زه به مشوره وکړم،څه وخت وروسته يې ورته وویل:چې خوښه مې راتله دخوورځې چې تیرې شوې حضرت عمرحضرت ابوبکرته همداوړاندیز وکړ هغه هیڅ هم ورته ونه ویل،حضرت عمروایي چې زه ډیرسخت په غوسه شوم چې هیڅ جواب یې رانکړ؛ څه وخت وروسته نبي کریمﷺ دبي بي حفصې خطبه وکړه بیایې له رسول اللهﷺ سره نکاح وشوه،حضرت عمروایي چې بیامې حضرت ابوبکرولید راته ویې ویل: چې ته به ماته ډیرپه غوسه یې؟ماورته وویل هو،له تاڅخه مې ډیرزړه بدشوچې هیڅ خواب دې رانکړ،تاته له حضرت عثمان څخه هم ډیرپه غوسه وم؛هغه راته وویل:چې ماڅکه دهواونه خواب درنکړ چې زه خبرشوی وم چې رسول اللهﷺ له بي بي حفصې سره نکاح کوي که ما انکارکړی وی نوتابه راته ویلي وه چې ولی؟ نوپه دې وخت کې به هغه رازافشاشوی وه کوم باندې چې زه خبرشوی وم.(۱) له حضرت عمرڅخه به څوک ډیرغیرتي وي؟هغه دخپلې لوردنکاح وړاندیزحضرت ابوبکراوحضرت عثمان رضی الله عنهما ته کړی وه ځکه چې هغوی دوخت صالحان اونیکان وه.

همدارنګه تاریخ ابن خلکان کې یوه واقعه ذکرشویده چې عبدالله ابن ابي وداع وایي نوموړی لوی عالم،محدث اوتابعي دی چې زه به سعیدبن المسیب ته ورتلم له هغه څخه مې تعلیم کاوه،څوورځې سبق ته ورنغلم،څکه چې زمابي بي وفات شوی وه؛کله چې ورغلم پوښتنه یې راڅخه وکړه چې داڅوورځې ولې نه راتلې؟ماورته وویل چې ښځه مې مړه وه؛هغه راته وویل:اراده لرې چې بل واده وکړې؟ماورته وویل:چې ماته به کله څوک ښځه راکړي څکه چې ماسره پرته له دې دوپا دریورپیونورهیڅ هم نشته؛سعیدبن المسیب راته وویل:چې زه به خپله لورتاته په نکاح درکړم،ماورته وویل سمه ده؛کله چې زه کورته لاړم زمونږپه کورکې لږسرکه اولږنورخوراکي شیان موجودوه په هغې مې روژه ماتې وکړچې په دې وخت کې زمونږدروازه وټکیدله ماغږورته وکړچې څوک یې؟راته ویې ویل سعید زماخوډیرسعیدنومې ملګري دي ته کوم یوسعیدیې؟سعیدابن المسیب خومې له سره خیال ته هم نه راته څکه چې نوموړی بیخي زمونږکورته نه وه راغلی،کله مې چې دروازه

---

۱- انه عمرابن الخطاب حين تايمت حفصه بنت عمرخنيس ابن حذافه السهمي وكان من اصحاب رسول الله فتوفي بالمدينه فقال:عمربن الخطاب اتيت عثمان بن عفان فعرضت عليه حفصه فقال:ساْنظرفي امري فلبثت ليالي....فقال:عمرفلقيت ابابكربن الصديق فقلت ان شئت زوجتك حفصه بنت عمرفصمت ابوبكر....ثم خطبهارسول الله فانكحتهااياه فلقيني ابوبكرفقال:لعلك وجدت على حين عرضت على حفصه فقد علمت ان رسول الله قدذكرهافلم اكن لافشي سررسول الله صلى الله عليه وسلم-صحيح البخاري۲/۷۶۷.

خلاصه کره چې کورم سعیبن المسیب دی له خان سره مې وویل چې پښیمانه شوی نه وی ښکه بی وخته زمونږکورته راغلی دی لوربی مانه وه لیدلی ځکه چې هغه ددروازی ښ ارخ ته ولاړه وه،نوموړي راته وویل چې بوه شپه مې هم داسی نه لوربري چې ته بې بې واده تیره کړی داخینه لورمی درته راوستنه؛ایجاب اوقبول له وراندی شوی وه،لوربی زماکورته راننه کره اودی بخپله لار،په دی وخت کې مې موررا خبره شوه راته ویې ویل چې داخوک ده ماورته وویل چې دازماداوی ده،مورمی راته وویل چې ترهغو یې تاته نه درپرېږدم چې واده مې نه وي وربانډی حورکړی ځکه چې دلته زمونږقام ده کلی اوکورده هغوي به څه وایي؟عبدالله ابن ابی وداع وایی چې سعیداین المسیب ددی لپاره چې شپه یواخی مه تیروه،په شپه کې یې خپله لورراته راوستله دلته مې موررا باندی ظالمه شوه درې شپې بې زماناوی له ماڅخه ستنه کره.داسی نه وه چې داجیلې عیب ناکه وه،باچاددی خطبه نه کوله،دومره وراعه جنلي وه چې دوخت بادشاه عبدالملک بن مروان خپل زوی ته غوښتې وه.

(جمله معترضه)ناوی ښایسته کول هم په اسلام کې ثابت دي عائشه صدیقه یوخل ښخوجوره کره بیایی واده وربانډی وکر. نوپیش کول دخپلې خوریالورپه چاباندی عاراوبیغورندی ځکه چې دادانبیاؤ،صحابه و اوتابعینو سنت ده.

# کونده ښځه دخپل نفس بشپړاختیارلري:

زمونږخلکوکی دیربدعادت دی چې کله په کوم کورکې کومه ښځه کونده شي،بیادهغه کورخلک اجازه نه ورکوي چې له هغه کورڅخه بهربل خای نکاح وکړي خامخابه په هغه کورکی نکاح کوي آن تردی چې که هغه کورکی خوان نه وي دیوه ماشوم په نامه باندې هغه کونده کوي چې داډیربد عادت دی دا دجاهلیت عقیده ده؛کونده ښځه په له ولي څخه خپل نفس ډیره حقداره ده هرچاسره چې وغواړي نکاح ورسره کولای شي؛[۱]خومستحبه داده چې دولي هم اجازه وي.

په اسلام داسی حکم دی چې له کوندې ښځې څخه به پوښتنه کوي چې میره کوی اوکنه؟هغه به دهو یانه خواب کوي؛اوله پیغلې څخه به پوښتنه کوي چې فلانکي سرې ته دی په نکاح ورکووستاخوښه ده اوکنه؟که سکوت یې وکر هغه اختیارده ځکه پیغله کې حیادیره وي.

---

[۱] - عن ابن عباس قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الایم احق بنفسها من ولیهاسنن ابي داود۱/۲۸۶.

# نانځکي په اسلام کي څه حکم لري؟:

نانځکي په اسلام کی جوازلري،ميرقاة المفاتيح اولمعات کتابونوکی ليکلی دي چي دکوچنيو ماشومانواپاره په نانځکوباندې لوبې کول جوازلري.[۱]حضرت عائشة يی چی کله نبی کريمﷺ ته ودوله دنهوکلونوپه عمرکی وه،احاديثوکي راځي چي ولعبهامعهايعنی نانځکی هم ورسره وی؛حضرت عائشة صديقه يی په وه کلنی باندي رسول اللهﷺ ته ورکړي وه،په نه کلنی باندی يی واده کړی وه اوپه اتلس کلنی کي رسول اللهﷺ ورځخه وفات شويدی.[۲]له دی حديث څخه علماءاستدلال کوي چي په نانځکوباندی لوبي کول جوازلري.احنافو،شافعيانو،مالکيانواوحنابله وتولومذاهبوددی په جوازباندی فتوی ورکړی ده.

يوبل حديث شريف کي راځي چي دحضرت عائشي نانځکه وه وزرونه يي درلودل؛[۳]خوهغه نانځکی په اسلام کي جوازلري،کومي چي له ټوټواوپمبې څخه جوړی شوي وي داتفاقا جوازلري.بل پلاستيکي نانځکي دي په هغوکي دنری علماءدوه ډلي دي؛په مونږ احنافوکي علامه وهبة الزحيلی صاحب الفقه الاسلامي وادلته،نوموړي ليکلي دي چي پلاستکي نانځکی جوازلري؛په غيرمقلدينوکی علامه قرزاوي هم ددې په جوازقائل دی؛خوعلامه ابن فوزان چي دی هم غيرمقلدعالم دی هغه ليکلی چي پلاستيکي نانځکي په شرعه کي جوازنلری؛په دې اره زماپه خپله رايه داده چي ورعه اوتقوی په دې کي ده چي استعمال نکړای شي؛ددلائلو تحقيق لپاره الفتح الرباني من فتاوی الشوکاني ته مراجعه وکړي.

# ورق الشيده(چکه):

ورق الشيده چي زمونږپه اصطلاح کی ورته چکه وايي،آياداپه شرعه کی جوازلري اوکنه؟په دی اره علامه زحيلي ليکلي چي که قمارورباندې وهي بياحرامه ده؛اوکه قمارنه ورباندی وهی بياهم له

[۱]- قال القاضي وفيه اتخاذجوازاللعب واباحة الجواري بهن وقدجاء انه صل الله عليه وسلم رای ذالک ولم ينکره ميرقاة المفاتيح۶/۲۶۸-

[۲]- عن عائشة ان النبي صل الله عليه وسلم تزوجهاوهي بنت سبع سنين وزفت اليه وهي بنت تسع سنين ولعبهامعها ومات عنها وهي بنت ثمان عشرة.صحيح مسلم۱/۴۵۶-

[۳]عن عئشة قال:قدم رسول الله صل الله عليه وسلم عن غزوةتبوک اوخيبروفي سهوتهاستره‌فهبت الريح فکشفت ناحية سترعن بنات لعائشة فقال ماهذاياعائشة قالت بناتي ورأی بينهن فرس له جناحان من الرقاع -سنن ابي داود۲/۶۷۵-

کراهیت څخه نه وحي حکه چي عبث ده؛اوس مهال اکثره طالبان په مدارسوکی چکه کوټ نطالب العلم لپاره بیخي مکروه ده حکه دغه وخت به چکه صانع کوی ولی مطالعه نه کوی

# دفوتبال شرعي حکم:

ایادفوتبال لوبه شرعا جوازلري؟بعضي خلک وایي چي فوتبال ناروا ده،حکه چي کله حضرت حسین ظالمانوشهیدکر ،نودهغه سربي نه لعنوباندی واهه تردی وروسته دفوتبال رواج وشوخود حره صحت نلري.په دی اروندعلماولیکلي دي چي که عورت یي نه څرګندیده،لمونحونه نه وربانذی قضاکیدل اوټول وخت وربانذی مشغول نه وي؛بیاجوازلری اوکه ذکرشوی شرایط مراعت نکرای شي بیا ناجایزاوحرام دی.دفوتبال لوبي ته لعب باالکره ویل کیږي علامه زحیلي داخبره لیکلی ده.اودکرکټ لوبه هم جوازلري خوپه دی شرط چي منکرات نه وي پکي همدارنګه نوری لوبی هم جوازلري خوچي شرطونه پکي مرعت کرای شي.

# دشطرنج لوبه جوازنه لري:

دشطرنج،اربعه عشره اونردشیرلوبي په اسلام کي جوازلري اوکنه؟خیني علماءشطرنج په چهارخط باندی تحمیلوي خوداخبره صحت نلري؛شطرنج په دنیاکي ډیره زره کلن تاریخ لري،داچي په لمړي خل باندی دالوبه چاجوړه کړیده په دی کي اختلاف دی چونکه شطرنج یوه نادره لوبه ده څکه یي هرڅوک خانته نسبت کوي ایرانیان،هندوان،یونانیان اوجاپانیان دوی ټول ددي لوبي نسبت خپلوخانونوته کوي چي په لومړي خل ددي اختراع مونږکړیده؛خوصحیح خبره داده چي دشطرنج اختراع په لومړی خل براهمه ودهندوانوکړیده چي له نن څخه په زرکونوکاله وړاندی په هندوستان کي ددوی حکمراني وه؛کذافي مروج الذهب ومعادن الجوهرللعلامه مسعودي ودائرة المعارف للعلامه عبدالجلیل السعیدیان

شطرنج یودول تخته وي چي خلاصیږي اوبندیږي،ټولي شپږدیرش توری اوسپیني خانی لري؛کله چي په لومړي خل دی لوبی بین المللي حیثیت پیداکړدتلویزیون په پرده باندی دالوبه خپریدله دیوه انګلیسی اواسترلیاوي ترمینځ دی لوبي یوکال دوام وکړ،خوپه دوی دواړوکي هیڅ چاهم ونه کټله؛اوپه دی لوبه کي یونادرکیفیت شته هغه داچي یوخل چي په کوم دول کټل شوی وی بیاپه هغه دول نه کټل کیږي.یووخت کي حضرت عمرته چا وویل چي دشطرنج دیره نادره لوبه ده یوخل چي په کوم دول وکټل شي بیاپه هغه دول نه کټل کیږي اوحال داچي یوکرپه یوکرکي تخته ده:حضرت عمر ورته

، ويل چې داځکه نذره ده نادره خوداده چې دانسان مخ الله تعالی پوه لوشت په يوه لويښت کې پيداکړی په نری کې په مليار دونوانسانان دي خوديوه انسان مخ له بل انسان سره برابرنده.

ايادشطرنج لوبه جوازلري؟ دشطرنج دنه جوازپه اړه چې کوم احاديث راغلي هغه حديثونه ضعيف دي مګر دي باندي دټولي نړۍدعلماواتفاق دي چې که قماروربانډی وهل کيده بياجوازنه لري[1]خوکه قمارنه وربانډی وهل کيده بياپه دی اړه دعلماواختلاف دی؛امام شافعي اوامام ابويوسف وايي چې دالوبه جوازلري حکه چې په دی سره ذهن تيزيږي؛ردالمحتار اوفتح الملهم کې دامام شافعي اوامام ابويوسف داقول ذکرکړيدي[2]خوبعضی علما وايي چې امام شافعي بيرته له ډيلي خبری څخه رجوع کړيده

زمونږدفقهی حنفی په ټولوکتابونوکې ليکلي دي چې دشطرنج لوبه جوازنلري.خودعلم احاديثوپه ډيروکتابونوکي له صحابه وڅخه نقل شويدی چې هغوی به شطرنج کاوه؛په مصنف عبدالرزاق الصنعاني کې ددی لپاره باب ځانګړی شويدی هلته يې ليکلي دي چې امام شعبي به شطرنج کاوه،نوموړی لوی محدث اوتابعي وه؛نيل الاوطارکی علامه شوکاني هم له حينوصحابه وڅخه نقل کړی منهم:ابوهريره،عبدالله بن مسعود،هشام بن عروة،سعيدبن جبير،وسعيدبن المسيب رضي الله عنهم؛چې دوی به شطرنج کاوه؛خوسره له دی په دی اړوند زمونږه فقهاو دحرمت فتوی ورکړيده زماپه خيله هم په دی اړوند دحرمت فتوی ده.

بل نردشيرلوبه ده،چې داهم حرامه ده په دی اړوندصراحة احاديث روايت شويدی،چې يوله هغوحديثونوڅخه داده چې امام مسلم په خپل کتاب کې راوړيدی هغه داچې څوک نردشيرلوبه کوي دهغه داسي مثال ده لکه دخنزيرپه وينوکي چې لاس وهي.[3]نردشيرته په اوسني زمانه کې بلياردهم وايي چې پولوی سيزوي بياپه هغه کې کوچني دهګيوپه خبرتوپونه وي،بياهغه په لرګيوباندي يواوبل طرف ته وهي؛که قمارورباندی کوي اوکه يې نه ورباندي کوي دالوبه حرامه ده،ټولو مذاهبوددی دحمت فتوی ورکړيده.

يوبل دول لوبه ده چې اربعة عشرورته ويل کيږی،په دي اړه چې کوم تحقيق علامه عيني کړيدی له هغه څخه داسي څرګنديږي چې کيدلای شي دابه زمونږپه اصطلاح چهارخط وي؛علامه شامي چې

---

[1]- عن ميسره النهدي قال:مرعلي کرم الله وجهه على قوم وهم يلعبون بالشطرنج فقال:ماهذه التماثيل التي انتم لهاعاکفون مصنف ابن ابي شيبة۶/۱۹۲.

[2]- قال حصکفي وکذا(الشطرنج)بکسراوله ويهمل ولايفتح الانادرا،واباحه الشافعي وابويوسف ...وقال علامه شامي في حاشيته انماکره لان من اشتغل به ذهب عناءه الدنيوي وجاءه العناالاخروي،فهوحرام وکبيرة عندنا-ردالمحتار ۹/۶۵۰.

[3]- عن سليمان بن بريده عن ابيه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:من لعب بالنردشيرفکانما صبغ يده في لحم خنزيرودمه صحيح مسلم ۲/۲۴۰.عن ابي موسى الاشعري ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:من لعب بالنردفقدعصى الله ورسوله سنن ابي داود۲/۶۷۵ .

په دی اروند ردالمحتارکي کوم تحقیق کری اوعلامه طحطاوي چې ددر المختار په شرحه کی کوم تحقیق کری دوی وایي چې دایودول لوبه ده چې په هغه کی ژورخطونه وبستل کیږي سبوسری یوه طرف ته کیني اوبل سری بل طرف ته کیني په تیږوباندي لوبه کوي؛والله اعلم چې څه دول لوبه ده خوپه شرعه کی جوازنلري.[1]خومصنف ابن ابي شیبه اومصنف ابن عبدالزاق الصنعاني کی داسی اثارنقل شویدی چې هغوی به له خپلوبنځوسره دالوبه کوله هلته یی لیکلي دي چې علی ابن حسن به له خپلي ښځي سره دالوبه کوله؛که قمارنه وباندي وهل کیده بیاکیدلای شي چې څه پرواونلري.

اویوبل دول لوبه ده چې زمونږ په اصطلاح کی قتي ورته ویل کیږي،په دی اروندعلامه زحیلي په فتاوای العصرکي ددی په نه جوازفتوی ورکړې اوالفقه الحنفي في ثوبه الجدیدکي هم لیکلي دي چې دالوبه شرعاجوازنلري.

## غیږه نیول جوازلري:

په ابوداود،مستدرک اوترمذي شریف کي یوحدیث راځي چې یوصحابي وه درکانه ابن عبدالیزیدپه نوم باندی هغه به په غرونوکي میږی څرولي،نوموړی یوه ورځ رسول اللهﷺ ته راغی ورته ویی ویل:چې راځه له ماسره غیږونیسه که دي راچپه کړم نوسل میږی درکوم؛رسول اللهﷺ ورته وفرمایل:چې سمه ده خوته به بیا ایمان راوړی،کله چې نبي کریمﷺ غیږورسره ونیوله نورکانه یی راځملاوه،هغه وویل:چې سل میږی نوری هم درکوم ته یوځل بیاغیږراسره ونیسه نبي کریمﷺ په دویم اودریم ځل هم رکانه راځملاوه،بیارکانه ابن عبدالیزیدایمان راوړ بیانوموړي ته نبي کریمﷺ بیرته هغه میږی ورکړې.[2] نومصرعه یاغیږه نیول هم په اسلام کي جوازلري.

بعضوروایتونوکي راځي چې ابوجهل له رسول اللهﷺ سره غیږه نیولی وه،هغه حدیثونه دروغ دي؛کذافي المصنوع في معرفة حدیث الموضوع.[3]اوله یوبل صحابي سره هم نبي کریمﷺ غیږه نیولي ده،چې هغه دومره زیات زوروروه کله به چې په پوستکي باندي کیناست لسوکسانوبه هم هغه پوستکی نشوپورته کولای؛خوله هغه سره هم رسول اللهﷺ غیږه نیولي وه اوهغه یی ځملولی وه.

---

[1] - اللعب بالاربعة عشرحرام،وهوقطعة من الخشب يحفرفيها ثلاثة اسطرويجعل في هناالحفرحصى صغاريلعب بها-ردالمحتار ۹/۶۵۰-.

[2] - عن علي بن ركانه عن ابيه ان ركانه صارع النبي صلى الله عليه وسلم فصرعه النبي صلى الله عليه وسلم-سنن ابي داود۲/۵۶۳-.

[3] - حديث:مصارعته صلى الله عليه وسلم اباجهل لااصل له ذكره الحلبي في حاشية الشفاء-(المصنوع في معرفة حديث الموضوع/۱۷۹رقم ۳۰۳)

لاس چپه کول اوتیره اچول هم جوازلري،زمونږ دفقهي حنفي په کتابونوکي صراحة ندی ښکاره شوی دی بله لوبه ده چي زمونږ په اصطلاح کي ورته مردکي وایي اوحیني خلک بلوري ورته وایي هغه وایي چي هرکي په دی اره یوحدیث راوري دنافع ابن عيينه نوم يي يوځوک ذکرکړيدی هغه وايي چي ما حضرت حسن اوحضرت حسين سره دالوبه کوله[1] نودالوبه هم جوازلري اولعب بالجوزهم جوازلري،علامه علي القاري په فتح باب العنايه کي ليکلي دي چي حضرت عبدالله ابن عمر به ماشومانو چهارمغز حسنتيه چي وکتل بيابه يي ماتول،حضرت عبدالله ابن عمر به هم ورسره خوړل.

## عجیبه ترکیب:

اباحنيفة شطرنج هوالشافعي.ژباړه:مباح کرخولی ده زمانپاره يوه خوان شطرنج چي هغه شافعي دی،که څوک پوښتنه وکړي چي ددی ترکیب څه بول دی؟مونږځواب ورکووچي اباحنيفة فعلخول دوقايي مفعول به،فة يي فاعل،شطرنج يي مفعول، هوالشافعي ورځخه بدل.

## شغارناجائزدی:

شغار هغي نکاح ته ويل کيږي چي پرته له مهرڅخه وي،[2]حيني خلک په مونږنيوکي کوي چي تاسي احناف شغارجائزګڼئ؛شغارخو هغي نکاح ته ويل کيږي چي مهريي ترمينځ نه وي،زمونږداوسني ښځ معطله خونږته له مهرڅخه نه وي دواړه لوري خپلوښځونه مهرورکوي؛اوکه مهر ورنکړای شي نيشعارندموښ ښکل جوازلري،اوشغارناجائز دی ځکه چي نبي کريمﷺ فرمايلي دي چي:لاشغارفي الاسلام[3]

## رقيب مه جوړيږه:

التحفة العروس والزواج الاسلاميه کتاب کي ليکلي دي چي په بني اسرائيلوکي ديوه دهقان ډيره حسينه ښځه وه،يوه ورځ دابنځه بادشاه وليدله ډيره يي خوښه شوه،نوبادشاه يوه زړه ميښخه وه هغه يې

---

[1]- قال زمخشري في الفائق ۱/۱۳۶-. قال ابورافع رضي الله عنه كنت العب الحسن والحسين بالمداحي وهي احجارامثال القرصة يحفرون حفرة فيدحون بها اليها وسمي المراصع والاحواي والملاعب باالجوز. ومنه حديث ابن المسيب انه سئل عن الدحو بالحجارة فقال لابأس به انتهى غريب الحديث لابن جوزي۱/۳۲۸-. والنهايه لابن اثير۱/۵۵۸-. ومجمع البحار۲/۱۹۸-. ولسان العرب۴/۲۵۲-. محرم حماسي

[2]- عن ابن عمران رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن الشغاروالشغاران يتزوج الرجل ابنته على ان يزوجه الاخرابنته ليس بينهما صداق.صحيح البخاري۲/۷۶۶-.

[3]- عن عمران ابن حصين عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:لاجلب ولاجنب ولاشغارفي الاسلام.جامع الترمذي۱/۲۱۳

راوغوښتله هغې ته یې وویل:چې به دې ښځه باندې څه چل وکړه چې له سره نکاح وکړی؛داښځه راغله ددهقان ښځي ته یې وویل:چې ساده ښځه یې غریب سړی سره ژوندکوې خوسرښکلې زوئي لری،بادشاه سره به دې واده کړی وه چې په وریښموکي یې پټه کړی وای؛ښځه خودېره ژرمتحمله کیږي یومثل دی چې دلندوختولږاویه پکاروي؛ددهقان ښځي وویل چې کاشکې مې له بادشاه سره واده کړی وای خوپادشاه به له ماسره واده ونکړي؛دبادشاه مینځي ورته وویل:چې ولې واده نه درسره کوي تاته خوالله تعالی دیرښکلی حسن درکړی،خامخاواده درسره کوي؛دې ښځې وویل:چې سړه به مې څرنګه کرم؟مینځې ورته وویل:چې بداخلاقي ورسره پیل کړه؛ددهقان ښځې همداسې وکړل څه وخت چې تېرشومیړه یې ورڅخه تنګ شوښځي ته یې وویل:چې طلاق درکړم؟ښځې ورته وویل:هو بالاخره دهقان داښځه طلاقه کړه.

څه وخت وروسته داښځه بادشاه خانته په نکاح کړه،کله چې شپه شوه پادشاه له دې ښځې سره جېنې کوټې ته لاړهلته یې پردې راښکته کړی په دې وخت کې الله تعالی له دوی دواړوڅخه سترګې واخیستې دوی فکروکړچې تیاره ده څکه یوبل نه وینو،کله چې بادشاه دې ښځې ته لاس وروړ په دې وخت کې لاس وچ شوښځې چې پادشاه ته لاس وروړدهغې لاس هم وچ شو؛صباته چې کله دوی خلکوولیدل لاسونه یې هم وچ شوي وه،رانده هم وه،کاڼه هم وه اوګونګیان شوی هم وه؛په هغه زمانه کې په بني اسرائیلوکې یوپیغمبروه هغه ته چاخبرورکړچې داسې پیښه شوې ده،هغه ددوی لپاره له الله تعالی څخه پښنه وغوښته،الله تعالی ورته وفرمایل:چې زه یې نه ښنم پرېږده چې همداسې مړه شي،څوک چې درقیبانومنځ همدابه یې حال وي؛ددومتحابینوترمینځ رقابت لویه ګناه ده.

# اوبومسلم خولاني اورقیبه ښځه.

ابومسلم خولاني لوی عالم،محدث اوبزرګ وه،نوموړي له حضرت معاویه ابن ابي سفیان سره کارکاوه،دده کورته به هروخت یوه ښځه راتله،دده ښځي ته به یې ویل:چې ستامیړه خولوی سړی ده دنبې خپل کورته راته دښځې یې داسې عادت وه چې څراغ به یې ورته لګاوه لګره اوخپلې به یې وویل:چې نه یې لګوم مزدوره درته ونیسه،نوموړی پوی شوچې خامخاچارقابت کړی ښیرایې وکړه ورسره راخیستلې؛په دې ورځ یې هیڅ هم ونکړل نوموړي ورته وویل:څراغ ولږوه،ښځې ورته چې هرچارقابت کړی یاالله تعالی نه یې سترګې رندې کړی؛کومې ښځې چې شیطانت اورقابت کړی.

وه همه به خپل ځو رکې څراغ نه ناسته وه،بودم بې ستړکې رندې شوې اوارې وکړ چې داڅراغ ولې مړشوه؟ځو رځلکو ورته وويل څراغ لګېدلی دی ستاسترګې کار نه کوي،داشخه به ځان پوی شوه چې زما بندې ابومسلم خولاني ته ورغله،همه ته يې وويل چې زمانوبه ده بدمي کړې بيابه داسي نه کوم،داخل بسه راته وکړه،همه دعا ورته وکړه سترګې يې الله تعالی بيرته جوړې کړې؛ نوفساد او شيطاني ګول دروجينو ترمينځ لويه ګناه ده.

# عورت پټول واجب دي:

عورت له عارڅخه اخيستل شوېدی،کله چې څوک دچاعورت ووينې بيانوهغه لپاره عاراوشرم ګرځي،خوښځه اوميړه په خپل مينځ کې ديو بل عورت اوهرځای ته کتلای شي،خوادب داده چې ديوبل شرمګاوته به نه ګوري،کنې نفس جوازلري؛ زمونږدفقهي حنفي په ډيروکتابونوکې داحکم ليکلی ده.

څينوحديثونوکې راځي چې ښځه اوميړه ديوبل عورت ته په کتلوسره نسيان راځي يابسترګي ړندې ش علماوليکلي دي چې داحديثونه موضوعي دي؛علامه ابن حجراوعلامه سيوطي اللالي المصنوعه کتاب کې ليکلي دي چې نبي کريمﷺ فرمايلي دي چې:من حدث عني بحديث ويرى انه كذب فهوس احد الكاذبين.[1]

بل حديث شريف کې راځي چې نبي کريمﷺ فرمايلي دي چې:من كذب علي متعمدا فليتبوء مقعده من النار.[2]يعني څوک چې قصداپه نبي کريمﷺ باندې دروغ وايي نوده دپه جهنم کې دځان لپاره ځای جوړکړ؛تول علماوايي چې کوم حديثونه په دې اړه راغلي چې عورت ته په کتلونسيان راځي داحديثونه موضوعي دي؛خوتجربه داسې ده چې نسيان راولي داکتران هم وايي چې عورت ته په کتلو سترګونظرکمروری کيږي؛خوحضرت عبدالله ابن عمروايي:چې دجماع په حالت کې به ورته کوري حکه چې په کتلوسره لذت اوخونددوه برابره کيږي؛تطبيق علماوداسې کړی چې کتل جوازلري خوادب داده چې نه به ورته ګوري په کتلوکې کراهيت تنزيهي ده.

---

[1] صحيح مسلم ۱/۶ .
[2] صحيح مسلم ۱/۷

## په بنارونوکې ښځوته کتل:

کومې ښځې چې په ښارونوکې ګرځي اياهغوی ته کتل شرعاجوازلري؟امام ابوبکرالاعمش په محتشمو کې لوی عالم تېرشويدی،نوموړی يوه ورځ شواطي الانهريعنې ددرياب څنډی ته لاړ،کوم ځای ته چې توجکړی دچکرلپاره خې هلته دسيندله غاړی سره ښځي هم ناستې وې،چاپوښتنه ورځخه وکړه چې ته څوټوی غلا يې ته دلته څه کوې؟نوموړي ورته وويل:چې دوی حرمت نلري،له دوی څخه سترګول په اسلام کې نشته،دوی ته کتل جوازلري ځکه چې دوی دځپلونفسونوبې حرمتي کړېده اسلام دوی ته حکم کړيدی چې{ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ }[1]نوپه دې وجه چې دوی دځپلونفسونوبې حرمتي کړې دوی ته کتل هم جوازلري؛کذافي البريقة شرح طريقة المحمديه.

اوله عبدالله ابن عمرڅخه علماونقل کړی چې يوه ورځ يې يوه بې حياښځه په دره باندې ووهله،دهغې له سرڅخه ټيکرې ولوليده وېښتان يې ځرګندشول؛چاپوښتنه ځنې وکړه چې ولې دې داسې وکړل؟دښځووېښتان خوعورت دي دهغې خوټول وېښتان ځرګندوه؟ نوموړي ورته وويل:چې دوی خپله دځان هتک اوبې حرمتي کړې دوی ته کتل جوازلري.[2] خوله دې اقوالوڅخه په ښارونوکې ياپرته له ښارونوڅخه نامحرموښځوته دکتلوثبوت نه راځي ځکه چې دامفتي به خبره نه ده،بلکې ددوی خپله رايه ده؛مفتي به خبره داده چې نامحرمو ښځو ته کتل شرعا جوازنه لري.

## دښځوعکسونوته کتل:

آيادښځوعکسونوته کتل جوازلري؟تردې وړاندې يوه بله مسئله دياده شوې وه چې هغه داچې ښځوته کتل جوازلري اوکنه؟ که داشتهاحالت نه وي دښځې مخ اولاسونوته کتل جوازلري ځکه چې دښځې مخ اولاسونه عورت ندي،هم دازموږه احنافومذهب دي.دعکس هم دغه حکم دی علماوليکلي دي که

---

[1] - سورة الاحزاب/٣٣.

[2] - وفي ردالمحتار ٦/١٠٣ روی ان فقيه ابابکرالبلخي خرج الی الرستاق وکانت النساء علی شط النهرکاشفات الرؤس والذراع فقيل له کيف فعلت هذا ؟فقال:لاحرمة لهن انماالشک في ايمانهن کانهن حربيات وهکذافي جنايات في مجمع الفتاوی انتهی. وفي البريقه ٤/٦٣ عن الخصاف ان ابابکرالاعمش خرج الی الرستاق وکان النساءفي شط النهرکاشفات الذراع والرؤس فذهب الی ان خالطهن ولم يتحام عن النظرالهيم فقيل له کيف هذا ؟فقال:لاحرمة لهن لهتکهن حرمة انفسهن.ومثل ماروی عن ابن عمرانه رای النائحه حتی هجم عليها في منزلها فضربها بالدره حتی سقط خمارها فسئل عن ذالک فقال:لاحرمة لها في الشريعة ولذالک جوزنظرالمحتسب عندتمکنهن سماعند کشف رؤسهن اوذراعهن وقدمهن فيدفع مايورد ان نظرهن منکرا آخرا انتهی. مخرج حماسي.

داشتهاحالت نه وي دښځي عکس ته کتل څه باک نلري؛ خواوس بي اکثره حلک داشتها په وجه گوري ښايي چي دنه جوازفتوی ورباندی ،وشي،انوپه دی ښادښځوتصويرونوته کتل هم شرعاجوازنلري.

## نامحرمي ښځي ته په اوبويا آيينه کي کتل.

که چيری څوک په ايينه يااوبوکي اجنبي ښځي ته گوري داهم جوازنلري،خوکه يوڅوک دځيلی خوابنی څانګړی عضوه(شرمګاه)په اوبوکي وګوري حرمت مصاهرت ورباندی راځي اوکنه؟علامه شامي ليکلي دي چي که څوک دځپلي خوابنی اندام مخصوص په اوبوياآيينه کي وګوري اودی داشتهاپه حالت کي وی نوپه دې سره حرمت مصاهرت نه راځي، خوکتل هم ورته ناروادي.[۱]

## دښځي نرته کتل:

زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي ليکلي دي،دنرچي کوم اندامونه عورت دي هغوخايونوته يې کتل حرام ي؛او هغو خايونوته يي چي عورت ندی لکه له زنګونوڅخه لاندي اوله نامه څخه پاس کتل جوازلري،خوداپه هغه صورت کي چي ښځه داشتها په حالت کي نه وي،اوکه اشتهاپه حالت کي وه بياجوازنلري.

اوآياکافره ښځه مسلماني ښځي ته کتلای شي؟دښځي کوم اندامونه چي دنرلپاره عورت دي،هغه دکافری ښځي لپاره هم دي لکه څرنګه چي نردښځي له مخ اولاسونوپرته دهغي نوربدن ته نشي کتلای همدارنګه کافره ښځه هم دمسلماني ښځي له مخ اولاسونوپرته دهغي نوربدن ته نشي کتلای.

## خپل عورت ته کتل:

اياخپل عورت ته کتل جوازلري؟ماپه خپله په دی اروندزمونږداحنافوپه کتابونوکی څه ندي ليدلي،خودشافعيانواوحنابله وپه کتابونوکي ليکلي دي چي ادب داده چي خپل عورت ته ونه کتل شي.يوه روايت کی راځي چي حضرت عثمان وايي:چي ماپه ټول ژوندکي خپل عورت ندی ليدلی.[۲]

---

۱- (اناراه من مراة اوماه)...ان المرئي في الماء مثاله لاهو-ردالمحتار۲/۱۱۶-.

۲- قال حماسي:رايت في حق عثمان انه ما رأى عورته لكن الآن ماتذكرت في اي كتاب رايته وفي تاريخ ابن عساكر قال عثمان:مامسست فرجي بيمني منذ بايعت رسول الله صلى الله عليه وسلم وفي حق ابي بكر انه لم ينظر الى عورته قط كذا في الدرالمنتقى۲/۲۰۱ . مخرج حماسي.

## ښځې په عطرونه وهي:

په احادیثوکې راغلي چې ښځې په عطرونه وهي،څکه چې بیاځلک خوند ورځنه اخلي،که څوک وینې چې له عطروڅخه یې څه خوندواخلي؟ددې لپاره موبرخواب کووچې کله ښځې سپي مه سپي توسیټ څه ورباندې خبرېږي:ښځې خونه تیلفون ورته کوي اونه چیغې اونعرې ورته کوي چې راځي،په دې اره دعلم طب علماولیکلي دي چې کله ښځې په ښځې مه توب باندې راشي تونوتول بوی ورڅخه صادرېږي دسپیانوقواې شامه ډېره تېزه وي په اساني سره دهغه بوی ادراک کولای شي،دهغې بوی په واسطه هغه ښځې پیداکوي همدارنګه چې کله ښځې عطرووهي هغه بوی یې په نر خوندي توبره ډلزېږي چې طبیعت یې په دې بل طرف راوړي نوښځې لپاره عطروهل شرعاجوازنلري[1]

## دعطروتاریخ

ترټولودمخه عطرپه مصرکې رواج وه،څوهغه داسې عطروه چې دعودلرګي به یې په اوبوکې اچوه بیابه یې هغه اوبه دعطروپه ډول استعمالولې؛بیاپه دولسمه میلادي پېړۍ کې له نن څخه څه باندې نه سوه کاله وراندې په فلسطین کې دعطروفابریکې جوړې شوې؛کله چې چینایي عسکرو په فلسطین بریدوکړاوهغه یې ترخپلې ولکې لاندې راوست،هغه عطریې له ځان سره اروپا ته یووړ،لنده داچې درې زره کاله وراندې په مشرق کې عطررواج وه،دوه ویشت سوه وروسته کاله وروسته عرب ته عطرچینایانو وروړل ترهغه وروسته په غرب کې هم دعطرورواج وشو.

## دښځې شهوت ډېردی که دنر؟:

په دې اړ.. علامه ابن قیم بدائع الفواندکتاب کې یوعنوان راوړی چې دښځې شهوت زیات دی که دنر؟هلته یې داثابته کړې چې دښځې شهوت ډېروي په نسبت سره ښځې ته،په دې اره یې حدیث اواثارله صحابه وڅخه نقل کړیدي

اوبوبل کتب دی الحکمت والتشریع الفلسفه الاسلامي دعلامه احمدعلي الجرجاوي هلته یې هم ددې ډېره دلائل وراندې کړیدي چې دښځې شهوت په نسبت سره نرته کم وي څینې مغربي څلک وایي چې سړی به

---

[1] - عن ابي موسي عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:كل عين زانية والمرأة اذا استعطرت فمرت بالمجلس فهي كذاوكذا يعني زانية جامع الترمذي٢/١٠٦.

پورته طرف ته تول کړي وه ددی لپاره چي کالي وربانديلانده نشي؛خورمایه اند داحوابونه سم ندي حکه چي پوخوپه حدیث کی د(کان)لفظ راغلی چي داددوام اواستمرارلپاره راحي اوبل داچي په دی حدیث کي صراحة ویښتانولنديدل دکرشويدي.

خوبحمدالله ومنته کله چي مایه جامع الصغیردعلامه سیوطي کي مطالعه کوله هلته په يوه حدیث شریف واقف شوم چي: نهی رسول الله ﷺ عن اللجمة للحرة والقصة للامة [1]جمه هغو ويښتانوته ويل کيږي چي په اوږوباندي لړيږي؛اوحديث هم صحيح دی؛مجمع الزوائدکی علامه هيثمي هم داحدیث راوړی اوجامع الصغیرباندی علامه مناوي شرحه کړی هلته یی هم داحدیث راوړيدی له دی څخه څرګنده شوه چي دښځولپاره دويښتانوقينچي کول شرعا جوازنلري.[2]

خوپه مونږاحنافوکي علامه زحيلي په الفقه الاسلامي وادلته کي اوعلامه عبدالحميد محمودطهماز په الفقه الحنفي في ثوبه الجديدکي ددی په جوازباندی فتوی کړی،همدارنګه غيرمقلدعالم علامه ناصرالدين الباني په احکام تجميل النساءکي ليکلي دي چي دښځولپاره دويښتانوقص جائزدی.

## داولادبندول جوازنلري:

داولادبندول شرعا جوازنلري،څکه چي داهم يودول قتل دخپل اولاددی؛ځيني دمکراتيک خلک وايي چي که اولاددیرشي بياڅوک دودي ورکوي اودلږاولادبنه تربيه کيږي،خوداخبره دقرانکريم له صريحوايتونواود نبوي مبارکوحديثونوسره په ټکرکي ده،څکه چي نبي کريم فرمايلي دي:فاني مکاثربکم الامم.[3]

خوکچيری کومه ښځه ناروغه ياهم کمزوري وي،اوداويره موجوده وي چي داولادپه راوړلوسره يی ژوند دمرګ له ګواښ سره مخ کيږي،بياداولادبندول جوازلري؛پرته له دی داولادبندول په اسلام کي ناجائزعمل دي؛ياځيني ښځي خپل رحم لري کوي،دادول کړنه هم په شرعه کي جوازلري.

---

[1] - مجمع الزوائد۵/۱۶۹- رقم الحديث ۸۸۶۵.

[2] - حدثناحميدسمع معاويه خطب بالمدينة يقول اين علماءكم يااهل المدينة سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن هذه القصة ويقول انما هلكت بنواسرائيل حين اتخذها نساءهم -جامع الترمذي۲/۱۰۶-.

[3] - عن معقل بن يسارقال:جاءرجل الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال:اني اصبت امراة ذات حسب وانهالاتلد فاتزوجهاقال:لا....فقال:تزوجوا الودودالولودفاني مكاثربكم الا م -سنن ابي داود۱/۲۸۰-.

## دنارینه اولادلپاره مجربه تجربه:

علماوو له طاوس ابن کیسان څخه مرسل حدیث نقل کړیدی چې کله دښځې په نس باندی حمل وی دهغی په نس دی لاس کیږدي اوداسی دی ووایي:چې په دی بچي باندی مامحمدنوم کیښود.نوالله تعالی به هغه بچی ورته محمدکړي:دادهغه چالپاره طریقه ده چې نارینه اولاد نلري.[1]

الاجوبة المرضیه کی علامه سخاوي له وهب ابن منبه څخه نقل کړی چې هغه وایي:ما وه حتی ۔اتجربه وازمویله تول بچیان الله تعالی راته محمدنومي راکړل.مکارم الاخلاق دعلامه خرایطی اوالاجوبة المرضیه کي علامه سخاوی لیکلي دي چې دیوی ښځي دلسوڅخه زیاتي لورګانی پیداشوی وی:چاورته ووېل:که ۔حتی الله تعالی لوردرکره دالله تعالی حمدووایه هغی وویل:داسه تعالی حمدنه وایم ولي الله تعالی روی نه راکوي؟بیایی په هغه وارخنزیروزیږاوه.چې ورته کتل به یې زړا ورتله:نوناشکري کول داسی بدی پایلی لری.قال الله تعالی{ لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِن كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ }[2]

## په یوه خل څلویښت ځامن:

دیوی ښځی نیری لوراني پیداشوی وی،کله یې چې بیاحمل وشومیره یې ورته وویل:که دی داحل حبلی وزیږوله توسردی په توره وهم؛یدی خل یې چې کله ولادت وشویوه خلطه یې وزیږونه چې حرکت یې درلود،کله یې چې هغه خلطه څیری کره څلویښت کوچني نران ماشومان پکي وه.بیاهغه څلویښت واړه ماشومان الله تعالی لوی کړل؛سیراعلام النبلی کی امام شمس الدین الذهبي لیکلي چې ماپه خپله یوه ورځ داهلکان ولیدل چې له روستوپه اوبنانوباندی په خپل پلارپسی سپاره وه. داهم دالله تعالی یودول عذاب دی هغه یوخوی غوښته الله تعالی څلویښت ورکړل چې پالنه یې هم ورته کرانه وه؛الاجوبة المرضیه کي داحکایت لیکل شوی دی.

---

[1] - قال السخاوي لم يرد في المرفوع من اراد ان يكون حمل زوجه ذكرا يكون ذكرا انما روينا في خبر ابي شعيب عن عطاء الخراساني قال: ماسمي مولودفي بطن امه محمد الا ذكرا- الاجوبة المرضيه ۱/۸۱- وسبل الهدى ۱/۴۱۵- مخرج حماسي.

[2] - سورة ابراهيم/۷.

# دظهار بیان.

که څوک خپلی ښځی ته له داسی چاسره مشابهت ورکړي چې هغه به ده باندې دائمي حرامه وي.دبیلګی په توګه خپلی ښځی ته ووایی چې ته دی په مانندې داسی یې لکه زما مور.نو په دی سره ظهار ثابتیږي.یایی له اجزاوسره مشابهت ورکړي خو هغه اجزاءچی مناع ته وی لکه داسی ووایی چې ته دی په ماباندی داسی یې لکه زمادمورنیمایی،یازما دمور دریمه برخه،په دی صورت کی هم ظهار راحی؛حوکه له داسی جزسره یې مشابهت ورکړي چې له هغه څخه تعبیر په کل باندی نه کیږي.لکه لاس یاپښه،په دی صورت کی بیاظهارنه راحي.

اوبل داچې له داسی چاسره به یې دخپلی ښځي مشابهت کړی وی چې هغه په ده باند ی ابدي حرامه وي.که له داسی چاسره یې دخپلی ښځی مشابهت وکړچې هغه په ده باندی ابدی نه وي حرامه.په دی صورت کی ظهارنه راحي؛مثبه به،به داسی څوک وي چې هغه به په ده باندی ابدی حرامه وي لکه مور،حور،عمه،خاله اوداسی نور.

اوبل داچې مقصودبه یې حرمت وي.دبیلګی په دول که داسی ووایي چې ته دي په ماداسی حرامه یې لکه زمادمورشا،یعنی لکه څرنګه چې هغه په ماباندي حرامه ده،همدارنګه ته هم حرامه یې؛اوکه یوڅوک خپلي ښځي ته ووایي:چې ته په ماداسي ګرانه یې لکه زمامور،په دی سره ظهارنه راحي حکه په ظهارکی به له تشبه څخه حرمت مقصودوي.

# دظهار کفاره.

دظهارپه کفاره کي لومړی داده چې غلام آزادکړي،که غلام نه وي بیابه پرله پسی دوه میاشتی روژه نیسي،اوکه روژه یې هم نشوی نیولای بیابه شپیتومسکینانوته خوراک ورکوي.حوترڅوبې چې کفاره نه وي اداکړی خپلی ښځی ته نشي ورنږدي کیدلای،دواعي دجماع هم نشي ورسره کولای؛حوکه څوک په دی باندی متبقن وی چې جماع نه راڅخه کیږي بیادواعي جوازلري؛اوکه څوک وراندی له کفاری څخه نږدی کت وکړي په دی سره دی ګنهکاردی،خوبیادی تر هغه بردی کت نه کوي چې کفاره یې نه وي اداکړی

# دیمین"قسم"بیان

دری دوله قسم دی،یمین غموس،یمین منعقد اویمین لغو،یمین غموس هغه قسم ته ویل کیږي چي په ماضي زمانه کي قصداپه یو ه فعل یاهم ترک دفعل باندی قسم وکړي،دبیلګي په دول:داسي قسم وکړي چي زه دی په الله تعالی باندی قسم وي چي په تیره شوی زمانه کي دافعل ماندی کړی،اوحال داچي هغه کاریې کړی وي؛دادول قسم کول ګناه کبیره ده؛اوددي لپاره کفاره هم نشته ځکه چي داپه اسلام کي یولوی جرم دی.

اوبل یمین منعقده ده،دبیلګي په توګه یوڅوک په راتلونکي زمانه کي په یوفعل یا په ترک دیوه فعل باندی قسم وکړي،لکه داسي ووایي چي زه به راتلونکي وخت کي فلانکي سره خبری نه کوم،ددی دول قسم ته یمین منعقدویل کیږي په دی قسم کي که حانث شي بیاکفاره شته هغه داچي یابه غلام ازادوي،یابه لسومسکینانوته خوراک ورکوي خوداطعام به له نیم صاع څخه کم نه وي چي نیم صاع اوس مهال یوه کیلواودری پاوه کیږي،اویابه لسومسکینانوته جامي کوي خوداسي جامي چي دهغوتول بدن ورباندي پټ شي،اویابه پرله پسي دری ورځي روژه نیسي؛اوکه څوک دمعصیت قسم وکړي هلته بیاحکم داسي دی چي خان به حانثوي اودقسم کفاره به ورکوي.

اوبل یمین لغودی،دبیلګي په توګه یوڅوک قسم وکړي چي په ماضي زمانه کي ما داکارکړی خودده ګمان داسي وي چي ماکړیدی اوهغه ده نه وي کړی؛یاووایي چي ماندی کړی خوهغه ده کړی وی دي دول قسم ته یمین منعقدویل کیږي؛دابیاڅه پروانه کوي.

یادونه:کفرپه معنی دپټ والي ده،دهقان ته هم کافرویل کیږي ځکه چي هغه په حمکه کي تخم پټوي؛اوکفاری ته ځکه کفاره وایي چي ستر(پټ والی) دګناه راولي.

## دالله ﷻ له نوم پرته په بل شي قسم:

قسم به په کوموالفاظوباندی کیږي دالله تعالی په نوم اوکه دهغه په صفاتو؟اوپه قرانکریم باندی قسم کول څه حکم لري؟یوه حدیث شریف کي راځي چي څوک په غیرالله باندی قسم وکړي نوداشرک ده؛[1]دبیلګي په توګه:په بیت الله باندي قسم کول یاپه قرانکریم باندي قسم کول اودسي نور..

په دی اروندعلامه علي القاري په فتح باب العنایه کي لیکلي دي چي دمتقدمینواحنافوفتوی داده چي په بیت الله یاقرانکریم باندي قسم کول جوازنلري؛په هدایه کتاب الایمان کي هم دغه خبره لیکلي ده.خوپه اوسني زمانه کي

---

۱- عن سعدبن عبیدة ان سمع ابن عمررجلا یقول:لاوالکعبه فقال:ابن عمرلاتحلف بغیرالله قال:سمعت رسول الله یقول:من حلف بغیرالله فقدکفراواشرک-جامع الترمذی۱/۲۸۰-.

قسم په قرانکریم باندی متعارف گرځی هرڅوک وایي چي زمادی په قرانکریم باندی قسم وي،په دی اره دری مذاهب شافعیان،مالکیان اوحنابله وایي چي باندي قسم کول جوازلري؛حوزموږ دفقهي حنفي په دیروکتابونوکي لیکلي دي چي په قرانکریم باندي قسم کول جوازنه لري؛خوپه موږاحنافوکي علامه عیني په البنایه کي لیکلي دي چي په اوسني دورکي په قرانکریم باندي قسم جائزدی ځکه چي اوس متعارف گرځیدلی دی،علامه ابن الهمام هم په فتح القدیرکي همداخبره کری،علامه علی قاري هم ددی تأیید کری،او علامه شامي هم ردالمحتارکی لیکلي دي چي په قرانکریم باندی قسم کول جوازلري.[1]

خو علامه ابوبکرکاساني په البدائع الصنائع کي لیکلي دي چي مصحف غیرمتعارف دی نوپه دی باندی قسم ندی صحیح؛ اعلاءالسنن کی ددی لپاره ځانگړی باب ذکرشویدی هلته یي له یوه حدیث څخه استدلال کری چي عبدالله ابن مسعود اوحینونوروصحابه وبه په قرانکریم باندي قسم جائزگاڼه؛سره له دی چي زموږمتقدمین احناف قسم په قرانکریم باندی ناجائز گڼي،خومتأخرین اومحققین ددي په جوازباندی قائل دي.

اوایاپه بیت الله باندی قسم کول جوازلري؟که متعارف والي ته نظروشي نوښایي چي په بیت الله باندی هم قسم کول جائزشي،کڼي اصل کي خوقسم دالله تعالی په نوم اوهغه په صفاتوباندی وي،نبي کریمﷺ به په دی الفاظوباندی قسم کاوه یامقلب القلوب،والذي نفسي محمدبیده،[2]والله[3] اوداسي نور. کذافي فتح الباري للعلامه ابن حجر العسقلاني.

## دکفاراتوتداخل:

که چادیرقسمونه کري وي اوکفاري ورباندي لازمي شوی وي،نوتداخل دکفاراتو هم کولای شي؛بیاکه یوه کفاره اداکري له ټولوقسمونوڅخه همدایوه کفاره صحیح کیږي؛ازموږدفقهي حنفي په دیروکتابونوکي دامسئله لیکلي ده کذافي اعلاءالسنن وردالمحتار.[1]

۱- (ولایخفی ان الحلف بالقرآن الان متعارف فیکون یمینا)....وبه اخذ جمهور مشائخنا...لکونه صفة تعورف الحلف بها کعزة الله وجلاله ردالمحتار۵/۵۰۳.

۲- عن ابا هریره سمعت النبي صلی الله علیه وسلم یقول والذی نفسي بیده لولا ان رجالا من المؤمنین....والذي نفسي بیده لوددت اني اقتل في سبیل الله ثم احی صحیح البخاری۱/۳۹۲.

۳- قال سمعت النعمان بن بشیریقول....اقیموا صفوفکم ثلاثا والله لتقیمن صفوفکم سنن ابي داود۱/۹۷.

۱- کفارات الایمان اذاکثرت تداخلت،ویخرج بالکفارة الواحدة عن عهدة الجمیع ردالمحتار۵/۵۰۵.

# دنذربیان:

نذر په لغت کې په خپل ځان باندې دیوه شي لزوم ته ویل کیږي،اوپه اصطلاح کې دې ته ویل کیږي چې یومکلف انسان په ځان باندې داسې یوشي لازم کړي چې هغه په ده باندې نه وي؛بیانذرپه دوه ډوله دی،یونذرمنجزدی اوبل نذرمعلق؛ منجزهغه نذرته ویل کیږي چې یوڅوک ووایي په ماد دوه رکعاته لمونځ نذروي،یاداسې ووایي.که ماته الله تعالی شفاراکړه نوپه ماد دومره رکعتونه لمونځ نذروي،یاکوم طالب العلم په کتاب نه پوهیږي په کومه مسئله چې پوی شي نوله ډیرې خوشحالي څخه ووایي چې په ماد یوه ورځ روژه نذروي؛دې ډول نذرته نذرمنجزویل کیږي.

اونذرمعلق هغه نذرته ویل کیږي چې تریوشي پورې معلق وي،دمثال په ډول یوڅوک ناروغ لري هغه ووایي.که الله تعالی زمانا روغ ته شفاورکړله نوپه ماد دومره صدقه نذروي،یاداسې ووایي.که له هغې فلانکې جیلې سره زمانکاح وشوه نوپه دې داسې داسې نذروي؛هرهغه نذرچې تریوشي پورې معلق وي هغه ته نذرمعلق ویل کیږي.

اوتوکه هم په نذرکې داسې ده لکه ربښتیا،که څوک دتوکي په ډول یوشي په ځان باندې نذرکړي نوهغه توکه په ده باندې نذرګرځي.اوبل په نذرکې شرایط دي چې یوله هغوشرایطوڅخه داده چې دانذربه دمعصیت اوګناه لپاره نه وي،که څوک دمعصیت لپاره نذروکړي یابه دامعصیت لذاته وي اویابه لغیره وي،که معصیت لذاته وه لکه:زنا،لواطت،غلااوداسې نور..ددې ډول نذرحکم دادی چې دانذرقسم ګرځي،په دې صورت کې به ځان حانثوي اوکفاره دقسم به ورکوي؛اوکه معصیت لغیره وه،لکه داخترپه ورځ روژه نیول،په دې ورځ باندې روژه نیول ګناه نلري معصیت دبل شي له وجې ورکې راغلي چې هغه ورځ دضیافت دالله تعالی ده له دې سره مخالفت راځي،کنې په خپله روژه نیول په دې ورځ باندې ګناه نلري،نوحکم داسې دی چې په دې ورځ به روژه نه نیسي بیابه یې قضایي راوړي.

بل داچې عبادة مقصودي به وي،دبیلګې په ډول لمونځ عبادت مقصودي دی،اودس عبادت غیرمقصودي دی حکه چې اودس دلمانځه دصحت لپاره وي،که څوک په ځان باندې اودس نذرکړي نونذریې نه صحیح کیږي.

بل داچې له داچې له خپل جنس څخه به واجب یافرض لري،دبیلګې په ډول یوڅوک په ځان باندې لمونځ نذرکړي دادول نذرځکه صحیح دی چې بیرته په لمانځه کې داسې لمونځ شته چې هغه واجب دی خودلته له واجبوڅخه فرض مراددي؛دروژې نذرکول،دصدقې نذرکول،دحج نذرکول داټول نذرونه

صحيح کېږي؛اوکه څوک په ځان باندې داسې يوشی نذرکړي چې هغه له خپل جنس څخه واجب نه لري،دبېلګې په ډول يوڅوک په ځان باندې نذرکړي چې زه به هروخت مريضانو پوسه کوم دادول نذرنه صحيح کېږي ځکه چې دمريض پوښتنه کول سنت ده له خپل جنس څخه واجب نه لري.

اوبل داچې في الحال به په نذرکونکي باندې واجب نوي.

## دغيرالله لپاره نذرحرام دی

رمونږپه خلکوکې عرف جوړشويدی چې دزيارتونولپاره نذرونه کوي،دبېلګې په ډول:يوڅوک زيارت ته ورشي چې ای فلانکی بابا که زماناروغ جوړشونوپه مادی نذروي چې زه به ستالپاره يوچرګ يايسه ذبحه کړم،ياکه زمامسافرراغی نوزه به ستاپه نوم يوپسه نذرکړم دادول نذردغيرالله لپاره ده شرعاجوازنه لري حتی چې علماوليکلي دي چې دادول نذرشرک ده، خوباريکي که داسې ووايي چې پيرصاحب دتالپاره مې نذرده دنجوازنه لري؛اوکه داسې ووايي:چې ياالله تعالی که زماحاجت پوره شونوپه مادی نذروي چې زه به يوپسه حلالوم اوپه زيارت کې چې څومره غريبان دي په هغوی به يې خوړم،دادول نذربياجوازلري؛کذافي الفقه الحنفي في ثوبه الجديد،البحرالرئق،تبيين الحقائق وردالمحتار.[۱]

## دپلورلواوپيرودلوبيان.

آياپه اسلام کې دافينواوچرسوبيعه جوازلري؟په دې اړوندچې له فتاوای حقانيې څخه چې کومه فتوی غوښتل شويده هغوی چې کوم عبارتونه له ردالمحتارڅخه رانقل کړيدي له هغوڅخه صراحة ددی جوازمعلوميږي خودوی دعدم جوازفتوی وکړيده؛په اوسني دورکي خينې فتوی ګانې هم سياسي ارخ لري،خودې عاجزبنده ته هم په دې اره يوڅه معلومات شته هغه داچې ردالمحتارکتاب الاشربه کې په دی مسئله کې دامام صاحب په مذهب فتوی شويده چې هغه وايي:ددې شيانوبيعه جوازلري.[۲] مجموعة الفتاوی دعلامه لکنوي کې هم ليکلي دي چې دچرسوبيعه جائزه ده،هاته يې هم له ردالمحتار اودرالمختارڅخه عبارتونه نقل کړي دي؛الفتح الرباني دويم جلدکې هم ليکلي چې دافينواوچرسوبيعه

---

۱- الان قال:ياالله الي نذرت لكان شفيت مريضي اورددت غائبي اوقضيت حاجتي ان اطعم الفقراءالذين بباب السيدة نفيسة ردالمحتار- ۳/۴۹۱.

۲- وصح بيع غيرالخمر:عنده خلافهما في البيع والضمان،لكن الفتوى على قوله في البيع ردالمحتار ۱۰/۳۱ .

جوازلري په اوسني دورکي اکثره اقلي په کفري ممالکوکي استعمالیږي چې داهم ددوی په معاش کي یوه نوعه دحهاددي

## دنسواروپلورل

دنسواروحرڅول هم جوازلري،الفتح الرباني امجموعة الفتاوی دعلامه عبدالحی الکنوي کي لیکلي دي چې دنسواروپلورل جائزدي

## په دواګانوکي الکحول:

هغه دواګاني چې په هغوکي الکحول خلط وي ایادهغودواګانوپلورل جوازلري؟په دی اړوندمفتي تقي صاحب په تکمله دفتح الملهم کي لیکلي دي چې کوم الکحول له انګوراوخرماوڅخه جوړیږي دهغوحوړل اوڅښل حرام دي خوهغه الکحول چې اوس په دنیاکي مروج دي دهغوترکیبي اجزامیطرول،خضراوات(ترکاري)اوبقول(داني)دي دادول الکحول که حددسکرته ونه رسیږي استعمال،پلورل اوپیرودل یې جوازلري؛تومورې په خپلوتریوکتابونوکي دامسئله لیکلي ده تکمله دفتح الملهم،بحوث اوفتاوای عثمانیه [۱]

## دمغیباتوپلورل:

هغه شیان چې هغه په ځمکه کي پټ وي،دبیلګی په دول:پیاز،کچالو،شلغم اوداسي نور ناپېژندي شیانوبیعه جوازلري؟ علماولیکلي دي چې دپیازوحکم دغسي په شان دی،که څوک یوه کونه دغسي چپلندي حرڅوي نوټول غم خونه بسکاري یواحی دسرلوري ته چې کوم غم وي هغه ځرګندوي چې دادول بیعه شرعا جوازلري.

هغه شیان چې په ځمکه کي پټ وي په دي اړوندعلماوداسي لیکلي دي چې که داڅرګنده شي چې په ځمکه کي شتون لري،بیایې پلورل جوازلري؛که څوک ووایي چې څه دول یې معلومات کیدلای شي

---

[۱] - فان کانت الکحول المستعمله في الادوية متخذة من غیرالعنب والتمرفان تناولهاجائزفي مذهب ابي حنيفه وابي يوسف بقصدالتقوی والتداوي مالم تبلغ حدالسکار (بحوث في قضايافقهية المعاصرة/ ۳۴۰)

چي په حمکه کې وجودلري؟مونږ وړونه خواب کووچي ماهرین في الفن ورباندې پوهيږي چې په حمکه کې شتون لري اوکنه؛كذافي الفقه الحنفي في ثوبه الجديد وردالمحتار [۱]

## دغلاشوي مال پيرودل جوازنه لري:

هغه مالونه چي غلاشوي وي یاهم له چاڅخه په زوراوظلم اخیستل شوي وي اوخلکوته سه علم وي چي دادغلامال دی،ددې دول مال اخیستل په شرعه کې جوازنه لري؛فتاوای اسعدیه کې لیکلي دي چي که یوڅوک له چاڅخه کوم شي غصب کړي،ترڅوچي دهغه غصب شوي شي ضمان ورنکړي هغه دده په ملک کې نه راحي؛نوپوشي چي دچاپه ملک کي نه وي داخل کله دهغه بیعه کولای شي دغلادمال هم دغه حکم دی.

## مسفوحه وينه پلورل:

خوني خلک له دبحي ځحه وروسته مسفوحه وینه خرڅوي بیاهغه وینه په فارموبوکي چرګانوته ورکوي آیاددی پلورل جوازلري؟علماوددي وینې دپلورلوپه جوازباندې فتوی کړیده،سره له دې چې داتر عرف اورماني یوری هم یوڅه تړاولري لکه دانساناتودغایطوپلورل مخکې دعلماوفتوی په دې ارونداسي وه چې که ایرې اوخاورې ورسره خلطشوي وي بیایي پلورل جوازلري،خواوسني دورکي دانساناتو غائطي هم مال کرحیدلي دي؛فتاوای حقانیه کې ددې په جوازباندې فتوی شوېده

## داسبابو پلورل:

یوخونساز اوسرود دالاتوپلورل دی،لکه باجه،تبله،تنبوراوداسي نور..اوبل دتیپ رادیواوداسي نوروشیانوپلورل دي،ددی دواړوترمینځ توپیرشته؛زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې لکه:ردالمحتار، تبيين الحقائق اوفتاوی هندیه کې لیکلي دي چي یابه داشي داسي شی وي چي یواحې دمعصیت لپاره جوړشوي وي دادول شیان پلورل اوپیرودل شرعا جوازنه لري.اویابه داشي داسي وي چي یواخې دمعصيت لپاره نه بلکه سه استفاده به هم ځنې کیدلای شي،ددی دول اسبابوپلورل اوپيررنل جوازلري.[۲]

---

۱- قوله (بیع ماصه عشب)ای مانبت في باطن الارض. وهذااذاكان لم ينبت اوينبت ولم يعلم وجوده وقت البيع و لاجازيعه رداغطار- ۷/۲۳۶.

۲- جوازبيع العصيربانه لاتقوم حصية عينه بل بعتغيره فوكبيع المسمحن اهل الفتنةبلانه وان كان يعمل منه السلاح لكن بعتغيره احداث صنة حرى رداغطار ۹/۶۴۷.

عن حقائق السنن،تعليق الصبيح،انجاح الحاجه على السنن ابن ماجه للعلامه عبدالغني الدهلوي و اشعه اللمعات للعلامه عبدالحق

داسي نه ده چي دادول بيعه يواځي زمونږ پرمذهب ناجائزه ده،دشوافعو اومالکو پر مذهب هم دادول بيعه جوازنه لري؛بواځي امام احمدبن حنبل ددې بيعي په جوازباندې قائل دی.په شافعي مذهب علماوکي علامه ابن حجره په التحفة المحتاج کي ليکلي دي چي بيعه دعربون ناجائزه بيعه ده،په مالکي مذهبه علماوکي علامه عبدالباقي الزرقاني په موطاامام مالک باندې شرحه کړی هلته بی هم دامسئله ليکلي،په غيرمقلدينوکي علامه اعظمي عون المعبودکي ليکلي دي چي داجمهورو علماو مذهب دی چي دادول بيعه جوازنه لري،علامه شوکاني په نيل الاوطارکي ليکلي دي چي بيعه دعربان په اسلام کي جوازنه لري.

بيادد‌ی حديث په سندباندی هم علماوتحقيق کړيدی کوم چي ددی بيعي په نه جوازکي راغلی دی تلخيص الحبيرکي علامه ابن حجر،فيض القديرکي علامه مناوي اوعون المعبودکي علامه اعظمي ليکلي دي چي داحديث ضعيف دی؛اوعلامه شوکانی هم ددی حديث ضعيف والی منی خونوموړي ليکلي دي چي په متعددوطريقوسره راغلی په دی سره مرتبي دحسن ته رسيږي اوحسن داستدلال وړوي؛نودغه بيعه چي زمونږپه هيوادکي رواج ده دبياني په نوم باندی داپه شرعه کی جوازنه لري . همداذجمهورو علماومسلک دی.

## غنم په وړوباندې پلورل:

غنم په وړوباندې په کيل سره پلورل ناجائزدي ځکه چي غنم مخلخل دي په کيل کي کم راځي؛ځوپه وزن باندې پلورل يي جائزدي.

معترضه جمله:سويق ستوانوته نه ويل کيږي کماهوالمشهوربين العلماء،کتابونوکي دسويقوتعريف په دي دول شويدی: هوحنطة المقلواياحنطة المعلوايعني هغه غنم چي ني ني کړای شوی وی،يامېده کړای شوی وي دی ته سويق ويل کيږي.

## دسودبيان.

ربوا(سود)هغه عقدته ويل کيږي چي يوشی په خپل جنس باندي وپلورل شي اوهغه له مکيلاتو اوموزوناتوڅخه وي،که په نسيه باندي يي پلوري،يايي متفاضلا پلوري دواړه دوله حرځول يي جوازنه لري؛دبيلګي په توګه يوځوک چاته ووايي:چي ته اوس ماته دومره اندازه غنم راکړه زه به يي

ددرمندونوپه وخت کې بیرته درکرم دی ته نسیه ویل کیږي،دادول بیعه شرعا جوازنه لري حوکه مختلف الجنس وي په هغه کې بیاتفاضل(زیات والی) جانزدی خونسیه بیاهم جوازنه لري

زموږدااحنافوپه مذهب دربواعلت قدرمع الجنس دی اوس مهال خلکوکي عادت دی چې یوبل ته وایي ته اوس ماته دومرمقدارغنم راکره زه به بیاددرمندونوپه وخت کې ستاغنم بیرته درکرم په دی غنموکي قدرهم موجوددی اوجنس هم موجوددی اوپه کوم شي چې قدرمع الجنس موجودشي په هغه کې تفاصل اونسیه دواړه جوازنه لري.ددی لپاره دحلال والي طریقه په دی دول ده چې ورته ووایي دومره مقدارغنم په قرض باندی راکره کله چې ماپیداکرل بیابه یې بیرته درکرم؛ دبیعي لفظ دی نه ورسره ذکرکوي حکه چې بیاربوا دنسي پکي راځي اوداشرعاجوازنه لري.که څوک یوجریب ځمکه په لسوجریبونوباندی وپلوري په دی کې سودنه راځي ځکه چې ځمکه له مکیلاتواوموزوناتوڅخه نه ده؛اوپه ربواکې شرط داده چې له مکیلاتواوموزوناتوڅخه به وي ددی لپاره دلیل دااحدیث دنبي کریمﷺ دی چې:(الحنطة باالحنطه مثلابمثل يدابيدِ والفضل ربوا).[1]

# په اوراقوکي سود.

دری دوله روپۍ دي:یودول هغه روپۍ دي چې له سرواوسپینوزروڅخه جوړې شوی وي،بل دوا هغه روپي دي چې له عادی اوسپنی څخه جوړې شوې وي اوبل دول هغه روپي دي چې له کاغذڅخه جوړې شوی دي چې دی ته اوراقي ویل کیږي؛په کوم دول روپیوکي سودناجائزدی؟

زمونږدااحنافوپه مذهب دربواعلت قدرمع الجنس دی،په پخوانی زمانه کې سره اوسپین زرپه وزن باندې پلورل کیدل،دهرې روپۍ وزن معلوم وه،دبیلګې په دول لس روپۍ وه متقاله کیدلې اوهرمثقال څلورنیم ګرامه وه،نوپه دی دول روپیوکي قدرمع الجنس موجودشو.

اوبل دول روپۍ فلوس دي آیاداهم په دنیاکي په وزن خرڅیدلي اوکنه؟په دی اره علماولیکلي دي چې دفلوسوپه نرخ کې پرته له وزن څخه راکره ورکره کیدله،نوکه څوک یوفلوس په دوفلوسوباندی ورکوي نوښایي چې داجانزوګرځي ځکه چې دلته قدرمع الجنس ندی موجوداوداله مکیلاتو اوموزوناتوڅخه هم ندي؛په دي اړوندیوڅه تحقیق دذکروړدی هغه داچې په دنیاکي لومړی بیعه

---

[1] -عن ابي هريره قال:قال النبي صلى الله عليه وسلم التمر بالتمر الحنطة بالحنطه والشعير بالشعير والملح بالملح مثلا بمثل يدا بيد فمن زاد او استزاد فقد اربى-صحيح مسلم ۲/۲۲-.

دمقایضې وه،یعنې بیعه دعین په عین باندې وه[1] دبیلګې په توګه غنم به یې ورکول وره به یې ورباندې اخیستل؛تردې وروسته په نړۍ کې سره اوسپین زر رابیداشول بیا یې همدې باندې حلکوراکړه ورکړه کوله،[2] دالاهغه وخت وه چې روپۍ نه وې ورځخه جوړې شوې،له سپینوباسروورروځحه به یې یوه ټکره ماته کړه په هغه به یې پلوڼل اوپیرودل کول،تردې وروسته بیاروپۍ ورځخه جوړې شوې[3] سره اوسپین زر الله تعالی خلقتا قیمتي پیداکړیدی،دامروجې روپۍ خواصل کې کاغذی حیله هیڅ قیمت نه لري عرف او اصطلاح قیمت ورکړیدی.

دائرة المعارف البرطانیه کې لیکلي دي چې په(۱۷)میلادي قرن کې دبانک نوټ په نوم باندې یوشی دوثیقې اوسندپه شکل مینځ ته راغلل،بیایې(۱۸۳۳)میلادي کال باندې په اروپایي هیوادونوکې دنړۍ په بین المللي قانون کې دې روپیوته قیمت ورکړل شو؛[4] نودنړیا په تاریخ کې درې دوله روپۍ وې ۰ لومړی دسرواوسپینوزروزروپۍ،دویم په فلوسوباندې راکړه ورکړه اودریم متعارفې اوراقي؛ زمونږ داحنافویه مذهب دربواعلت قدرمع الجنس دی او اصل کې چې سودناجانزګرځیدلی وه هغه دسرو اوسپینوزروپه روپیوکې وه،یاحینووختونوکې دپوستکوروپۍ وې؛اوس دفلوسوځه حکم دی داخو په عددباندې پلورل کیږي په وزن باندې خونه خرڅیږي،نوبنایي چې سودپکې رانشي دبیلګې په دول یوځوک چاته لس پنځه کونې ورکړي هغه بیرته په مقابل کې شپیته روپۍ ورکړي آیاداجوازلري؟که اصل ته نظروشي بیاخوجوازلري ځکه چې زمونږداحنافویه مسلک دربواعلت قدرمع الجنس دی اوداخومکیلات اوموزونات ندی نوبنایي چې تفاضل پکې جانزشي بیاخو دسود دروازه خلاصه ده.

په دې اړونددامام مالک رحمه الله فتوی داده چې فلوسوته په اصطلاح کې ثمني ویل کیږي،خودی ته په شرعه کې ثمنیت ندی ثابت؛ الودونة الکبری دامام مالک رحمه الله دمذهب فقه ده هلته یې لیکلي دي چې په فلوسوکې تفاضل ناجانزدی.امام شافعي رحمه الله وایي چې اصل په اثمانوکې جوهریت معتبردی،یعنې روپۍ هغه دي چې جوهراوذات یې روپۍ وی اصطلاح ته اعتبارنشته التحفة المحتاج اونهایة المحتاج چې دادواړه دامام شافعي رحمه الله دمذهب فقه ده هلته یې لیکلي دي چې اصل په اثمانوکې جوهریت دی لکه سره اوسپین زر،دوی وایی چې فلوس له سره روپۍ ندي تفاضل پکې جانزدي.

---

1- ان الناس في بداية حيات البشرية كانوا يتبادلون الاشياء عن طريق المقايضه-(بحوث احكام اوراق النقودوالمعملات/۱۲۸)

۲- بدءالناس في استعمال الذهب والفضه كاثمان في المبادلات لقيمتهاالذاتيه في صنع الحلي ولاواني-(بحوث احكام اوراق النقودوالمعملات/۱۴۹)

3- ثم شرع الناس في سک النقود من الذهب في بعض البلادومن الفضه في بلادالاخرى-(بحوث احكام اوراق النقودوالمعملات/۱۴۹)

4- لما ازادالشيوع(البنكنوت)جعلتها الدول ثمناقانونيافي سنة ۱۸۳۳ م-(بحوث احكام اوراق النقودوالمعملات/۱۵۰)

په مونږ احنافوکی شیخین(امام ابوحنیفه رح اوامام ابویوسف رح)وایي چې که څوک یوفلوس په دوفلوسوباندی خرڅوي چې اصل یې سره اوسپین زرنه وي ندی پلورل جائزدي ځکه چې په دې کې قدرمع الجنس ندی موجود؛خوپه مونږاحنافوکي دامام محمد رح مذهب دادی چې فلوسوکی هم تفاضل ناجائزدی[1]زمونږداحنافودمذهب فتوی هم دامام محمد رح په قول شویده دی مسئله کی تقریبا ټول علماو اوموالکورایه یوه ده.

داخودفلوسومسئله شوه اوس به اوراقوته راشوچې ندی څه حکم دی آیاریادت پکې جائزدی اوکه په دې کې هم قدرمع الجنس نه دی موجودځکه چې داهم په عددباندی پلورل کیږي،نوښایی چې زیادت پکې جائزشي؛خوپه دی مسئله کې هم فتوی دامام محمدپه مذهب ده هغه وایي چې اوراقی اوس مهل اثماني اصطلاحي ګرځیدلي دي،لکه څرنګه چې په خلقتي اثمانوکی تفاضل اونسیه ناروا ده همدارنګه داوراقوهم دغه حکم ده.[2]

اوبل داچې قیمت ته اعتبارده عددته اعتبارنشته،علامه مفتي تقي په تکمله دفتح الملهم اوبحوث کتابونوکي لیکلي دي چې دیوه هیوادروپې یوجنس دی اودبل هیوادبل جنس دی،دبیلګې په توګه افغانی اوکلداری په دی کی تفاضل جائزدی،لکه په غنمواوجواروکی چې تفاضل جوازلري؛که څوک افغانی په افغانیوباندی بدلوي په دی کی بیاتفاضل اونسیه دواړه ناجائزدي ؛خوکه څوک افغاني په کلداروبدلوی بیاپه دی کي تفاضل جوازلري اودروپیونوښت اوزوروالي ته هم اعتبارنشته نتولویو دول حکم دی؛کذافي خکم الاوراق للعلامه مفتي تقي العثماني.[3]

## بیعه دصرف:

اثماني په اثمانو(روپی په روپیو)بدلولوته بیعه دصرف ویل کیږي،اصل کی بیعه دصرف په اثمانوخلقتیه وکي ده کذهب والفضة،اوس مسئله داده چې یوڅوک سره زرپه سروزرروبدلوي،بدلیدونکي هم وی اومثلابمثل به هم وي،ربوادتفاضل اوربوادنسي دواړه پکي ناجائزی دي.دربواپه بحث کی ذکرشوچي زمونږداحنافوپه مذهب دربواعلت قدرمع الجنس دی،خو که یوصفت پکی موجودوي اوبل نه وي لکه دسروزروپه سپینوزروباندي پلورل په دی کي تفاضل جائزاونسیه ناجائزه ده؛ ننده داچې

---

[1] - ان قول الامام محمد یبدو راجحاًمن حیث الدلیل ایضاً-(بحوث-حکم اوراق النقودوالعملات/۱۶۵)

[2] - فالصحیح الراجح في زماننا ان مبادلة الاوراق النقدية انماتجوزبشرط تماثلها،ولایجوزالتفاضل فیها-(بحوث-احکام اوراق النقودوالعملات/۱۶۶)

[3] - ان عملات الدول المختلفة اجناس مختلفة،لذالک تختلف اسامیها-(بحوث-احکام اوراق النقودوالعملات/۱۶۷)

بیعه دصرف په لومړیوکی په اثمانوخلقتیه وکي وه،ترهغه وروسته فلوسوته حیره راغله اوترهغه وروسته په اوراقوکي هم دادول بیعه پیل شوه.دامتعارفي اوراقي چي له موږسره دي داخواثماني خلقتي نه دي ایاپه دی کي ربواشته اوکنه؟

تحقیق وراندی ذکرشوچي یودشیخینومذهب وه،بل دامام محمد حوفتوی دامام محمدیه مذهب باندی شوی وه،چي داوراقوحکم هم لکه داثمانوخلقتیه وداسي ده،څکه چي اوس په دنیاکي همداروپی دي اوداخبره هم ذکرشوه چي دهرهیوادروپی خانته جنس دي،نوم ته یي څه اعتبارنشته لکه:په افغانستان، پاکستان،هندستان،اوداسي نوروهیوادونوکي پیسوته روپی وایي؛بعضو نوروممالکوکی لکه سعودي، عراق اوداسي نورهلته ریال ورته ویل کیږي؛اواکثره اروپایي هیوادونوکي روپیوته ایرو ویل کیږي؛ لنده داچي نوم ته اعتبارنشته دهرهیوادروپی خانته جنس دی.که څوک افغانی په افغانیوبدلوي دی ته بیعه دصرف وایي،په دی بیعه کي تفاضل اونسیه دواړه جوازنه لري؛که څوک افغانی په کلداروباندی بدلوي بیاتفاضل جانزاونسیه بیاهم ناجانزه ده.

اوبل شرط په بیعه دصرف کي داده چي قبض دعوضینوبه کوي،یعنی دواړه جانبه به قبض کوي په خلاف دبیعي که څوک په چاباندی کوم شی وپلوري اوروپی اوقبض نکړي داجوازلري خویه بیعه دصرف کي به دواړه جانبه قبض کوي؛خومفتي تقي په تکمله دفتح الملهم اوبحوث کتابونوکی لیکلی دي چي که دیوه جانب قبض وشي هم صحیح ده،دردالمحتارله عبارتونوڅخه هم داسي څرګندیږي چي دیوه جانب په قبض کولوسره هم دابیعه صحیح کیږي،نوموړی لیکلي دي چي داهم بیعه ده اودبیعی حکم دادی چي یوجانب قبض وکړي هم صحیح ده،نوموړي په کتاب الصرف کي لیکلي دي چي دیوه جانب قبض ضروري دی.[1]څکه چي روپی دواړه جانب ممالایتعین دي نورحکم یي دبیعي په شان دی،اوکه یوجانب هم قبض ونکړي بیادابیعه دکالي په کالي باندي ده دابیاجوازنه لري.علامه مفتي تقي په خپل بحوث کتاب باندي تعلیق کریدی هلته یي لیکلي دي چي والتنبه:یعني یوی شي داکومه خبره چي ماکریده مادعلامه شامي رایه مختاره کړي وه،خواوس مي دابوبکرکاساني رایه مختاره کریده نوموړي په البدائع الصنائع کي لیکلي دي چي قبض ددواړوجانبینوضروري دی؛نوموړي لیکلي دي چي په اثمانوخلقتیه وکي خوددواړوجانبینوقبض په طریقه اولی ضرورده،خوپه دي متعارفواوراقو کي چي په بیعه دصرف یي تبادله کوي دلته به هم دواړه جانبه قبض کوي څکه چي مونږدربوا په بیان کي ویلي وه،که جنس بدل وه هلته بیاتفاضل جانزدی اونسیه ناجایزه ده؛نوکه څوک روپی په روپیوبدلوي

---

[1] - وقيدبالنقدين لانه لوباع فضة بفلوس فانه يشترط قبض احدالبدلين قبل الافتراق لاقبضهما كمافي البحر....(والعوضان لايتعينان)اي في الصرف مادام صحيحا،امابعدفساده فالصحيح التعين ردالمحتار٥٥٥-٥٢٥/٧-.

هلته په قرض دعوصیبوکړي حکم چي په دی کي تسیه دجائزه ده؟نده داحي بوخوک په صرافی کی روپی په روپیوسئوي ،توره حسیه په قرض کوي هنداتحقیق حیره ده اوعمقي نفي وسئی شوي هم دعه ده

## که دروپیوپه هینت کی تغیرراشي بیاڅه حکم ده؟:

که یوخوک چاته په قرض بندی روپی ورکړي چي تورکړی پرمهال یې قیمت نوښول وي،خونرهغه وروسته دهغوروپیوپه قیمت کی تغیرراشي نوبیرته به منیون ته کوم نول روپی ورکول کیږي؟په دی اړه علامه شامي ردالمحتارکی لیکلي اوعلامه خیرالدین فتوای خیریه کی لیکلي دي چي دهغه وخت قیمت معتبردی کوم کی چي ورکړل شویدي،قیمت به په دی نول معلوموي چي تورکړی پرمهال نسیپونسرورروقیمت په عام بازارکی څومره وه،سیفه یې نه لوسنی وخت سره پرتله کړي،هغومره روپی به منیون ته ورکوي،تورکړی نوحت قیمت ته اعتباردی دروپیوټیټ والی اولوړوالی ته اعتبارنشته.[1]

## دنویوروپیوپه زړوروپیوباندي بدلون

خلکوکي عادت دی چي کله مړی وشي بیانمړي ورته یوڅه مقداررویی صرافی ته یوسي،هلته صراف ته وایي چي په دی باندی ماته نوی یاهم میده روپی راکړه،صراف ورته وایي چي سمه ده خوته به ماته په زړو روپیوکی لس یاشل روپی کمه راکوی،دادول معامله کول صراحة سود دی،ځکه نویاردي(نویواوزړو)روپیوته په شرعه کی اعتبارنشته.

## دګروي بیان.

اوس مهال چي په دنیاکی کومی مروجي ګروی کیږي په دی کی دعلماواختلاف دی،بعضی علماءوایي چي مرتهن ته په مرهوني باندی انتفاع اخیستل جواز لري،اوځینی نور علماءوایي چي مرتهن ته انتفاع اخیستل له مرهوني څخه جوازنه لري ځکه چي داسودداوربواده،ځکه ورته داحدیث شریف راوزي چي:کل قرض جرنفعافهوربوا.[2]هنداجمهوروعلماومذهب دی

---

[1] - وحاصل ماحرناه على قول ابي يوسف المفتى به لافرق بين الكساد والانقطاع والرخص والغلاء في انه تجب قيمتها يوم وقع البيع اوالقرض لامثلها-ردالمحتار ۷/۵۲-

[2] - كل قرض جرنفعا فهوربا،روى البيهقي في سننه الكبرى۵/۵۷۱- واعلاءالسنن۱۲/۱۲- مخرج حماسي.

خودري علماءداختلاف بل لورته دي چي هغه:امام احمدبن حنبل،اسحاق بن راهویه اوسفیانثوري،دوی وايي چي دمرتهن لپاره انتفاع په مرهوني باندی جوازلري دوی دخپلی مدعی لپاره له دی حدیث شریف څخه استدلال کوي چي:الظهريركب بنفقته اذ كان مرهونا ولبن الدريشرب بنفقته اذاكان مرهونا وعلى الذي يركب ويشرب النفقته.[1]مطلب داچي پوڅوک له چاڅخه اس یااوس یابل شیب په گروي باندي واخلي نومرتهن ته داجوازشته چي په هغي مرهوني باندي سپورشي؛او هغه حیوان چي هغه دتيوو الاوي له هغي څخه شودي هم خورلای شي؛اونفقه ددي حيوان په هغه چاباندي ده څوک چي ورباندي سپريږي اوشودي يې خوري.

جمهوروعلماودی حدیث ته کن شمیرخوابونه کړيدي،لومړی خواب داچي لکه څرنګه ضمیرمرتهن ته راجع کیدلای شي همدارنګه راهن ته هم راجع کیدلای شي که راهن ورباندي سپورشي نفقه يې په هغه ده،اوکه مرتهن ورباندي سپورشي بيايي نفقه په مرتهن باندي ده،خوداخواب ضعیف دی خکه چي نیل الاوطارکي په دي حدیث کي صراحة دمرتهن لفظ راغلی دی.

دویم خواب داچي داحدیث منسوخ ده،بیاجمهورپه خپل مینخ کي په دي اره دوه توتي دي خوپه دی باندی دتولواتفاق دی چي دمرتهن لپاره په مرهوني باندي انتفاع اخیستل جوازنه لري؛خوپه جمهوروکي بعضی علماءوايي چي په دي حدیث کي مونږتأویل کوو اوبعضي نورعلماءوايي چي داحدیث منسوخ دی،یوله دی علماوڅخه چي هغوی ددي حدیث په نسخي قائل دي امام طحاي دی نوموري لیکلي دي چي داحدیث شریف په آیتونودربواباندي منسوخ شویدی؛بل له دی علماوڅخه حافظ عبد البر المالکي دی هغه هم ددي حدیث په نسخي قائل دی؛اوبل علامه عیني دي نوموري په عمدة القاري کي لیکلي دي چي ددي حدیث شریف روایت له حضرت ابي هریره څخه شویدی بیابیرته له هغه څخه پوښتنه شوی چي انتفاع په مرهوني باندي څرنګه ده؟هغه خواب ورکړی چي جوازنه لري دنه جوازقول بیرته دخپلي خبري لپاره رددی.

اوخیني علماءوايي:چي داحدیث منسوخ نه دی یوله دي علماوڅخه علامه ابن حجردی،نوموري په فتح الباري کي لیکلي دي چي داحدیث منسوخ نه دی نوموري په امام طحاوي باندي اعتراض کړی چي دناسخ اومنسوخ زمانه به معلومه وي دانیته چاته معلومه ده چي داحدیث منسوخ دی؟په مونږ احنافوکي علامه ظفراحمدهم دعلامه ابن حجرخبره لیکلي ده؛اوارشاد الساري المشهور باالقسطلاني کي هم دغه خبره لیکل شویده.هغه علماءچي ددي حدیث نسخه نه مني هغوی وايي:چي مونږپه دی

---

[1]- صحيح البخاري كتاب الرهن ۱/۳۴۱.

حدیث کي تأویل کوو هغه داچي اصل کي نفقه دمرهوني په راهن باندی ده،حوکله چي مرتهن ورباندی نفقه وکړي بیاله هغې مرهونې څخه گټه پورته کولای شي دبیلگی په توکه:له نفقي څخه شودي څښل دنفقي په عوض کي جوازلري نودلته انتفاع نه.ورباندی راځي ځکه چي انتفاع حوبه هلته وه چي پرته له عوض څخه یي گټه ورڅخه اخیستلای؛بذل المجهود اوعون المعبودکي هم دغه خواب نقل شوی دی؛خوعون الباري کي علامه نواب صدیق حسن خان دامام احمدبن حنبل رایه مختاره کریده خودایواخي په سپارلي اوشودوڅښلوکي په نوروشیانوکي نواب صدیق حسن خان هم مخالفت څرگندکریدی؛ تحفة الاحوذي کي همدي لپاره خوابونه شویدی سره له دی چي دده میلان هم دامام احمدخبری ته دی خوپه خپله یي لیکلي دي چي دځمکي گروي مونږ په دی باندی نه قیاس کوو؛ اوپه الکوکب الدري کي علامه رشیداحمد الگنگوهي خپل خانگری تأویل کریدی؛ حینونورو علماوهم بیلابیل تاویلات کریدي تقریبادتولي نری علماولیکلي دي چي دمرتهن لپاره انتفاع اخیستل له مرهونې څخه جوازنه لري.

جمهورعلماء دخپلي مدعی دثبوت لپاره داحدیث شریف دلیل راوړي چي:کل قرض جرنفعافهوربوا. آیازمونږدامروجه گروي قرض ده اوکنه؟کومي روپۍ چي په گروي کي ورکوي هغه بیرته ورڅخه اخلي اوکنه؟دوه یادری کاله چي له دي گروکرل شوي اویاکورڅخه فائده اخلي دادهمدي روپیوکته ده اوکنه؟په دي حدیث شریف کي صراحة ذکرشویدی چي:کل قرض جرنفعا فهوربوا.یعني هرهغه قرض چي خانته نفعه راولي هغه سود ده،نوولي خلک حیلي ورته جوړوي؟پنځه یالس کاله چي یوڅوک له گروکرل شوي ځمکي څخه گټه پورته کړي په دومره موده کي له هغوروپیوڅخه زیاته گټه کوي کومي چي په گروي کي ورکرل شویدی آیاداسودنه دی؟

په دي حدیث باندي علامه عبدالحق په شرح الصفرالسعادة کي تحقیق کری،بیایي لیکلي دي چي داحدیث په ډیروسندونوسره ذکرشویدی په اعتبارِدمعنی سره صحیح دی؛علامه سیوطي داحدیث په جامع الصغیرکي راوړی بیایي لیکلي دي چي ددې حدیث لفظ اومعنی دواړه صحیح دي ځکه چي په ډیروسندونوباندي راغلی مرتبي دحسن ته رسیږي؛علامه ظفراحمدهم داحدیث په کشف الدجی عن وجه الربواکي راوړی چي په دي اروندمستقله رساله ده اوپه اعلاءالسنن کي شائع ده،هلته یي لیکلي دي چي په دي حدیث باندی دنړی ډیروومحدثینوتحقیق کری هغوتولولیکلي دي چي داحدیث ثابت دی اوداستدلال وړ دی.

په دې اړوندزمونږ داحنافو په کتابونوکې درې دوله رايې دي،لومړی داچې که راهن مرتهن ته اجازه وکړي بیاله مرهونې څخه انتفاع اخیستلای شي،دویم داچې که مرتهن ته اجازه وکړي اوکه یې ونکړي له مرهونې څخه انتفاع اخیستل ناروادي اودریم داچې که په عقدکې یې انتفاع شرط کړی وي بیاګټه اخیستل جوازنه لري اوکه یې په عقدکې نه وي شرط کړی بیاجوازلري؛داداحنافو علماورايې دي خودامام صاحب خپله رایه نده اومونږ خواصل کې دامام صاحب مقلدین یو دهغه دمقلدینومقلدین نه یو اووراندې دجمهورومذهب هم ذکرشوچې انتفاع جوازنه لري؛بیاپه مونږ احنافوکې حینې احنافوحیلې رایې څانګړې کړیدې چې مونږبه دلته په دایوه رایه تحقیق وکړوهغه داچې خینې احناف وایي چې که په عقدکې یې ورسره شرط کړي بیاانتفاع جوازنه لري؛په دې اړه درالمختارکې لیکلي دي چې اوس مهال کوم عقدونه کیږي سره له دې چې داشرط کوي نه خوزمونږ په فقه کې یوه قاعده ده چې:المعروف کالمشروط،یعنی کوم شی چې په عرف کې عادت وی هغه داسې ده لکه شرط کړل شوی؛دبیلګې په دول،یوڅوک چاته ووایي چې ته ماته یولک روپۍ راکړه زه به تاته حمکه په ګروي باندې درکړم خوانتفاع به نه ورڅخه اخلې کچیرې داشرط ورباندې کیږدي بیاګله روپۍ ورکوي له دې څخه معلومه شوه چې المعروف کالمشروط خبره ده؛سره له دې چې په ژبه باندې شرط نه ورسره یږدي خوعرف لکه شرط داسې ده.

په بخاري شریف باندې علامه انورشاکشمیري شرحه کړې چې نوم یې دی فیض الباري هلته یې لیکلي دي چې دامروجه ګروي جوازنه لري،سره له دې چې په عقدکې یې نه شرط کوي خوالمعروف کالمشروط داسې ده.[1]الکوکب الدري کې علامه ګنګوهي لیکلي دي چې که راهن مرتهن ته اجازه ورکړي چې ګټه ورڅخه اخله دازمونږ احنافوپه مذهب جوازلري خوکه په عقدکې یې ورسره شرط کړي بیاجوازنه لري خواوس چې کومه متعارفه ګروي ده سره له دې چې شرط کوی یې نه خودا المعروف کالمشروط داسې ده؛که څوک ووایي چې که راهن اجازه ورته وکړي بیاخوله مرهونې څخه ګټه پورته کولای شي؟مونږورته خواب کووچې داپه هغوهیوادونوکې چې هلته دګروي رواج نه وي زمونږ په هیوادکې خوعموم بلوی جوړه شویده.

دیادونې ورده چې المعروف کالمشروط قاعده په الاشباه والنظائرکې علامه ابن نجیم لیکلې ده.په مونږ احنافوکې علامه زکریاکاندهلوي په الکوکب الدري باندې حاشیه کړې هلته یې لیکلي دي چې

---

[1]- ادارهن الراهن شياًعندالرجل وقبضه المرتهن فان كان فرسا جازله امركب وهذاهومذهب احمدوقال الحنفيه ان الزوائدكلها تكون امانة في يدالمرتهن وتعودالى الراهن مع اصلها....ان الراهن ان جازللمرتهن ان ينتفع بالمرهون فان لم يكن مشروطا في العقدولامعروفا في العرف جاز- فيض الباري۳۴۶/۳-.

دامروجه ګروي ناروا ده.له علامه اشرف علي څخه په الکوکب الدري کی پوښتنه شوی ده چې انتفاع مرتهن ته په مرهونې باندی څرنګه ده؟نوموړي په خواب کی لیکلي دي چې دابلکل جوازنه لري،همدارنګه احکام القرآن کی هم نوسوري همداخبره لیکلي ده.علامه شامي هم په دی باندی دحرمت فتوی کړی المعروف کالمشروط خبره ده هم لیکلي ده.[1]طحطاوي علی الدرالمختارکی هم دغه خبره لیکلي ده. علامه تمرتاشي هم په المعین المفتي علی جواب المستفتي کتاب کی لیکلي دي چې دامروجه ګروي،شرعا جوازنه لري که مرتهن ته دګټې اخیستلواجازه شوی وي اوکه نه وي شوی.غمض العیون والبصائرکي هم دحرمت فتوی ده؛فتاوای کاملیه کې هم دامروجه ګروي ناروابالل شویده؛همدارنګه علامه زحیلي په خپلودوکتابونوتفسیرالمنیراوالفقه الاسلامي کی ددی دحرمت فتوی ورکړیده.اعلاءالسنن کي ددې لپاره خانګړی باب راوړی له مصنف عبدالرزاق څخه یې حدیث نقل کړی چې داحدیث په کنزالعمال کي هم شته چې:حضرت عبدالله بن مسعودته یوسړی.راغي پوښتنه یې ورڅخه وکړه چې ماته یوآس چاپه ګروباندي راکړي آیازه کولای شم چې په دی آس باندی سپورشم؟حضرت عبدالله بن مسعودورته ووېل:که ته په دی آس باندې سپورشوی نوهمدغه ربوا ده.[2]

اوبل په مونږاحنافوکې علامه لکنوي په دې اړه مستقل کتاب جوړکړی چې نوم یې ذی الفلک المشحون في انتفاع المرتهن بالمرهون هلته یې په دی اړه ښه مشبع تحقیق کړی چې حاصل یې په دې دول دی:چې دمرتهن لپاره نفعه اخیستل له مرهوني څخه جوازنه لري؛النطف في الفتاوی کي هم دغه خبره لیکلي ده.[3]اوعلامه ثناءالله پاني پتي المظهري کي تردې ایت کریمه لاندې چې{ فَرِهَٰنٌ مَّقۡبُوضَةٌ }[4]مکمل تحقیق کړی چې انتفاع جوازنه لري.

---

[1] - وعن عبدالله محمدبن اسلم السمرقندي وکان من کبارعلماءسمرقندانه لایحل له ان ینتفع بشئ منه بوجه من الوجوه وان اذن له الراهن لانه اذن له في الربولانه یستوفی دینه کاملافتبقی له المنفعة فضلافیکون الرباوهذا امرعظیم....ثم رایت في جواهرالفتاوی اذاکان مشروطاصارقرضافیه منفعة وهوالربا....قلت:والغالب من احوال الناس انهم انمایریدون عندالدفع الانتفاع ولولاه لما اعطاه الدراهم وهذابمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط-ردالمحتار۸۷-۱۰/۸۶-.

[2] - عن ابن سیرین قال:استقرض رجل من رجل خمسمأة دینارعلی ان یفقره ظهرفرسه فقال:ابن مسعودمااصبت من ظهرفرسه فهوربا-مصنف عبدالرزاق الصنعاني۸/۱۴۵-رقم الحدیث ۱۴۶۵۸.

[3] - ولاینتفع به بوجه من الوجوه-(النتف في الفتاوی کتاب الرهن/۳۷۰)

[4] - سورة البقره/۲۸۲.

اوحیني علماءوایي چي انتفاع په مرهوني باندی حکه جوازلري چي دابیعه دوفاده،دی عاجربنده په بیعه دوفاکي هم بوخه تحقیق کریدی،علامه مجاهدالاسلام په الفقه المشکلات کي ددی بیعي تعریف کریدی،ددی بیعي بیلکه په دی دول ده چي یوخوک چاته ووایي:چي زه په تاباندی داخپل موبایل خرڅوم خوچي کله مي روپۍ درکړی بیابه زماموبیل بیرته راکوی دادول بیعه زمونږله فقه حنفي سره په ټکرکي ده؛حکه چي اصل کي بیعه باطله اوقطعي وي اوبل هرهغه شي چي له مقتضیاتو دعقدڅخه نه وي هغه مفسدعقدګرځي کوم شرط چي په بیعه دوفاکي ده دابلکل مفسدعقددی؛ زمونږ دفقهي حنفي په کتابونوکي ددی بیعي عنوانه ذکردي علامه شامي هم داعنوان راوړی[1]خوپه بیعه دوفاءکي زمونږاحنافواته مذهبه دي اتفاقي خبره په دی اروندنشته،خویومذهب چي هغه اکثرده هغه داچي بیعه دوفا اصل کي رهن ده اودادول بیعه باطله ده څکه چي دابیعه باالشرط ده

جامع الفصولین کتاب کي لیکلي دي چي دابیعه دپنځمي پیړي په اوائلوکي راپیداشوېده تردی وړاندی دابیعه نه وه،دشرعي له ارخه دابیعه هیڅ اصل نه لري.اوعلامه ابوالحسن ماتریدي هم لیکلي دی چي دابیعه باطله ده هسي سودته چل جوړول دي؛علامه ردالمحتارکي بیعه دوفاجائزه کڼلی خوپه انتفاع دمرتهن یي دحرمت فتوی کړی،زمایه خپله هم دغه رایه ده چي انتفاع مرتهن نه له مرهوني څخه شرعاجوازنه لري کني له شک څخه خوبلکل نه وځي نبي کریم فرمایلي دي چي:دع مایریبک الی مایریبک.[2]که دمرتهن لپاره کته اخیستل له مرهوني څخه جائزه بولي نوموږپوښتنه حنی کووچي تاسي دی حدیث شریف ته څه دول خواب کوی چي:کل قرض جرنفعافهوربوا.[3]

## درهنما اوپارګین مسائل:

داکومي مروجي رهنماګاني چي زمونږپه هیوادکي شتون لري،آیاددي رهنماګانومعاملي له شرعي سره برابري دي اوکنه؟ دبیلګي په توګه یوځوک رهنمالري بل څوک ورته ووایي:چي زماداکوررااته خرڅ کړه درهنماڅښتن ورته ووایي:چي په څوروپیوپي درته خرڅ کړم؟دی ورته ووایي:په لس لکه،درهنماخاوندورته ووایي:چي سمه ده خوته ماته په دي لسولکو روپیوکي دومره اندازه فیصدي راکوی آیادادول راکړه ورکړه په اسلام کي جوازلري؟

---

[1] - وفي الکفایة عن المحیط:هوان امقول بائع للمشتري بعت منک هذالعین بمالک علی من الدین علي اني متی قضیته فهولي وفي الحاشیة الفصولین عن جواهرالفتاوی هوان یقول بعت منک علی ان تبیعمني متی جئت باالثمن فهذالبیع باطل وهورهن،وحکمه حکم الرهن وهوالصحیح ردالمحتارکتاب البیوع مطلب في بیع الوفاء ۷/۵۸۰.

[2] - صحیح البخاری کتاب البیوع ۱/۲۷۵.

[3] - سبق تخریجه.

په فیصدي باندی دبوه شي پلورل علماوجائزبللی،مفتي تقي صاحب په درس ترمذی کی لیکلي دي چې دفیصدي(کمیشن)په اره دعلماواختلاف دي،خوعلامه شامي په ردالمختارکی او علامه رشیداحمد په احسن الفتاوای کی ددی په جوازباندی فتوی کړیده.[۱]

دبارکین هم دغه حکم دی دبیلکي په دول یوڅوک دبارکین والا ته ورشي هغه به وواېي چې زمادامونړ په دومره روپیو باندی وپلوره؛هغه ورته وواېي:چې سمه ده خو ته به ماته دومره اندازه فیصدي راکوی دادول پلورل هم علماوجائزبللي؛ که څوک اعتراض وکړي چې اجره خوبه مدفعوکی معلومه وي دلته خواجره مجهوله ده،دبیلکي په دول یوڅوک دبارکین څښتن ته وواېي چې زماموټرخرڅ کړه زه به تاته په یولکوکي زرروپی کمیشن درکړم دلته خودامعلومه نشوه چې موټربه په څولکوخرڅ شي نواجره مجهوله شوه چې دازموږدفقهي حنفي له کتابونوسره په ټکرکی ده؟

علامه شامي ددی ټپاره داسی ځواب کړیدی چې موږدامنوچې دلته جهالت موجوددی خوداجهالت مفضي الی المنازعې ته نه ګرځي،ځکه چې دبارکین والا خواوس دموټرنه څښتن څخه روپی نه غواړي؛اوکله چې موټروپلورل شي بیاخوروپی معلومي وي نوداجهالت مفضي الی المنازعې ته نه ګرځي.

اوبل ډول کمیشن چې اوس مهال خلکوکې رواج دی،دبیلکي په دول یوڅوک دبارکین څښتن ته وواېي:چې دازماموټرپه پنځه لکه روپیوباندی خرڅ کړه که دې له دې څخه په زیاتوروپیوباندی وپلوره هغه روپی دی ستا وي آیا دادول کمیشن جوازلري؟احسن الفتاوی کی لیکلي دي چې دادول کمیشن ناجائزدي ځکه چې دلته روپی مجهولي دي؛خوکه په وراندینی مسئله باندی قیاس وشي نوښایي چې دادول کمیشن هم جائزشي ځکه چې هلته هم جهالت مفضي الی المنازعې ته نه کیده اودلته هم جهالت مفضي الی المنازعې ته نه کیږي ځکه چې دلته خوهم اوس روپی نه غواړي کله چې موټرخرڅ شي بیاروپی غواړي نودواړه ډوله کمیشن جوازلري.

## دسرقلفي مسئله.

سرقلفي دی ته ویل کیږي،دبیلکي په توګه:دیوچادوکان وي بل څوک ددې دوکان څښتن ته لس لکه روپی ورکړي بیاددی دوکان مالک بل چاته دادوکان په کرایه باندي نشي ورکولای،نسلابعدنسل به یی همدی سړي ته په کرایه باندی ورکوي له چاڅخه یې چې روپی اخیستي دي؛عرف کی چې

---

۱- سئل عن محمدبن مسلمة غن اجرة السمسارفقال:ارجوانه لاباس به وان كان في الاصل فاسد للكثرة التعامل وكثيرمن هناغيرجائزفجوزوه لحاجة الناس اليه-ردالمحتار۹/۱۰۷-.

څومره نرخ وي په هغه قیمت به کرایه ورکول کیږي اوددوکان ملکیت دهغه چادی چاچي جورکړی وي ایاداپه شرعه کي جوازلري؟

په دی اره چي له فتاوای حقانیی څخه چي کومه فتوی غوښتل شویده هغوی دنه جوازفتوی ورکړی سره له دی چي دجوازیې هم یوصورت لیکلي دی،خودعلامه شامي له تحریرالعباره في من هواولی بالاجاره له عبارتونوڅخه ددې جوازمعلومیږي، خوبوقیدورسره ذکرشویدی چي په اجاره کي به موده معلومه وي دلته موده نامعلومه ده؛بیانوموړي په دې اړوندتحقیق کړی ترتحقیق وروسته بی لیکلي دي چي دمتأخرینوپه فتوی باندي داصورت جائزدی.اوعلامه رشیداحمدهم په احسن الفتاوی کي ددی په جوازباندی فتوی کریده نوموړي لیکلي دي چي داروپی ددې لپاره ورڅخه احلي چي داجورونکی ویریږي چي که زه دوکان جورکړم څوک به یی په کرایه باندی ونه نیسي؛زماخپله رایه هم دغه ده چي دادول سرقلفي جوازلري.

## په هدیره باندې زراعت:

که دچاشخصي هدیره وي اوپه هغي هدیرې باندې ډیروخت تیرشي،آیاپه هغي هدیره باندی دهغي مالک زراعت کولای شي؟زمونږدفقهي ـحنفي په کتابونوکي دامسئله شته چي په کومه هدیره باندې ډیروخت تیرشوی وي اومړي پکي خاورې شوي وي بیاپه هغه مدیره کي دنورومړوخښول جوازلري خوپه دي شرط چي هغه وراندیني مړي به خاورې شوي وي اوهډوکي به یې هم زاره شوي وي.بحرالرائق،فتاوای هندیه،تبیین الحقائق اوردالمحتارکتابونوکي دامسئله لیکل شویده.[1]

خوعلامه شامي لیکلي دي چي دهډوکوزوروالي ته څه اعتبارنشته؛هغه هیوادونه چي کڼ میشتي وي په هغوهیوادونوکي دقبرزوروالي ته اعتبارذی سره له دې چي دمړي هډوکي نه وی زاره شوي؛ دزاره مړي هډوکي دی یوه طرف ته کیږدي چي دنوي اوزاره مړي ترمینځ توپیراوحاجزواقع شي بیادهغه پرځای دبل مړي خښول جوازلري.همدارنګه که هدیره دچاشخصي وي اوډیروخت ورباندی ووځي نودهدیری مالک کولای شي چي زراعت ورباندی وکړي یاهم کورورباندی جوړکړي؛ خودعامي هدیرې دادول حکم نه دی څکه چي عامه هدیره یوخل وقف شي بیاهغه وقف ده؛علامه مجاهدالاسلام الحنفي په الفقه المشکلات کي دامسئله لیکلي ده.

---

[1] - قلت:وتقدم انه اذابلی المیت وصارترابا یجوز زرعه والبناءعلیه ومقتضاه جوازالمشي فوقه-ردالمحتار۳/۱۸۳-.

# دونوقطعه کول:

په مونږ افغانانوکی عادت دی چی کله څوک جومات یاهم کورجوړوی،بیااکثرد سیموکی ونی وی شاله علماوڅخه فتوی ګانی غواړي چی ددی لندوونوهل څرنګه دي؟دضرورت پرمهال دونوقطعه کول بلکل جوازلري،نبي کریمﷺ چی کله نبوي جومات جوړاوه هلته دجومات پرځای ونی وی شالی هغه ونی قطعه کړلی.[1]علامه سمهودي په وفاءالوفاءکی لیکلي دي چی کله رسول اللهﷺ جنة البقیع یابقیع الغرقد مسجدنبوي ته څیرمه مشهوره هدیره کي ابراهیم دفن کړچی تردی وړاندی حضرت عثمان ابن مظعون هم په دی هدیره کی مدفون وه،بیارسول اللهﷺ ددي هدیری ډیره ستاینه وکړه، ددی هدیری پرځای ونی وی ډیرقومونه راپورته شول داوني يې قطعه کړی هرقوم دځپل ځان لپاره دهدیری ځای معلوم کړ؛دیادوني وړده چي په دی هدیره کي تقریبالس زره صحابه مدفون دي.

# بادشاه چاته معدن نشي ورکولای:

که په کوم ځای کي خزانه راڅیري،بادشاه داحق نه لري چي یوه خاص سړي ته یي ورکړي،ځکه چي په دی کی دټول ملت اوټولومسلمانانوحق دی؛اوکه څسي په نوم باندی معدن وي بیابادشاه یوچاته ووايي:چي دځان لپاره دی لږلږله ځمکي څخه راباسه داڅه باک نه لري.نوکه څوک له معادنوڅخه په پټه کوم شی باسي داجوازنه لري ځکه چي دادبیت المال حق دي اوالله تعالی به له داسی خلکوسره محاسبه کوي.

# عالم به دبادشاه هدیه نه قبلوي:

ښايي چي په اوسني عصرکي عالم دبادشاه هدیه قبوله نه کړي،ځکه هدیه کي الله تعالی یوتأثیرایښی چي دانسان سترګي مړی کوي نوښايي چي علماءداوسني عصردبادشاهانوهدیی قبولی نکړي

# دسیوري یالمرلپاره څوک په چاباندي دیوال نشي بندولای:

که څوک په ځپل ملکیت کي دیوال جوړوي،یادځپل کوردپاسه کورجوړوي اودهغه شاته دبل چاکورپاپتي وي،بیاهغه څوک چي په کورپاپتي یی سیوری شوی وي هغه له دی بل سړي سره شخړه کوي چي زماپه کورپاپتي دي سیوری کړی آيادي جوړونکي ته داحق شته چي هلته کورپادیوال جوړکړي؟

۱- قطع النبي صلى الله عليه وسلم النخل من المدينة حين بنى مسجده وذالک يدل على ان النبي صلى الله عليه وسلم لايتوجه لقطع شجرهاللعمارة وجهة الاصلاح-وفاءالوفاء۱/۹۲-.

هو جوروېکی کولای شي چي په خپل ملکیت کي ابادي وکړي،حکه چي ناله خپل ملک څخه نفعه اخیستل دي که ددی لپاره يې بندوي چي په مالمربنديږي اويه ما سيوری کېږی په دی وجه يې نشي بندولای؛مبسوط،فتاوای تاتارخانیه اوتنقیح الفتاوی الحامدیه کي دامسئله ليکل شویده حوکه يوڅوک په خپل کورکي کرکی جوړه کړي اوله هغه کرکی څخه دهغه دګاونډي کور ښکاري نو هغه کرکی وربانلدی بندولای شي؛حودکوردصرورپاتوحای لکه ددونډی پحولوحای،دکالبومیحلوحای اوداسي نور نويه دی صورت کی يې حداوربانلدی بندولای شي؛تنقیح الفتاوی الحامدیه کي له علامه شامي څخه هدابوستنه شویده نوموري ېېرته په حواب کي ليکلي دي چي جدايي وربانلدی بندولای شي

## دلقطي بيان:

که يوڅوک کوم شی په لاره کي پيداکړي اياله لاری څخه دهغه شي راخيستل جائزدي؟علماوليکلي دي چي که يوڅوک په خپل حان باندی اعتبارلري چي زه ددی تعريف کولای شم نوغوره داده چي راوايي خلي؛اوکه په حان يې دتعريف کولواعتبارنه وه،بياحکم دادی چي نه به يې راخلي؛ديادوني ورده چي دپيداشوي څيز به تر يوه کاله تعريف کوي.

اوکه په دی باندی وېريده چي کيدلای شي چي په دي لاره باندی غله راشي،ياباران وربانلدی وشي اويه دی سره ددی شي ضياع راحي بياحکم داسي دی چي راخلي به يې،که راوايي نخلي پدی سره داسری ګنهکاربږي خوکله يې چي راواخلي بيابه يې تر يوه کاله پوری علامي ښانوي اويه خلکوکي به يې اعلان کوي؛که بياهم ددی ورک شوي شي څښتن پيدانشي بيازمونږداحنافومذهب دادی چي که دی په خپله حان وي بيابه يې صدقه کوي اوکه دی فقيروي بيايي په خپله هم استعمالولای شي

اويل لقطه دحاجيانوده،په دی اړوندزمونږداحنافواوجمهورو علماومسلک دادی چي هغه به هم دتعريف لپاره اخلي په دی نيت يې اخيستل جوازلري.

## پلارچي ژوندی وي خپلواولادونوته به څه دول ميراث ورتقسيموي؟:

کله چي پلارخپلواولادونوته په خپل ژوندباندی ميراث ورتقسيموي،نوخپلوزامنواولورانوته به يوډول تقسيم کوي که مثل حظ الانثيين به وي؟په دی اړه علامه علي القاري ليکلي دي چي عدل به کوي نولونه به يودول تقسيم کوي خووروسته دپلارله مرګه بيادميراث دتقسيم بېل حکم دی،نوموري ليکلي

دي چې که پلار حیل یوه روی ته میراث دیرورکري اوبل ته کم داهم جوازلري خوپه دی صورت کې بیاپلار ظالم ګرځي کنې نفس جوازلري خوپه داسي کرنی سره پلار ګنهګاریږي.

اوکه دپلارله مرګ څخه وراندې زوی مرشي بیاددې مرزوی ورثه دمتوفي دپلاربه میراث کې څه حق نه لري خوکه ددی مرشوي زوی پلارحیلولمسیانوته دهغوی دپلارمیراث ورکړي بیاداښوراس حیل پلارته شي ویلای چې هغوی ته یې مه ورکوه،حکه چې دپلارحیل ملکیت دی هغه ته داحق شته چې په حیل میراث کې دخیل مره زوی ورثه شریکان کړي.اوکه پلاربه حیلورښوکې فرق وکړي دبیلګي په توګه یوه ته لږشي ورکړي اوبل ته دیرورکړي بیاداښامس دخیل پلارله مرګ څخه وروسته داحق نه لري چې له یوبل سره جنجال وکړي چې له ماسره له سره تقسیم وکړه؛هغه تقسیم یاویش داعتباروړدی کوم چې پلارکړیدی خوپه دي عمل سره چې یوه ته لږاوبل ته دیرورکړي پلار ګنهګاريږي.

## دشرابوبیان.

شراب څه شي ته ویل کیږي؟ځینی علماوایي دانګورواوبه چې کله ووېشول شي اوهغه نیټکی شي دی ته شراب ویل کیږي؛ اوبعضی علماءوایي چې هرمسکرته شراب ویل کیږي؛خوموږوایوچې دانګور واوبه چې کله وویشول شي اوحددسکرته ورسیږي دی ته شراب ویل کیږي اونورتول مسکرات حرام دي خودشرابوحکم نه لري حکه چې زموږاحنافودامسلک دی چې شراب نجس العین دي،کالي هم ورباندې مرداریږي اوخوړل یې هم حرام دي؛اوپه نورومسکراتوباندې کالي نه مرداریږي خوخوړل یې حرام دي.

## دالکحول شرعي حکم:

کوم الکحول چې اوس مهال په دواګانو،یااسپري عطروکي استعمالیږي ددی څه حکم دی؟الکحول په لومړي حل باندې په دنیا کې عربوراپیداکړل؛اصل کي ددې نوم غول وه،حکه یې غول ورته ویل چې کله به چاوڅښل غول غوندې به شو؛ لکه موږکې عادت دی چې کوم څوک بې فکره وي بیاخلک ورته وايي فلانکی غول غوندې ده؛بیاانګریزانوددې نوم الکول کړ،وروسته تردې بیرته عربوالکول په الکحول باندې بدل کړل چې اوس هم په دنیاکې په همدې نوم باندې یادیږي.

په دې اړونددتولي دنیاعلماءیوه طرف ته دي اوحناف علماءبل طرف ته دي؛دټولې دنیاعلماءوايي: هرهغه شی چې نیشه راولي دهغه حکم دشرابودی اونجاست یې هم غلیظه دی لکه:بولي اوغایطې

دلیل ورته دا ایت کریمه راوري چې{ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلْخَمْرُ وَٱلْمَيْسِرُ وَٱلْأَنصَابُ وَٱلْأَزْلَٰمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ ٱلشَّيْطَٰنِ فَٱجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ }(۱)

اوزمونږداحنافومذهب دادی چې هرمسکرشراب ندي،یواځې دانګوراوبه چې کله وويشول شي اوحدد سکرته ورسیږي هغه شراب دي اونورکوم نیشه يي توکی اومسکرات چې کوم په دنیاکی موجودي دهغوخوړل حرام دي خونجاست غلیظه ندي.(۲)اوس مهال چې په دنیاکی کوم الکحول جوړیږي ددی ترکیبي موادبقول اوخضراوات دی(۳)

اوس مهال اکثره په اسپري عطرو،دمخ په کریمونواوحینونوروشیانوکی الکحول وي اوس ددی عطروخه حکم دی؟کچیری الکحول نجاست غلیظه شي بیاخو کالي ورباندی مردارېږي؛په دی اړوند مفتي تقي فتح المنهم اوفتاوای عثمانیه کی لیکلي دي چې اوس مهال په دنیاکي کوم الکحول دي داله انګورواوخرماڅخه نه جوړیږي ددی ترکیبي اجزاءبقول،خضراوات اوبطروں دي اوزمونږ احنافومذهب په دی اړه داسی دي چې کوم شراب يامسکرات چې له انګوروپرته له نوروشیانوڅخه جوړشوي وي دهغوخښل حرام خونجاست يي غلیظه ندی؛نودادول الکحول که په عطروکی وي یاپه نوروشیانوکی وي استعمال یی زمونږپرمذهب جائزدي؛کذافي الفقه الاسلامی وادلته وفتاوای العصرکلاهما للعلامه وهبت الزحیلي.

او علامه غثیمین په احکام تجمیل النساءکي لیکلي دي چې دامتعارف الکحول له هایدروجن اوکاربندای اکسایدڅخه جوړیږي نوموړي لیکلي دي چې داپه اصل کي کاذدی دخصر اوانوکازر احمعه کوي بیاله هغه څخه الکحول جوړوي له دي څخه هم په ډاګه شوه چې دامتعارف الکحول له انګوروڅخه نه جوړیږي چونکه هغه حنفي مذهبي نده هغه دحرمت فتوی ورباندی کړی څکه چې دوی وایی چې ددی نجاست غلیظه دی.اودجامعة الازهرعلماوهم ددی دجوازفتوی ورکړیده دوي وایی چې

---

۱- سورة المائده/ ۹۰.

۲- لان الاشربة المتخذة من غیرالعنب والتمرتحل عندابي حنیفةوابي یوسف بقصدالتقوی اوالتداوي مالم تبلغ حدالاسکار.(بحوث في قضایافقهیة المعاصره/ ۳۴۰)

۳- وان معظم الکحول المستعملة في الادویة الیوم لاتصنع من عنب ولاتمر،وانماهن السلفات،والکبریتات،والعسل،والدبس،والحب،والشعیر،والجوداروغیرها.(بحوث في قضایافقهیة المعاصره/ ۳۴۰)

زمونږ د احناقو یه ... د ... حاست غلیظه نده او کوم الکحول چې په دواګانو کې وي که نیشه یکې وي حورل یې حرام ... اوکه ضرورت وي بیاداوي باالحرام هم جوازلري.

## دریاب نیل ته دحضرت عمرلیک:

دریاب نیل یونادردریاب دي چې دیرعادتونه یې له نورودریابونوڅخه بدل دي،نفحات الانس في حضرات القدس دادعلامه نور الدین جامي کتاب ده،هلته یې لیکلي دی چې دحضرت عمر دخلافت په دورکی حضرت عمروبن العاص دمصروالي وناکل شو،کله چې فتحه وشوه دمصرخلک حضرت عمروبن العاص ته راغلل ورته ویې ویل چې په دي میاشت کې ددي دریاب اوبه کمیږي،بیامونږه یوجیلۍ ددی دریاب ته وراچوو په دي سره بیرته ددي دریاب اوبه خپل حالت ته حي،حضرت عمروبن العاص حضرت عمرته خط ولیږه حضرت عمربیرة ورته ولیکل چې ای دریاب نیله ته چې تردی وراندی په کوم عادت باندی جاري کیدی اوس له هغه پرته جاري شه،اوکه نه جاري کیږی بیازه له قهارالله تعالی څخه غوارم چې تاجاري کړي،کله یې چې داکاغذدریاب نیل ته وروغورحاوه په دی سره دریاب بیرته خپاندشو.دریاب ته هم الله تعالی علم ورکړیدی سره له دی چې نه یې چیرته کوم پوهنتون لوستي وه اونه یې هم له چاڅخه دخط زدکره کړي وه کماقال الله تعالی{ قَالَ رَبُّنَا ٱلَّذِيٓ أَعۡطَىٰ كُلَّ شَيۡءٍ خَلۡقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ }[1]

## حضرت معاویه ته دروم دبادشاه لیک:

یووخت کې حضرت معاویه ته دروم بادشاه یولیک ولیږه چې په هغه لیک کې دخینوشیانوپوښتنه شوی وه،لومړی پوښتنه داوه چې هغه څلور شیان کوم دي چې دموږپه نس کې نه دي اوسیدلي؟دیمه پوښتنه داوه چې هغه کومه خمکه ده چې په ټول وخت کې یوځل لمرورباندي لږیدلي دی اوبیادقیامت ترورځي لمرنه ورباندی راځي؟دریمه پوښتنه داوه چې هغه کوم قبردی چې حرکت کوي؟اوڅلورمه پوښتنه داوه چې هغه کومه خمکه ده چې هرطرف ته لمونځ ورباندی وشي قبلې ته نه برابریږي؟ حضرت معویه چې کله دالیک ولیدحیران شولکل فن رجال،هغه یې حضرت عبدالله ابن عباس ته ولیږه چې ددي پوښتنوځوابونه راکړه،حضرت ابن عباس په دي ډول ځوابونه ورته ولیکل چې هغه څلورکسان چې دموږپه نس کې نه دي اوسیدلي هغه حضرت ادم ... بي بي حوا،دحضرت موسی ...

---

[1] - سورة طه/ ٥٠.

لکره اودحضرت اسماعیل پسه وه اوهغه خمکه چې يوځل لمرورباندی راغلی هغه دبحرقلزم خمکه وه چې يوځل اوبه ورځخه لرې شوی اوخمکه يې ځرګنده شوه اوهغه قبر چې حرکت يې کاوه هغه دحضرت يونس ماهی وه اوهغه خمکه چې هرلوري ته لمونځ ورباندی وشی قبلې ته نه برابريږي هغه دبيت الله بام دی.

## دحضرت سلیمان حکایت:

يووخت کې حضرت سلیمان ته الله تعالی حکم وکړ چې په فلانکی ورځ باندی فلانکی دریاب ته لاړشه،هلته به يوه نادره وګوری؛له حضرت سلیمان سره په دې سفرکی ديرو پيريانو هم ګډون وکړ کله چې هغه دریاب ته ورسيدل يوه پيري ته يې وويل:چې په دریاب کې يوه غوټه ووهه هغه پ دریاب کې غوټه ووهله خو هيڅ شی يې پيدانکړل هغه بيرته راووت؛بل پيري ته يې وويل چې ته په دریاب کې غوټه وکړه هغه چې کله دریاب ته داخل له خان سره يې يوه قبه راوويستله هغه يې دحضرت سلیمان مخې ته کيښودله هغه چې کله ورته وکتل ويې ليدل چې په مينځ کې يې يوسړی په لمانځه ولاړدی حضرت سلیمان هم قبې ته ورداخل شوله خان سره يې وويل:چې ديره عجيبه ده ماته الله تعالی ويلي وه چې ديره نادره به وګوري له سړي څخه يې پوښتنه وکړه چې داڅه وجه ده چې ته دلته په دریاب کې ژوندکوي؟دلته خوراک له کومه کوی؟سړی خواب ورکړچې مابه دخپلو والدينو ديرزيات خدمت کاوه،پلارمې چې کله وفات کيده ماته يې دعا وکره چې الله تعالی دی اوږدژونددرکړي چې دالله تعالی عبادت پکي وکړې؛اومورمې چې کله وفات کيدله ماته يې داسې دعا وکره چې الله تعالی دې په داسې خای کې عبادت نصيب کره چې هلته دشيطان هم تسلط نه وي؛کله مې چې موراوپلاردواړه وفات شول تر هغه وروسته زه يوه ورځ ددې دریاب غنډې ته روان چې همداقبه مې وليدله کله چې زه ورداخل شوم يوه پربښته راغله داقبه يې پورته کره اوددریاب په تل کې يې کيښوده له هغه وروسته زه په همدی دریاب کې ژوندکوم؛حضرت سلیمان پوښتنه ځنې وکره چې هغه کومه زمانه وه؟سړی خواب ورکړچې هغه دحضرت ابراهيم زمانه وه؛سلیمان چې کله حساب وکړ(۱۵۰۰)کلونه ورباندې تيرشوي وه،سلیمان پوښتنه ورڅخه وکره چې په دې قبه کې څه شی خوري؟هغه خواب ورکړچې هره ورځ يوسپين مرغه راځي ماته خوراک راوړي په دې دول زه دلته دالله تعالی په عبادت مشغول يم؛داټوله دموراوپلاردعا وه؛روضة الرياحين کې داحکايت ليکل شويدی.

# دقاضیانو حکایت.

په یوه زمانه کې په بني اسرائیلوکې درې قاضیان وه،یووخت کې الله تعالی په دوی باندې امتحان راوست.الله تعالی دوی ته دوه پرښتې دانسانانوپه شکل کې راولیږلې،یوه پرښته په اس باندې سپره وه،داس بچی هم ورسره وه،اوله بلې پرښتې سره غواوه دوی دواړوخپل مالونه یوه کودرنه داوبو کولولپاره راوستې وه،کله چې دوی خپل مالونه اوبه کړل دبیرته ستنیدوپر مهال داس بچی په غواپسې روان شو؛داس څښتن ورته راغی چې زماداس بچې راکړه،هغه ورته وویل چې دازمادغوابچې دی بالاخره ددوی دواړوترمینځ جنجال راغی دواړوقاضي ته مرجعه وکړه؛دغواڅښتن قاضي ته په رشوت کې روپې ورکړې چې فیصله زماپه حق کې وکړه،قاضي چې کله رشوت واخیست نوتورې سپین اوسپین یې توروکړځوز،فیصله یې داسې وکړه چې دادآس بچی نه بلکه دغوابچې دی.

نردې وروسته دویم قاضي ته ورغلل،بیاهم دغواڅښتن قاضي ته رشوت ورکړچې زماپه حق کې فیصله وکړه،دویم قاضي هم دمخکنی فیصلې تأییدوکړ؛دوی دواړوپه خپل مینځ کې وویل چې راځې دریم شرط هم پوره کړودریم قاضي ته ورغلل. دآس څښتن ورته وویل:چې ده زماداس بچې راځخه بوولی دی اوس یې نه راکوي قاضي ته یې داهم وویل:چې ترتاوړاندې دونوروقاضیانوداسې فیصله وکړه چې دادآس بچی نه بلکه دغوابچې دی؛دغواڅښتن ورته وویل چې قاضي صاحب داروپې درسره واخله اوفیصله زماپه حق کې وکړه یواځې دومره ووایه چې دادآس بچی نه دی دغوابچې دی؛قاضي ورته وویل:چې ماته حیض راغی دی پرښتې چې دانسان په شکل کې وه پوښتنه حتی وکړه چې نرته څرنګه حیض ورځي؟ قاضي ورته وویل چې نرته حیض نه ورځي نوغواڅرنګه دآس بچې زیږوي زه څرنګه ووایم چې دادغوابچې دی معلومه خبره ده چې دآس بچی دی؛نوپه قاضیانوکې ځینې داسې قاضیان هم شته چې له سپین څخه تورجوړوي؛ځکه خونبي کریمﷺ فرمایلي دي چې دوه قاضیان به په اورکې وي اویوقاضي به په جنت کې وي.[1]

## دحدودوبیان.

آیاحدودکفارات دي اوکنه؟داهم دعلماوترمینځ یوه اختلافي مسئله ده،بخاري شریف کې دحضرت عبادةبن صامت په روایت سره یوحدیث شریف راځي چې که څوک یوداسې عمل ترسره کړي چې

---

[1] - القضاة ثلاثة اثنان في النار وواحد في الجنة-سنن ابي داود۲/۱۴۷- وجامع الصغير للسيوطي۴/۷۰۳- . مخرج حذيفي.

هغه دحدموجب وي،بیاهغه مجرم په حدباندی شي،نوذغه حد ددی مجرم لپاره کفاره ده[1]لیکلی په دول یوڅوک زنا یالواطت وکړي بیادامجرم داسلامي حکومت له لوري په حدباندی شي،نودغه حد ددی لپاره کفاره ده،یعنی ګناه ورته بښل کیږي.

اوبل حدیث په المستدرک علی الصحیحین اوسنن الکبری داما بیهقي کي روایت شویدی چي له نبي کریمﷺ څخه صحابه وپوښتنه وکړه چي:هل الحدودکفارات ام لا؟نبي کریمﷺ ورته وفرمایل ماندري هل الحدودکفارات ام لا؟یعنی ماته علم نشته چي حدودکفارات دي اوکنه.[2]نودلته دحدیثونوترمینځ ټکراعی حکه چي یوه حدیث کي راځي چي حدودکفارات دي اوبل حدیث کي راځي چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي چي زه نه پوهیږم چي حدودکفارات دي اوکنه.ددی حدیثونوترمینځ علامه قاضي عیاض المالکي اوعلامه عیني په عمدة القاري کي تطبیق کریدی دوی وایي:چي دعبادة بن صامت حدیث قوی دی چي حدودکفارات دي؛اوهغه حدیث چي په مستدرک کي دی هغه ضعیف دی دوی وایي:چي دضعیف حدیث هیڅکله له قوي حدیث سره معارضه نشي راتللای نوحدودکفارات دي.

خوعلامه ابن حجرفتح الباري کي لیکلي دي چي دمستدرک حدیث منسوخ دی اودعبادة بن صامت حدیث چي په بخاري اومسلم کي روایت شوی هغه یي ناسخ دی اودمنسوخ حکم کاالعدم داسي وي نوموري لیکلي دي چي حدودکفارات دي.

دیادرني ورده چي دفتح الباري په نوم دوه کتابونه دي،یوه فتح الباري دحافظ ابن حجر العسقلاني ده اوبله فتح الباري دعلامه ابن رجب الحنبلي ده،داکومه چي اوس مهال مشهوره ده اوپه بخاري شریف باندي مکمله شرحه ده دا علامه عسقلاني کتاب دی.اوپه دي اره چي حدودکفارات دي اوکنه زمونږداحنافوپه کتابونوکي تفصیل دي،علامه انورشاکشمیري داتفصیل په فیض الباري کي ذکرکړیدی هلته یي لیکلي دي چي حدودپه دري دوله دي،یودول داچي څوک یوه ګناه وکړي بیاپه حدباندي شي بیاالله تعالی ته توبه هم وکړي چي بیاداګناه نه کوم بیاددویم ځل لپاره هغه ګناه ونکړي نوپه دي صورت کي حدود کفارات دي،اوبل داچي یوڅوک ګناه وکړي اوبیاپه حدکراې شي خوتوبه ونه باسي له خپل ځان سره ووایي چي بیاهم داګناه کوم خوبیایي ونکړي په دي صورت کي هم حدودکفارات دي اوبل داچي یوڅوک ګناه وکړي بیاهغه په حدکرای شي اودی له ځان سره هودوکړي چي بیایي هم کوم بیاددویم ځل لپاره هم هغه ګناه تکرارکړي په دي صورت کي بیاحدودکفارات ندي.

---

[1] - عن عبادة صامت قال:کناعندالنبي صلی الله علیه وسلم في مجلس فقال:بایعوني علی ان لاتشرکوابالله شیأ ولاتسرقواولاتزنوا وقرأ هذه الایة ....ومن اصاب من ذالک شیأ فعوقب به فهوکفارته-صحیح البخاري۲/۱۰۰۳-.

[2] - مجمع الزوائد کتاب الحدودوالدیات۵/۲۵۶-. رقم الحدیث ۱۰۵۹۴.

هغوكتابونوكي چې داخبره يې مونږ احنافوته منسوبه كړې چې حدودكفارات نه دي هغه دا د صورت دي.دلاښه تحقيق لپاره فتح الملهم ته مراجعه وكړي په حق به واقف شي.[1]

## دجهادبيان.

استعانت(طلب دكومک)له كفاروڅخه په مقابل دكفاروكې دمسلمان لپاره جوازلري اوكنه؟په دې اره زمونږدفقهي حنفي په كتابونوكي ليكل شويدى چې جوازلري خوپه دې شرط چې مشري اوقوماندې به دمسلمانانوپه لاس وي،څكه چې نبي كريمﷺ په مقابل دبني قينوقاعوكې له بني قريضه وڅخه استعانت غوښتى وه.اوكه استعانت له كفاروڅخه په مقابل دباغيانو مسلمانانوكې وي په دې اروندزمونږدفقهي حنفي په كتابونوكي ليكلي دي چې دادول استعانت جوازنه لري؛كذافي السير الكبير للامام محمد،واعلاءالسنن للعلامه ظفراحمد،واحكام القرآن للعلامه اشرف علي وابضاندائع الصنائع للعلامه ابوبكركاساني.

## فدايي بريدجوازلري:

الله تعالى په قرانكريم كې فرمايلي دي{ وَأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا تُلۡقُواْ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ }[2]

ژباړه:تاسي دالله تعالى په لاره كې خپل مالونه نفقه كړي،اوتاسي مه غورځوی خپل ځانونه هلاكت ته په ترک دجهاد اوترک دنفقې في الجهادسره.[3]كله چې مجاهدين فدايي عمليات كوي بيا ځيني منافقين وايي چې خپل ځان يې هلاک كړ، همدا آيت كريمه په دليل كې راوړي،دادهغوعلماوخبره ده چې هغوی په قرانكريم كې تحريف كوي؛آيااستشهادي بريدونه په اسلام كې ثبوت لري اوكنه؟

---

[1] - والفصل عندي:ان الاحوال بعداقامة الحدثلاثة فان تاب الحدودبعده صارالحدكفارة له بلاخلاف،وان لم يتب فلايخلوا امانه انزجرعنه ۲واعتبربه ولم يعداليه،فقدصاركفارة ايضاً،وان لم يبال به مبالاة ولم يزل فيه منهمكا كماكان وعاداليه ثانيا فلايصيركفارة له- فيض الباري۱/۹۳- سورة البقره/۱۹۵.

[2] - وانفقوافي سبيل الله طاعته بالجهادوغيره ولتلقواباىديكم الى التهلكة اي الهلاک بالامساک عن نفقته في الجهاد اوتركه لانه يقوى العدو عليكم واحسنوا اى بالنفقه وغيره-تفسيرجلالين-جلداولى تفسيرآية(۱۹۵)من سورة البقره. وفي هذه الاية الامربالاتفاق في سبيل الله وهوالجهادواللفظ يتناول غيره ممايصدق عليه انه من سبيل الله-تفسيرفتح القدير۱/۱۹۳- . مضمون الاية(۱۹۵)الامربالاتفاق في سبيل الله في سائروجوه القربات ووجوه الطاعات وخاصة صرف الاموال في قتال الاعداءوبذلهافيمايقوي به المسلمون على عدوهم والاخبارعن ترک فعل ذالک بانه هلاک...وقال ابوبكربن عياش عن ابي اسحاق السبيعي قال:قال رجل للبراء بن عازب ان حملت على العدووحدي فقتلوني اكنت القيت بيدي الى التهلكة؟قال:لا قال الله لرسوله فقتل في سبيل الله لاتكلف الانفسک وانماهذه في النفقه-تفسيرابن كثير-۱/۳۴۴-۳۴۵.

دقسطنطنیې په جهادکي(چې اوس مهال دترکیې په هیوادکي دیوه ښارنوم دی)دروميانوپوښلوی لښکر دمسلمانانومقابلې ته راووت صحابه اومجاهدین هم زیات وه،په دی وخت یوه مجاهدته جزبه ورغله،په دی لوی لښکریې یواځې بریدوکړ، دروميانولښکریې له ماتې سره مخ کړخودامجاهدهم شهیدشو،په دی وخت کې ځینومجاهدینوویل چې ځان یې په خپله هلاک کړځکه چې الله تعالی قرانکریم کې فرمایلي دي چې ولاتلقوابایدیکم الی التهلکة.په دی مجاهدینواوصحابه وکی حضرت ابي ایوب انصاري صحابي هم موجودوه،هغه ورته وویل:چې په آیت کریمه کې له خپل ځان څخه تاویل مه کوی کله چې کوم مجاهدپه یولوی لښکردکافرانوباندې برید وکړي داهلاکت ندی؛نوموړي وویل:چې مکه مکرمه فتحه شوه اومسلمانانودیری نوري فتحې هم وکړی ترهغه وروسته مونږ انصارراجمعه شواودامشوره مووکره چې جهادخونورکامیاب شو؛اوزمونږ مالونوته په جهادکی ډیرزیانونه پیښ شول تردي وروسته به مونږ انصاردخپلومالونوپرورش کوو،نورصحابه اومجاهدین دیردی هغوی به جهادکوي؛کله چې مونږ انصارودا سې مشوره وکړه په دی وخت الله تعالی دا آیت کریمه رانازل کرچی:ولاتلقوا بایدیکم الخ.یعنی که تاسي انصارترک دجهادوکړی اوترک دنفقی في الجهادوکړی نوتاسي په خپله لاس خانونه هلاکت وغورځول.[1] داحدیث شریف په مسنددامام احمدبن حنبل،سنن ابي داود،جامع الترمذي،المستدرک علی الصحیحین،صحیح ابن حبان اوصحیح مسلم کتابونوکې روایت شویدی اواسنادیې هم صحیح دي.

نوله دی آیت کریمه څخه دفدایي دنه جوازاستدلال بلکل نشي کیدلای،علماولیکلي دي کچیری یومسلمان مجاهدپه یولښکر دکفارویادهغوی په ملکروباندې بریدوکړي اوسل په سلوکې دمرګ خطروي داپه څوصورتونوکي جوازلري؛ یوداچې یومسلمان په یولښکردکافرانوباندی بریدوکړي اوده داعقیده وي چې زمابه دی بریدکې به کافرانوته ضرر رسیږي په دی صورت کې استشهادي بریدجوازلري.اوبل داچې یومسلمان په زروکافرانوباندې حمله وکړي اوده ته ښه علم وي چې دښمن ده دبریدپه وجه ضررنه رسیږي خونورمجاهدین زړورکیږي اوهغوی خپل هدف ته ځانونه رسوي په دی صورت کې هم فدايي بریدجوازلري.اوبل داچې یومسلمان په دیروکافرانوباندی حمله وکړي په هغه بریدسره نه دښمن ته ضرر رسیږي اونه نورمجاهدین زړورکیږي خوارهاب العدوراځي په دښمن باندې داراورعب غالب کرځي چې داهم په اسلام کې دیرمقصودوي په دی صورت کی هم

[1]- عن اسلم ابي عمران قال:کنابمدینة الروم فاخرجوا الیناصفا عظیما من الروم فخرج الیهم من المسلمین مثلهم....فحمل رجل من المسلمین علی صف الروم حتي دخل علیهم فصاح الناس وقالواسبحان الله یلقي بیده الی التهلکة فقال ابوایوب الانصاري فقال:یا ایهاالناس انکم لتاولون هذه الایة هذاالتاویل انمانزلت هذه الایة فینا معشرالانصار-جامع الترمذي۲/۱۶۷-.

فدايي بريدجوازلري.كذافي ردالمحتار،[۱]واعلاءالسنن،وفتاواى تاترخانيه،وسير الكبير،والمحيط البرهاني على مذهب النعماني وايضاًاحكام القرآن.اوپه تفسيرالمنير كي خوصراحة فدايي بريد دجواز عنوان كېښودل شويدى؛نوفدايي بريد په شرعه كي بلكل جوازلري.

## مجاهدباندي ديت شته:

كه يومجاهد په كومه لاره باندي دكفارولپاره ماين خښ كړي،اودى بي غوري وكړي په هغه ماين باندي ملګيان مسلمانان شهيدان شي،نوددى حكم دقتل خطاءدى په دى مجاهدباندي ديت هم راځي اوكفاره هم درباندي شته؛يعني ديت به هم وركوي اوكفاره دقتل خطاچي دوه مياشتني پرله پسي روژه نيول دي هغه به هم نيسي.[۲]

## په اسلام كي لومړى شهيداوشهيده:

داسلام په سنګركي ترټولولومړى شهيدحضرت حارث بن هاله دي؛اوداسلام په تاريخ كي ترټولو لومړنى ښځه چي په شهادت باندي رسيدلي ده هغه سميه بنت خياط دحضرت عماربن ياسروه،چي ابوجهل لعين په آسونوپوري تړلي وه اوبيايي په فرج كي په توره باندي وهلي وه.

## په نړى كي په لومړي ځل په آس باندي څوک سپورشوى؟:

ددنياپه تاريخ كي په لومړي ځل حضرت اسماعيل ﷺ په آس باندي سپورشويدى؛اوپه صحابه كي په لومړي ځل حضرت مقدادبن الاسودالكندي په آس باندي سپورشويدى.

## دانتخاباتوبيان.

طلب دامارت اوهغه انتخابات چي خلک خپل خانونه ورته كانديدوي په اسلام كي څه حكم لري؟په يوه حديث شريف كي راځي حضرت عبدالرحمن ابن سمره ته نبي كريم ﷺ فرمايلي دي

---

[۱]- قوله:(لم يلزمه القتال)يشيرالى انه لوقاتل حتى قتل جاز،لكن ذكرفي الشرح السيران لابأس ان يحمل الرجل وحده وان ظن انه يقتل اذاكان يصنع شيأ بقتل اويجرح اويهزم فقدفعل ذالک جماعة من الصحابه بين يدى رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم احد ومدحهم على ذالک- ردالمحتار۶/۲۰۳-.

[۲]-وفي سيرالكبيرللامام محمد اورمى الى مشرک فرجع السهم فاصاب مسلما فقتله فعليه الدية والكفارة والاصل في هذا ماروي ان سيوف المسلمين اختلف يوم احدعلى اليمان ابي حذيفه فقتلوه فجعل رسول الله صلى الله عليه وسلم فيه الدية فوهبها لهم حذيفة انتهى. وفي شرح السرخسي على السير الكبير لان هذا صورة الخطاء والدية والكفارة على القتل الخطاء واجب بالنص انتهى كذافي فتاوى الهنديه۲/۱۰۵-. تخرج حماسي.

چی یاعبدالرحمن ابن سمره لاتسل الامارة فانک ان اعطیتها عن مسئلة وکلت فیها الی نفسک،وان اعطیتهاعن غیرمسئلة اوعنت علیها.(۱)

ژباړه:ای عبدالرحمن ابن سمره دامارت غوښتنه مه کوه،که ته وغواړی چی ته امیرشی بیاهغه امارت ناته درکړای شي،نوته به دي امارت ته ورو سپارل شی،بیاله تاسره الله تعالی اعانت نه کوي؛اوکه درکړل شی تاته مشرتوب پرته له غوښتنې څخه نوبیابه الله تعالی له تاسره اعانت کوی.له حدیث څخه څرګندیږي چی طلب دامارت جوازنه لري؛نواوس چی په معاصره نړی کی حلک دولسمشری بانورولوړپوړوپوستونولپاره خپل خانونه کاندیدوي ددې څه حکم دی؟په دی اړونداټونه معارض راغلي دي،داکوم حدیث چي ذکرشوله دې څخه معلومیږي چي دمشری غوښتنه ناروا ده؛اوله دی ایت کریمه څخه معلومیږي چی دامارت غوښتنه جوازلري کماقال الله تعالی{ قَالَ ٱجۡعَلۡنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلۡأَرۡضِۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٞ }(۲)حضرت یوسف ؑ دمصربادشاه ته وویل:چی مادخمکوپه خزانوباندی امیروګرځوه،ځکه چی زه حفیظ اوعلیم یم.دلته حضرت یوسف ؑ دامارت غوښتنه کړیده.اوبل حدیث په سنن ابي داودکي راځي چي:من طلب قضاءالمسلمین حتی یناله حتی غلب عدله جوره فله الجنة ومن غلب جوره عدله فله النار.(۳)یعني که څوک دمسلمانانوقضاءاومشري طلب کړي،بیاپه دي مشري اوقضاکي دده عدل غالب وګرځي نوده لره به جنت وي؛اوکه دده ظلم غالب وګرځي په عدل باندي بیابه دده لپاره جهنم وي؛له دي حدیث څخه معلومیږي چی طلب دامارت جائزدي نودلته دحدیثونوترمینځ تعارض راغي؛بیعلماوداسي تطبیق کړیدی چي که څوک دمشري اوقضا اهل نه وي دهغه لپاره دامارت اومشري غوښتنه جوازنه لري.

بل هغه څوک چي دمشري اهلیت ولري خودی ددنیا دګټولولپاره دمشري غوښتنه کوي داهم جوازنه لري؛خوهغه څوک چي ددې لپاره مشرتوب غواړي چي دمسلمانانوترمینځ عدل اواصلاح راولي اوددنیاحاصلول یې مطلب نه وي په دي صورت کي بیادمشري غوښتنه جوازلري؛دلاښه تحقیق لپاره فتح الملهم،اعلاءالسنن اوالمصباح في رسم المفتي ومناهج الافتاء کتابونوته مراجعه وکړي

---

۱- سنن ابي داود کتاب اخراج والفي والامارة۲/۴۰۷-.

۲- سورة یوسف/۵۵.

۳- سنن ابي داود کتاب القضاء۲/۵۰۳-.

ورسره مهال چې کوم دموکراتيک انتخابات کېږي او خلک خپل خاوند وړ نه کانديدوي مطلب دامارت ومشرۍ غوښتل دي بلکل جوازلري، هغه چې نوي خوبو دمشرۍ اهل نه دي، بل داچې که دوی اهل هم وي خو دوی مقصد يې اصلاح نه دی لپاره يې غواړي چې قدرت حاصل کړي او دنيا لاس ته راوړي، هو که څوک په دې نوښت سره خپل ځان کانديدکړي چې دمسلمانانو اصلاح وکړي دادول مطلب دامارت بيا جوازلري، که دا شي وخت رانشي چې ټول مسلمانان خلک انتخاباتوته ولاړ وه او دهغوی په رسيا هم داسلام خدمت منظور وه نو په دې صورت کې ځان کانديدول بلکل جوازلري.

# درشوت بيان:

په خصوصوصورتونوکي درشوت ورکول جوازلري اوپه بعضوصورتونوکي درشوت ورکول ناجائزدي؛که څوک غواړي چې ځان والي یاولسوال کړي بیاهغه امیرالعام ته ددې لپاره رشوت ورکړي چې دی منصب خوښ شي په دې صورت کې درشوت ورکول يادرشوت اخيستل جوازنه لري؛ياکه څوک ددې لپاره قاضي ته رشوت ورکړي چې زما په حق کې فيصله وکړي په دې صورت کې هم دراشي ومرتشي دواړو لپاره درشوت ورکول او اخيستل ناروادي.

اوکه يوڅوک ددې لپاره قاضي ته رشوت ورکړي چې احياءدخپل حق وکړي دارشوت ورکونکي ته بوهيږي چې حق زمادی خوقاضي ظالم دی کچیرې زه رشوت ورنکړم نوزماپه حق کې دظلم فيصله کوي په دې صورت کې رشوت ورکول جوازلري خواخيستونکي ته درشوت اخيستل ناجائزدي؛لکه ورسره مهال چې مسلمانان دظالمانوپه زندانونوکي بنديان دي،ددې لپاره چې هغوی له زندان څخه رخلاص شي اوله ظالم له ظلم څخه وژغورل شي درشوت ورکول جوازلري خومرتشيانوته يې اخيستل حرام دي.کافي البتايه ومیرقاة المفاتيح [1] وعلامه ابن نُجيم په دې اړه مستقله رساله ليکلې دهغې په فتواوي زينيه کې شائع شوې ده لانده تحقيق لپاره پورتنيوکتابونوته مراجعه وکړی.

---

[1] - ... القاضي ليتوصل به الى الحق اوليدفع به عن نفسه ظلما فلابأس به وكذا الاخذ ... في اصابة صاحب الحق فلابأس به مرقاة المفاتيح ...

# دسحر"جادو"بیان.

جادواونظردواړه حق دي،دجادوپه وجه روغ انسان ناروغه کېدلای شي؛اوجادودانسان په زړه باندې داغیزې په کولوسره دهغه قلبي رجحانات هم بدلولای شي،آن بردې پورې چې دجادوپه واسطه یوڅوک بل څوک وژلای هم شي.[1]

جادوپه خپل کورکي په دوه ډوله دی،یوډول سحرحلال دی اوبل ډول حرام دی؛حلا سحرهغه ته وېل کېږي چې هغه ته علم دنیرنج اونیرنګ هم وایي دبیلګې په ډول کله چې پسه حلال کړې بیایې سرپه خبروبندې راولي،کشف الظنون کتاب کې له یوه علم څخه نقل شویدی چې یوه ورځ په بغدادکې یوه جومات ته یوشدې راغی اصل کې سړی وه په خپل ځان یې سحرکړی وه له ځان څخه یې شادې جوړکړی وه،مجمعي ورځ وه دی شدې په خپله اوږه باندې جای نمازهم اچولی وه نوردېرخلک هم ورسره وه داشادې امام ته مخامخ ناست وه دېرسخت یې ژړل؛خلکوندې شادې له ملګروڅخه پوښتنه وکړه چې دی ولې ژاړي؟هغوی ورته ووېل:چې دی په اصل کې دیوه بادشاه زوی وه،میندې په یوې جیلۍ باندې مین وه،خودهغې جیلۍ له ده سره مینه نه وه،څکه اوس هغې جیلۍ په ده باندې سحرکړی اوشادې ورڅخه جوړشویدی؛اوهغه جیلۍ ورته وایي چې که ته ماته دومره روپۍ رانکړی نوته به همداسې شادې یې اوس ددې لپاره ژاړي چې زه به هغومره روپۍ له کومه کوم مونږهم ددې لپاره راغلي یوچې تاسې یوڅه صدقه اوچنده ورته وکړي؛بیاخلکودېرې زیاتې روپۍ ورته ټولې کړې،داعلم وایي:چې کله داشادې له جومات څخه دباندې ووت نوبیرته روغ سړی ورڅخه جوړشو،دې ته علم دنیرنګ یانیرنج ویل کېږي.

## نادره:

په پخوانی زمانه کې دیوه بادشاه بنځې دهغه له غلام سره پټې جنسي اړیکې درلودې،کله به چې بادشاه نه وه دوی دواړوبه په باغ کې خپل عشقونه کول،څه وخت وروسته بادشاه وربالدې خبرشودهغه یووزیروه له هغه سره یوجادوګرهم اوسیده هغه ته یې ووېل:چې ته به په دوی باندې جادوکوې،هغه ووېل:سمه ده خوماته یوه شمعه راوړی،کله یې چې شمعه ورته راوړله نودې جادوګرله هغې شمعې څخه تمساح ماهي جوړکړ اندې بادشاه یوبل غلام وه جادوګرهغه ته ووېل کله یې چې په حوض کې لمبل پیلما وربالدې خبرکړه هغه همداسې وکړل داجادوګرراغی اوهغه تمساح یې چې له شمعې څخه جوړکړی وه هغه یې په دې حوض کې ورپرېښود هغه تمساح په اوبوکې ژوندی شواوهغه غلام یې وخوړ اتر هغه وروسته دیارلس ورځې هغه تمساح په همه حوض کې ژوندی وه،اخوورځې وروسته بادشاه له خپل وزیرڅخه پوښتنه وکړه چې هغه غلام څرنګه شوهغه ورته

---

[1] - والصحیح ان السحرعبارة عن تمویة والتخیل والسحروجوده حقیقة عنداهل السنة وعلیه اکثرالامم ولکن العمل به کفر،حکي عن الشافعي انه قال السحرتخیل ویمرض وقدیقتل تفسیربغوي ۱/۹۹.

وپه کړی دفضیلت په اړوسچي څومره احادیث راغلي هغه حدیثونه ټول یاضعیف یاموضوعي دي.منبلکی په
پګړه کي دمسوتر دانو علماوراهم یوډل حدیث عطاوله نبي کریمﷺ څخه نقل کړیدی چي بولمونځ له پګړی سره
په(۲۵) یوپه(۷۰) حساببري؛علامه علي القاري په المصنوع اواسرارالمرفوعه کتاب کي لیکلي دي چي
.حدیث موضوعي دی[1] اوروبېرو علماوهم لیکلي دي چي داحدیث موضوعي دی منهم علامه مبارکپوري في
تحفة الاحوذي،او علامه عبدالرؤف المناوي في فیض القدیر،اوالفوائدالمجموعه في احادیث الموضوعه داحدیث
علامه سیوطي په جامع الصغیرکي هم راوړی،موموري په جامع الصغیرکي صحیح احادیث راوړي خوپه دی
حدیث کي سهوه شویدی، والحق احق ان یتبع،بیرته په دي حدیث بقدی ابن حجر ردکړیدی.الغرض داچي دپګړی
دفضیلت په اړه څومره احادیث راغلي هغه ټول یاضعیف یاموضوعي دي صحیح حدیث دپګړی دفضیلت په اړه
نشته،مخونص دپګړي په اړه صحیح احادیث هم شته.

علامه سیوطي یوکتاب جوړکړیدی چي نوم یي دی انوار اللمعه في فضائل الجمعه هلته یي ددی لپاره
باب جلاکړی کړیدی چي څوک دجمعي لمانځه ته ځي هغه به پګړی پسرکوي دلته فضیلت بیان شوی
خواحدیثونه ټول ضعیف دي چونکه ځای دفضائلودی په فضائلوکي ضعیف احادیث هم داستدلال
وړوي؛نوکه څوک دجمعي دلمانځه لپاره پګړی پسرکوي اجراوثواب به یي زیات وي.

## په دریوجاموکي لمونځ مستحب دی:

خیني خلک ډیر تشددکوي چي لمونځ کونکی به خامخاپګړی په سرکوي اوکه په سریي نکړي نولمونځ
یي مکروه دی،ایا داخبره صحیح ده؟زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکي لیکلي دي چي په دریوجاموکي
لمونځ مستحب دی،ازار،عمامه اوقمیص؛ کذافي معارف السنن،[2]البحر الرائق وحلبي الکبیر.

کوم خلک چي وایي چي تاسي ولي لمانځه ته پګړی نه په سرکوي؟نومونږورته وایوچي زمونږدفقهي
حنفي په کتابونوکي خولیکل شویدی چي نبي کریمﷺ به لنګ اغوست تاولي لنګ ندی اغوستی؟که
څوک ډیرمستحبوپابندوي نودامروج پرتوګ دي لري کړي اولنګ دي واغوندي.اوبل مستحب
درسول الله قمیص دی زمونږدامتعارف قمیصونه دنبي کریمﷺ دقمیص په شان ندي ځکه چي دنبي
کریمﷺ قمیص ترآخره پوري بندوه؛که څوک دمستحبوپابندي کوي نودامتعارف قمیص دي لري کړي
دنبي اکرمﷺ په څیرقمیص دي واغوندي.که څوک وایي چي ملایانوتاسي ولي بي پټکي لمونځ

---

۱- صلاة بعمامة تعدل خمسا وعشرين بلاعمامة،وجمعة بعمامة تعدل سبعين جمعة بلاعمامة،والصلوة في العمامة بعشرةالاف حسنة.موضوع
(المصنوع في معرفة حديث الموضوع/۱۲۸)

۲- واعلم بانه تستحب الصلاة في ثلاثة اثواب:الرداء،ولازار،والعمامة اوالقميص،والسراويل والعمامة صرح به في البحروغيره من شروط الصلوة معارف السنن۳/۳۶۴.

کوي؟مونږورته وایوچي تاسي هم په دې دومستحبوعمل وکړۍچي دلنګ لاهل اوقمیص اعوستل دي؛مونږدامنوچي له پګړي سره لمونځ کول غوره دي خوهغه علماءچي پرته له پګړۍ څخه لمونځ مکروه ګڼي هغوی ته مونږوایوچي: هاتوبرهانکم ان کنتم صادقین.

په مونږاحنافوکي لوی عالم علامه عبدالحي الکنوي په عمدة الرعایه کي لیکلي دي چي ځیني خلک وایي چي پرته له پګړۍ څخه لمونځ مکروه دی؛نوموړي لیکلي دي چي پرته له پګړي څخه لمونځ نه مکروه تنزیهي دي اونه مکروه تحریمي دي؛علامه بنوري په معرف السنن باب في الصلوة في ثوب واحدهلته هم دغه خبره لیکلې ده؛[1]همدارنګه علامه انورشا کشمیري په العرف الشذي کي هم دغه خبره لیکلې ده.

## دغاړې له څادرڅخه پګړي جوړول:

بعضي خلک چي کله دجمعي لمانځه ته مخکي کیږي بیادخپلي غاړې له څادرڅخه پګړۍ جوړوي آیاپه دې سره دعِمامي ثواب حاصلیږي؟په دې اړه علامه عبدالحي الکنوي په الکلام الجلیل في مایتعلق باالمندیل کتاب کي لیکلي دي چي دخپلي غاړې له څادرڅخه پګړۍ جوړول جوازلري اوثواب دعمامي ورته حاصلیږي،سره له دې چي هغه عِمامه نه بلکه دغاړې څادروي؛ددې لپاره یې حدیث هم دلیل راوړی چي داحدیث سبل الهدی والرشاد دعلامه صالحي،جمع الوسایل دعلامه علي قاري اوپه شرحه دالمواهب الدینیه کي علامه عبدالباقي الزرقاني هم راوړیدی چي کله به رسول اللهﷺ پګړۍ ونه موندله نودوه توټې په یې سره وتړلي له هغي څخه به یې عمامه جوړه کړه؛نوعِمامه علی منادیل الاکتاف بلکل جوازلري استحباب اوسنتیت وربانديي راځي.[2]

## اعتجارمکروه دی:

اعتجاردی ته ویل کیږي چي پګړۍ یې په سرکړې وي خو خولي یې نه وي په سرکړۍ اوپاس سریې لوڅ پاتې وي،دادول عمل په لمانځه اوغیرله لمانځه څخه په دواړوحالتونوکي مکروه دی؛دلابنه تحقیق لپاره الکلام الجلیل في مایتعلق باالمندیل کتاب ته مراجعه وکړی.

---

[1] - ولاتکره الصلوة من غیرعمامه ولوکان اماما لاتحریما ولاتنزیها- معارف السنن۳/۳۶۴-.

[2] - ویتعممون بمنادیل اکتافهم فان الظاهر انه یحصل به ثواب ثواب اصل تعمم علی مقتضی الکیفیة وظاهر الشریعة وان لم یعبرفي العرف العام کذافي مقالة الننبه في العمامة والعذبة للقاري/۶۵. وفي کلام الجلیل في مایتعلق باالمندیل/۱۰. مخرج حماسي.

## دنبي كريمﷺ دپګړی اندازه:

ځینو علماولیکلي دي چې دنبي کریمﷺ دپګړی اندازه وه ګزه وه،ځینولیکلي دي چې لس ګزه وه،اوبعضونوروعلماولیکلي دي چې اتلس ګزه وه؛خوصحیح خبره داده چې کومه علامه علي قاري لیکلي هغه داچې محققین علماوایي چې مونږپه دی اره ځومرپلټنه وکړه صحیح حدیث موپه دی اړوندونه موند چې درسول اللهﷺ دپګړی اندازه څومره وه؛[1]له ام جزري څخه علماونقل کړیدی چې هغه وایي:ماچې څومره تحقیق وکړچې درسول اللهﷺ دپګړی اندازه څومره وه،خوهیڅ کوم قانع کونکی دلیل مې ددی لپاره پیدانکړ.خوامام نووي لیکلي دي چې درسول اللهﷺ دپګړی اندازه ووه ګزه وه اوبله اتلس ګزه وه؛ خوداهم دنوموړي خپل نظردی احادیثوکي ددی څه ثبوت نشته؛اوعلامه سیوطي په حاوي الفتاوی کی لیکلي دي چې غوره داده چې پګړی لس شرعي ګزه وي.

علامه علي القاري په خپلودوکتابونوجمع الوسائل اومیرقاة کی لیکلي،همدارنګه علامه مناوي دترمذي په شرحه کي لیکلي اوعلامه محمدیوسف الصالحي هم لیکلي دي چې درسول اللهﷺ دپګړی اندازه کی څه قدرنشته؛همدارنګه علامه ابن حجر، علامه زرقاني اوعلامه قسطلاني هم دغه خبره لیکلي ده.بیاعلماولیکلي دي چې پګړی به ډیره لویه هم نه وي اوډیره کوچنی به هم نه وي،ډیره غټه به څکه نه وي چې بیادسري سردردکوي کنی شرعا ناروانه ده،متوسط حالت کی به وي.

## کوم لوري ته شمله پریښودل سنت ده؟:

پدی اړوندصحیح احادیث راغلي دي چې رسول اللهﷺ به خپله شمله دشالوري ته پریښودله.[2]اوداسی حدیثونه هم روایت شویدی چې کله به نبي کریمﷺ صحابه وته پګړی وروپسرکوله،شا اومخي دواړوطرفونوته به یی شملي ورته پریښودلي[3] خواصلي سنت داده چې شمله به دشالوري ته داوروپه مینځ کې وي.[4]

---

[1] - واماطول العمامة وعرضها فلم يعلم من الاحاديث ولامن السيرعلى ماصرح به سيدجمال الدين المحدث في روضة الاحباب:لكن بعض علماالحنفيه ذكروان عمامة النبي صلى الله عليه وسلم كان يلبس دائما طوله سبعة اذرع والتي في الجمعة والعيدين طوله اثناعشرذراعا-(مجموعة الرسائل للعلامه علي القاري/٦٢-٦٣)

[2] - عن جعفربن عمروبن حريث عن ابيه قال:رأيت النبي صلى اله عليه وسلم على المنبروعليه عمامة سوداءقدارخى طرفيها بين كتفيه-سنن ابي داود٢/٥٦٣-.

[3] - عن عبدالرحمن بن عوف يقول:عممني رسول الله صلى الله عليه وسلم فسدلها من بين يديه ومن خلفي-سنن ابي داود٢/٥٦٤-.

[4] - عن ابن عمرقال:كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا اعتم عمامته بين كتفيه قال نافع كان ابن عمريفعل ذالک-(شمائل الترمذي/٨)

بویل حدیث شریف امام دارومي راوړی دحضرت ابي امامة الباهري په روایت سره،معجم الکبیرکی امام دارومي هم داحدیث راوړیدی چي کله به نبي کریم والي مقررکاوه،نوهغه ته به یی پکړی وریسرکوله اوشمله به یی ښي طرف ته پریښودله.[1] خوعلامه سیوطي،علامه هیثمي،علامه علی القاري،علامه قسطلاني اوعلامه صالحي لیکلي دي چي داحدیث ضعیف دی؛دتولومحدثینواجماع په دی باندي راغلی ده چي داحدیث ضعیف دی.

په دی اروند بل حدیث امام طبراني راوړی،تحفة الاحوذي کی هم داحدیث نقل شویدی هغه داچي کله رسول الله ﷺ حضرت علی خیبرته لیږه نوهغه ته یی پکړی وریسرکړه شمله یی چپ طرف ته یاښا لوري ته پریښودله؛خودلته دراوي شک دی چي چپ طرف ته وه اوکه ښالوري ته؛اسنادهذالحدیث اسنادحسن.[2] علامه علی القاري،علامه مناوي اوعلامه مبارکپوري په التحفة الاحوذي کي لیکلي دي چي خبردی که راوي شک هم وي دچپ طرف دپکړی جوازورڅخه معلومیږي؛علماولیکلي دي چي چپ طرف ته شمله پریښودل دمتصوفینو علماومعمول دی نوهرلوري ته شمله پریښودل جوازلري خواصلي سنت دښا لوري ته ده.

اوبل داچي دشملی اندازه به څومره وي؟اصل کي خوداده چي شمله به یوه لویشت وي ،څکه چي کله رسول الله ﷺ صحابه وته پکړی وریسرکولي،یوه لویشت شمله به یي ورته پریښودله؛په اوس وخت کي اوږدي شملي متعارفي دي ددې څه حکم دی؟په دې اړه چي شمله به څومره وي دعلماومختلف اندونه دي،څیني علماءوایي چي کله پرڅوک ناست وي نوشمله به یي ترمقعدپوری رسیږي،بعضي علماءوایي چي تردې زیاته هم جوازلري؛خوښه خبره داده چي کبراولویي نه وي یکي هرڅومره چي وي جوازلري؛کني اصل کي سنت یوه لویشت تردولویشتوپوری ده والله اعلم.

## له رسول الله ﷺ څخه دوه شملي هم ثابتي دي:

دوه شملي پریښودل هم جوازلري،څکه چي په ډیرواحادیثوکي له رسول الله ﷺ څخه دوه شملي ثابتي دي.[3]

---

١- عن ابي امامةقال:كان رسول الله صلى الله عليه وسلم لايولي واليا حتى يعممه ويرخي لها من جانبه الايمن نحوالاذن معجم الكبيرللامام طبراني٨/١٢٤-.

٢- وذكرالسخاوي عن معجم الطبراني الكبيربسندحسن انه صلى الله عليه وسلم بعث علياالى خيبرفعممه بعمامة السوداءثم ارسلها من ورائه اوقال:على كتفه الايسر-(مجموعة الرسائل للعلامه على القاري/٨٣)

٣- وعن ثوبان مولى رسول الله ان النبي صلى الله عليه وسلم كان اذا اعتم ارخى عمامته بين يديه ومن خلفه-مجمع الزوائد٥/١٢٠-. رقم الحديث ٨٤٩٩

اوبل داچي ډیګړي دسرلوری دشا طرف ته توميل سنت ده،یوه حدیث شریف کی راحی چی رسول اللهﷺ به دخپلی پګړي دسردلوري غرز دشالوري ته کاوه.[۱] دعلم احادیثوپه ډیروکتابونوکی داحدیث روایت شویدی منهم:شعب الایمان للامام بیهقي،ومجمع الزوائدللعلامه هیثمي،وتحفة الاحوذي للعلامه عبدالرحمن مبارکپوري،وجمع الوسائل للعلامه علي القاري.

## دپګړۍ ول په ول رنګول:

زمونږ دفقهي حنفي په کتابونوکی لیکلي دي چي که څوک خپله پګړي رنګوي نوسنت داده چي ول په ول یی رنګه کړي،په یوه ځل به تولوله له سرڅخه نه لرې کوي؛کذافي محیط البرهاني والسیرالکبیر.په دې اړه یوحدیث هم راځي چي حضرت عبد الرحمن بن عوف ته رسول اللهﷺ وفرمایل:چی صبادی چیرته لیږم تیاراوسیږه؛کله چي نوموړی صباراغی پګړۍ یی پسربانديو وه رسول اللهﷺ دهغه پګړۍ ول په ول رنګه کړله بیرته یی له سره پګړۍ ورووهله عبدالرحمن ابن عوف وایي فعممني رسول اللهﷺ یعنی ماته رسول اللهﷺ پګړي راپسرکړله.[۲] کله به چي نبي کریمﷺ کوم ځای ته والي لیږه نوهغه ته به یي پګړۍ ورپسرکوله.

## څه ډول خولۍ سنت ده؟:

په دې اړوندپه مجمع الزوائدکي یوحدیث شریف راځي چي نبي کریمﷺ به سپینه خولۍ پسرکوله.[۳] په هغه زمانه کي دامروجی خولۍ کاني نه وی،ترمذي شریف کي یوحدیث راځي چي:کان کمام اصحاب النبيﷺ بطحا.[٤] تحفة الاحوذي کي لیکلي دي چي بطحا دامعنی چي په سرباندي اواري وی.

بعضي خلک په دې باندې ډیرتشددکوي چي طالبانوتاسي ولي پرې خولۍ پسرکوي،ددې پرځای ولی سپیني خولۍ نه پسرکوی؟مونږورته ځواب کووچي دامروجي سپیني خولۍ کاني هم دنبي کریمﷺ په سنتوندي برابرې، ځکه چي په هغه زمانه کي خولۍ کاني په سرباندي اواري وی،تاسي مویوځل

---

۱- عن ابي عبدالسلام قال:قلت لابن عمركيف كان رسول الله يعتم؟قال:كان يدوركورعمامته على رأسه،ويغرزهامن ورائه ويرسلهابه كتفيه. مجمع الزوائد۵/۱۲۰-رقم الحديث ۸۵۰۱.

۲- عن عبدالرحمن بن عوف يقول:عممني رسول الله صلى الله عليه وسلم فسدلها من بين يديه ومن خلفي-سنن ابي داود۲/۵٦٤-.

۳- عن ابن عمرقال:كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يلبس قلنسوة بيضاء- مجمع الزوائد- ۵/۱۲۱. رقم الحديث ۸۵۰۵.

٤- سمعت اباكبشة الانماري يقول:كانت كمام اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم بطحا- جامع الترمذي۱/۳۰۸-.

داخپلي سپيني خولی کاني درسول اللهﷺ په سنتوباندي برابري کري.بياپه مونږ باندی اعتراضونه کوي.په شرحه دالمواهب الدينيه کي ليکلي اوسبل الهدی والرشادکي ليکلي دي چي درسول اللهﷺ خولی بطحه وه؛ان تردی چي په خينواحاديثوکي داسي هم راغلي دي چي درسول اللهﷺ خولی څرم وه.(۱) که څوک دسنتواتباع کوي نوښايي چي اواره خولی پسرکړي کنی نورهرډول خولی په سرکول جوازلري خوچي له بدعتيانو اوکفاروسره مشابهت ونه لري.

## دپګړی رنګ:

داچي دپګړی به څه ډول رنګ وي په دی اروندچي ماځومره تحقيق کړی دسپيني پګړی په اره مي په احاديثوکي څه نه دي ليدلي،چي نبي کريمﷺ دی سپينه پګړي پسرکړی وي؛خوله عدم دوجدان څخه عدم دشي نه راحي؛علماوليکلي دي چي سپينه پګړی مستحب ده،مصنف ابن ابي شيبه کی دسپيني پګړي عنوان ذکرشويدی،خوبيايي دتوری پګړي په اره ډير روايتونه ذکرکړيدي،چي يوله هغوروايتونوڅخه داده چي نبي کريم دمکي مکرمي دفتحي په ورځ توره پګړي په سرکړی وه،(۲)حکه چي توره پګړی دهيبت اودوارپګړی ده.

ژيره پګړی هم جوازلري،څکه چي دبدرپه ورځ باندي چي ملائکي دمجاهدينودامدادلپاره راغلي وي دهغوژيری پګړی پسرباندی وی اوشملي يی دشالوري ته داوږوترمينځ پريښي وی.(۳)اونبي کريمﷺ فرمايلي دي چي کله زه آسمان ته وختلم فرأيت اكثرالملائكة متعممين،يعني ډيرو ملائکه وپګړی کاني په سرکړي وي.(٤)همدارنګه په يوه بل حديث شريف کي راغلي چي دمسلمان اوکافرترمينځ توپيرپه پګړی پسرکولوکي دی.(٥)

مصنف ابن ابي شيبه کي ددي لپاره دلائل وړاندي کړيدي چي هرډول پګړی جوازلري خوپواځي سره پګړي ناروا ده؛ اوځيني علماءوايي چي ژيره زعفراني رنګه پګړی اوشنه شفتلي رنګه پګړي هم

---

۱- عن ابن عباس قال:كان لرسول الله صلى الله عليه وسلم قلنسوة اسماط يعني جلودوكان فيها ثقبة-سبل الهدى والرشاد٧/٢٨٥-.

۲- عن جابرقال:دخل النبي صلى الله عليه وسلم مكة يوم الفتح وعليه عمامة سوداء- جامع الترمذي١/٣٠٢-.

۳-إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ [٨:٩] سورة انفال/٩.

٤-عن عائشة قالت:عمم رسول الله عبدالرحمن بن عوف وارخى له اربع اصابع وقال:لما عرجت الى السماء رأيت أكثرالملائكة متعممين- مجمع الزوائد٥/١٢٠-. رقم الحديث ٨٤٩٨.

٥-عن محمدبن ركانة عن ابيه قال ركانه:سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقول:ان فرق مابيننا وبين المشركين العمائم على القلانس- جامع الترمذي١/٣٠٢-.

جوازنه لري،خکه چې دادباطلودلوشعار گرځيدلي دی په دې وجه يې پسرکول ناروادي کنې نفس جوازلري.علامه سيوطي په السلج الفوادفي البس السواد کتاب کی له ډيروصحابه وڅخه نقلونه کړيدي چې هغوی به توری پګړی پسرکولې منهم:حضرت حسين،حضرت عبدالله ابن حذافه،حضرت معاويه ابن ابي سفيان اوسعيدبن المسيب تابعي رضي الله عنهم.

اوبل تحنيک(مول وهل)هم جوازلري،حتی چې حنبلیان خولاداوايي چې پګړی به وي محنکه؛اوطي اللسان يلتقنع هم جوازلري،تقنع دي ته ويل ويل کيږي چې په پګړی برسيره ځادرواغوستل شي؛بعضي خلک دخولی په سرهم ځادراچوي چې دي ته هم تقنع ويل کيږي،داهم جوازلري اصل کی دادحياعلامه ده.علامه ابن قيم ليکلي دي چې تقنع جوازنه لري،خو علامه سيوطي په طي اللسان عن ذم طی لسان کتاب کې په دې اړه ډيراحاديث راوړيدي،علامه زرقاني هم په دی اړه په شرح دالمواهب الدنيه کې مستقل تحقيق بيان کړيدي اوسبل الهدی والرشادکې هم علامه صالحي ددی لپاره مستقل باب ايښی چې تقنع جوازلري؛ترمذي شريف کې يوحديث راځي چې:کان النبيﷺ يکثرالقناع.[1]يعني رسول اللهﷺ به ډيرکرته تقنع کاوه؛علامه علي القاري په جمع الوسائل على الشمائل الترمذي کی ليکلي دي چې علماءبه تقنع کوي خکه چې دادعالم اوغيرعالم ترمينځ توپيردی.

## دږيري توررولوشرعي حکم:

کله چې ديوچاګيره سپينه شي نوپه نکريزوباندې دهغي سره کول مستحب دي؛زمونږدمذهب په فتاوای هنديه کي دامسئله ليکلي ده؛دیادوني وړده چې فتاوای هنديه يوه عالم نده جوړه کړې، څلورو سوعلماوددې په تأليف کي برخه اخيستي ده؛عالمګيرابن شاجهان ديوه بادشاه نوم دی،نوموري ددی فتاوای دتأليف لپاره څلورسوه علماءکرام راغونډکري وه،چې يو يکي دفصول اکبري مصنف هم وه.

خودتور رنګ په اړه دعلماواختلاف دی،څلورعلماءداختلاف يوه لورته دي چې هغه علامه ابي عاصم،علامه ابن جوزي، امام ابويوسف اوعلامه ابواسحاق صاحب المغازي دي؛دوی وايي چې دګيري تورول جوازلري؛پرته له دوی څخه ددنياجمهورعلما اوڅلورواړه مذاهب وايي چې دګيری تورول په اسلام کې جوازنه لري؛حتی چې خينوشافعي مذهبو علماو خولاداهم ليکلي دي چې دګيری تورول اوويښتانوته رنګ ورکول ګناه کبيره ده؛کذاقال ابن حجرفي الزواجرعن اقتراب الکبائر.لنده داچې دجمهوروعلماومذهب دادی چې ويښتانو ته رنګ ورکول شرعاجوازلري؛خودمجاهدلپاره ويښتان تورول اتفاقاجوازلري ددې لپاره چې په دښمن کې رعب راشي.

[1] - (شمائل الترمذي باب ماجاءفي تقنع رسول الله/۸)

علامه علي القاري په جمع الوسائل على الشمائل الترمذي کې دوینتانود تورولودمنعې لپاره صحیح احدیث راوړي دي؛ علامه شامي هم ددې په حرمت باندې فتوی کړیده؛اکثره احنافوددی دنه جواز فتوی ورکړیده الاابي یوسف؛دیروکتابونوکي ددې دحرمت لپاره دلائل وړاندی شویدي منهم:الفقه الحنفي في ثوبه الجدیدللعلامه محمودطهمان،جواهرالفقه للعلامه محمدشفیع،فتح الملهم للعلامه شبیر احمد ومعین المفتي على جواب المستفتي.

هغه علماءچې ددې مجوزین دی هغوی دابن ماجه له یوه حدیث څخه استدلال کوي چې:احسن ما اختضبتم به لهذالسواد.[1] یعنې غوره دهغوشیانوچې تاسي خپل ویښتان وربانديی توروي هغه توردي، یوداچې له تاسي سره به ښځی رغبت کوي اوبل داچې ددښمن په سترګوکي به هیبتي ښکار یږي.اوپه دې ارونډیوبل حدیث هم دلیل راوړي چې حضرت عمربه دویښتانوپه تورولوامرکاوه چې تاسي خپل ویښتان توروی، ځکه چې په دې سره به ددښمن په سترګوکي هیبتي ښکاری اوخپلې میرمني به هم محبت درسره کوي.[2] عمدة القاري،تحفة الاحوذي اومجمع الزوائدکي داحدیث روایت شویدي.مجوزین علماءددې دجوازلپاره ځینې نوردلائل هم وړاندی کوي هغه داچې حضرت عثمان،حضرت عبدالله ابن جعفر، حضرت مغیره ابن شعبة، حضرت جریرابن عبدالله البجلي،حضرت حسین،حضرت حسین،حضرت سعدابن ابي وقاص اوحضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنهم:هغه صحابه دي چې هغوی به ګیرې تورولی.[3]مصنف ابن ابي شیبه،تحفة الاحوذي،عمدة القاري،تهذیب الآثار اوزادالمعاد،هغه کتابونه دي چې ددې صحابه ونومونه یې ذکرکړیدي چې دوی به خپلې ګیرې تورولی.

امدادالفتاوی کې علامه اشرف علي تهانوي لیکلي دي چې په دې اړه دجوازاحادیث هم راغلي دي اودنه جوازاحادیث هم راغلي دي خودنه جوازحدیثونه مرفوع دي اودجوازحدیثونه موقوف دي،کله چې دمرفوع اوموقوف حدیث ترمینځ معارضه راشي نومرفوع حدیث ته ترجیح وي.اوبل داچې دمنعې احادیث قولي دي اودجوازاحادیث فعلي دي کله چې دقولي اوفعلي حدیث ترمینځ معارضه راشي نوقولي حدیث ته ترجیح وي.خوزمونږاحنافودمذهب په مبسوط کتاب کې لیکلي دي چې که خوک دخپلې میرمنې لپاره خپل ویښتان توروي داجوازلري بیايي لیکلي دي چې همداصحیح خبره ده.علامه تمرتاشي هم په معین المفتي کې همدی ته ترجیح ورکړی ده.اوعلامه مفتي تقي صاحب هم

---

[1] - عن صهیب قال:قال رسول الله صلي الله علیه وسلم ان احسن مااختضبتم به لهذالسواد،ارغب لنسائکم فیکم واهیب لکم في صدورعدوکم-سنن ابن ماجه۲/۱۱۷۹-. رقم الحدیث ۳٦۲۵.

[2] - عن ابن عمر انه کان یأمر بالخضاب بالسواد ویقول هو تسکن للزوجة واهیب للعدو-عمدة القاري۲۲/۷۹-.

[3] - عن عبدالله بن عبدالرحمن قال:رأیت نافع بن جبیریخضب بالسواد-مصنف ابن ابي شیبه۵/۱۸۳-رقم الحدیث ۲۵۰۱۹. عن قیس مولی خباب قال:دخلت على الحسن والحسین وهما یخضبان بالسواد-مصنف ابن ابي شیبة۵/۱۸۳-رقم الحدیث ۲۵۰۱۷. عن سعدبن ابراهیم عن ابي سلمه انه کان یخضب بالسواد-مصنف ابن ابي شیبة۵/۱۸۳-رقم الحدیث ۲۵۰۲۱.

په فتح الملهم کې ليکلي دي چې زماډيلار رايه په جواهرالفقه کې داده چې دوېښتانوتورول ناروادي خومبسوط کې ليکلي دي چې دخپلې ميرمنې دتسکين لپاره دوېښتانو تورول جوازلري.والله اعلم

مصنف ابن ابي شيبه کې ليکلي دي چې په لومړي خل باندې فرعون خپله ږيره توره کړې وه [۱] په دې اړوند دنيا دجمهورو علماورايه داده چې دوېښتانوتورول جوازنه لري،هغه صحابه چې هغوی به خپلې ږيرې تورولې هغه ټول مجاهدين وه اودجهادلپاره دوېښتانوتورول جوازلري.اوهغه احاديث چې په هغوکې له دې څخه منعه شوېده هغه ډيرمظبوط دي دبيلګې په ډول:څوک چې ګيره توروي الله تعالی به يې مخ تورکړي.[۲]څوک چې وېښتان توروي دهغه حشربه له فرعون سره کيږي؛اوهغه به دجنت بوی هم ونه ويني؛سخت وعيدونه پکې راغلي دي اوحنيثونه هم صحيح دي.زمايه خپله رايه داده چې دګيرې تورول شرعاجوازنه لري.

## يواځې دڅټ خريل جوازنه لري:

داحاديثوپه کتابونوکې راغي چې:حلق القفا مجوسية. جامع الصغير،مصنف عبدالرزاق الصنعاني، مجمع الزوائد،کتاب الورع دامام احمدبن حنبل اوکنزالعمال داهغه کتابونه دي چې داحديث يې روايت کړيدی.کيدلای شي چې له دې حديث څخه پريت مرادوي خکه چې دې کې هم قفاخريل کيږي؛ نودابول کرنه مجوسيت دي.[۳]

## دوېښتانوفرق سنت دی:

کله چې نبي کريمﷺ له مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ،دهجرت په لومړيوکې به يې دخپلو وېښتانوسدل کاوه،ترهغه وروسته يې دوېښتانوفرق پيل کړ.[٤]علماوليکلي دي چې دوېښتانوفرق کول سنت ده،اوسدل نفس جوازلري؛خکه چې ترهجرت وروسته به هم خينوصحابه ودخپلو وېښتانوسدل کاوه؛دبيلګې په ډول حضرت سعدابن مالک،حضرت معيقب رضی الله عنهما

---

۱- عن مجاهدانه کره الخضاب بالسوادوقال:اول من خضب به فرعون-مصنف ابن ابي شيبة٥/١٨٤-. رقم الحديث ٢٥٠٢٨.

۲- عن ابن عباس قال:قال رسول الله صلي الله عليه وسلم يكون قوم يخضبون في آخرالزمان بالسوادكحواصل الحمام لايرحون رائحة الجنة- سنن ابي داود٢/٥٧٨-. عن ابي درداء قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من خضب بالسوادسودالله وجهه يوم القيمة- مجمع الزوائد- ٥/١٦٣. ٨٨١٤.

۳- عن عمربن الخطاب قال:نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن حلق القفا الا للحجامة- مجمع الزوائد٥/١٦٩-. رقم الحديث ٨٨٦٤.

٤- عن ابن عباس قال:كان النبي صلى الله عليه وسلم يحب موافقة اهل الكتاب فيمالم يؤمرفيه وكان اهل الكتاب يسدلون اشعارهم وكان المشركون يفرقون رؤسهم فسدل النبي صلى الله عليه وسلم ناصيته ثم فرق بعد-متفق عليه-مشكاة المصابيح٢/٣٨٠-.

اوداسي نور..سدل دي ته ویل کیږي چې یوڅوک خپل ویښتان په خپله تنده راپریږدي.خوپیکی اړول دسرې اوښځې دواړولپاره جوازنه لري.کذافي اعلاءالسنن واحکام تجمیل النساء.[1]

## دښځولپاره دلاسونوسره کول مستحب دي:

دښځولپاره په نکریزوباندې دلاسونواوپښوسره کول مستحب دي؛زمونږ دفقهي حنفي په ډیروکتابونو کی دامسئله لیکلې ده؛کذافي جمع الوسائل،معین المفتي والمستفتي وایضاوسیلة الاحمدیه.

نبي کریمﷺ دیوی ښځي لاسونه ولیدل چي په نکریزویي.نه وه سره کړي،نبي کریمﷺ ورته وفرمایلې ته نرېي اوکه ښځه؟[2] له دي حدیث شریف څخه څرګنده شوه چي ښځي بایدخپل لاسونه په نکریزوباندی سره کړي؛خودنرانولپاره دلاسونوسره کول شرعا جوازنه لري همدارنګه دکوچنیوهلکانولاسونه سره کول هم ناسم کاردی.

له سنن ابوداودڅخه علماویوحدیث نقل کړیدی،چي یووخت کمې رسول اللهﷺ ته یوسړی په داسي حالت کي راغی چي خپل لاسونه اوپښي یې سره کړي وه،نبي کریمﷺ هغه بیرته له مجلس څخه ولیږه.[3]له دي حدیث څخه علماءاستدلال کوي چي دنرلپاره لاسونه اوپښي سره کول شرعاجوازنه لري؛خودضرورت پرمهال څه بلک نه لري.کذافي جمع الوسائل ومعین المفتي.

اودښځولپاره په نکریزوباندی نقش جوړول هم جوازلري،سره له دي چي کتاب الورع کی امام احمدبن حنبل ددي مخالفت کړیدی؛خوالمطلب العالیه کي علامه ابن حجرددي لپاره خانګړی باب راوړی هلته یې حدیث روایت کړیدی چي دښځي لپاره نقش جانزدی.[4]سره له دي چي داحدیث ضعیف دی خوبیاهم علماوددي په جوازباندي فتوی کړیده چي دښځي لپاره په لاسونو یاپښوپه نکریزوباندي نقش جوړول جوازلري.

---

[1]- والحاصل ان الصحيح المختارجوازالسدل،والفرق افضل-ميرقاة المفاتيح كتاب اللباس باب الترجل ۸/۲۷۷-.

[2]- عن عائشة قالت:امرأة من وراءالستريدهاكتاب الى رسول الله فقبض رسول الله يده فقال:مادري ايدرجل ام يدامرأة؟قالت:بل يدامرأة قال:لوكنت امرأة لغيرت اظفارك يعني بالحناء -سنن ابي داود۲/۵۷۴-.

[3]- عن ابي هريرة ان النبي صلى الله عليه وسلم اتى بمخنث(عمروبن قره)قدخضب يديه ورجليه بالحناءفقال النبي صلى الله عليه وسلم مابال هذافقيل يارسول الله يتشبه بالنساء فامربه فنفي الى النقيع-سنن ابي داود۲/۶۷۴-.

[4]-حدثني رجل من بني سليم عن ابيه عن جدته قالت:ان النبي صلى الله عليه وسلم دخل عليها وهي تخضب فقال:هلاياام فلان هكذاعلى ظهركفه يعني النقش-المطالب العاليه۱۰/۳۱۹-. رقم الحديث ۲۲۲۶.

## دنوکانوحفاظت کول:

خلکوکي مشهوره ده چي دشپې نوکان مه اخلی،یابعضي ورځي دي چي په هغو ورځوکي خلک نوکان نه اخلي،دایوه مردوده عقیده ده،په اسلام کي اصل نه لري؛هروخت کي دنوکانواخیستل جوازلري خوله ځلویښتوورځوڅخه به په کمه موده کي خپل نوکان لنډوي.اوبل داچي کله یوڅوک خپل وېښتان یانوکان لنډکړي نوښایي چي په یوه پاک ځای کي یې دفن کړي ځکه چي داهم دانسان اعضاءدي

اودتخرګ دوېښتانونتف سنت دي،ځکه چي نتف یې ډیری فائدي هم لري؛امام شافعي یوه ورځ نایي ته ناست وه دخپل تخرګ وېښتان یې وربادی خریل چاپوښتنه څنې وکړه چي ددی خونتف سنت دی،هغه ورته وویل چي زه پوهیږم چي نتف یې سنت دی خوزه نشم ورته ټینګیدلای ځکه چي دردراته کوي.

## دانسان له اجزاووڅخه نفعه اخیستل حرام دي:

که څوک دیوه انسان وېښتان راواخلي دبل انسان له وېښتانوسره یې وصل کړي ددی لپاره چي دهغه وېښتان وربادی دیرښي دانارواده؛ځکه چي دانسان په جزباندي انتفاع اخیستل حرام دي.خوکه دحیواناتووېښتان دکومي ښځي له وېښتانوسره وصل کړي بیاڅه پروانه لري.اوبعضي ښځي خپلي وریزي باسي ددی لپاره چي نری شي داهم شرعاجوازنه لري الله تعالی په دی دول ښځوباندي لعنت ویلی دی.

## آیاغاښ ته دسروزروپوښ ورکول جوازلري؟:

غاښونوته دسپینوزروپوښ ورکول جوازلري همدامفتی به خبره ده؛خودسرو زرو دپوښ په اړونده امام صاحب څخه دوه روایتونه راغلي دي؛یوروایت چي هغه دهدایې مصنف هم رانقل کړیدی هغه دنه جوازدی.اوبل روایت چي له امام صاحب څخه علماونقل کړیدی هغه دادی چي امام صاحب بیرته له خپلي خبري څخه رجوع کړیده؛علامه عیني په بنایه کي له امالي دامام ابویوسف څخه نقل کړیدی چي امام صاحب له دي څخه بیرته رجوع کړیده چي همدادصاحبینواومحققینو احنافورایه هم ده.

په دي اړوندعلامه ظفراحمدپه اعلاءالسنن کي لیکلي دي چي دامام صاحب درجوع خبره ثابته ده،یعني غاښ ته دسروزرو پوښ ورکول جوازلري.خوداپوښ ورکول به دیوه علت په وجه وي روغ غاښ ته پوښ ورکول ندي صحیح،ددی لپاره دلائل هم شته چي غاښ ته دسرو زروپوښ ورکول جوازلري.

حضرت عبدالله ابن ابی ابن سلول دادرئیس المنافقین ابی ابن سلول زوی دی،نوموړی وایي چې زماغاښ داحدپه غزاکي ولړیده بیاښوریده نبي کریمﷺ راته وفرمایل چې دسروزروپوښ ورکړه په هغه سره يې محکم والی راوله.[1] اله دی حدیث څخه غاښ ته دسروزرو پوښ ورکول څرګندیږي؛داحدیث په مجمع الاوسط دامام طبراني راوړی اونصب الرایه دعلامه زیلعي کې هم شته.

حضرت عثمان هم خپل یوه یانوغاښونوته پوښونه ورکړي وه.[2] داحدیث هم په دی یادوشویو کتابونو کي موجوددی. حضرت انس بن مالک هم خپلوغاښونوته دسروزروپوښونه ورکړی وه.[3] داحدیث عبدالله ابن احمد دخپل پلارپه مسندکي راوړی دی.اودحضرت عمرهم یوغاښ په کومه غزاکي زیړی شوی وه بیانبي کریمﷺ ورته وفرمایل چې په سروزرویي محکم کړه.همدارنګه حضرت موسی ابن طلحة ابن عبیدالله چې دی هم ممکن صحابي یاتابعي دی،نوموړی هم خپلو غاښونوته دسروزرو پوښونه ورکړي وه.[4]

دیروتابعینوهم خپلوغاښونوته دسروزروپوښونه ورکړی وه،امام طحاوي په خپل کتاب شرح معاني الاثارکي په دي اړوند دیرآثارله صحابه واوتابعینوڅخه نقل کړیدی چې هغوی به خپلوغاښونوته دسروزروپوښونه ورکړي وه.[5] نخب الافکارکی هم په دی اړه دیرآثارله صحابه وڅخه نقل شویدي. مصنف ابن ابي شیبه اومصنف عبدالرزاق الصنعاني کي ددی لپاره خانګړي بابونه نکرشویدي چې دیروصحابه اوتابعینوخپلوغاښونوته پوښونه ورکړي وه.ان شئتم على ان تقفوابسط هذالمسئلة والتحقيقه والصحابة الذين هم يشدون اسنانهم بالفضة والذهب فلترجعوا الى نصب الرايه،والدرايه واعلاءالسنن كتاب الحظروالاباحة.

# دسریولپاره دوېښتانوسدل جائزدی:

آیادسریولپاره په وچ پیلي(تنده)باندي وېښتان راېرېښودل جائزدي؟ په دی اړونبخاري شریف کی یوحدیث راځي چې کله رسول اللهﷺ مدیني منوری ته هجرت وکړ،دخپل هجرت په لومړیوکی يې دخپلو وېښتانوسدل کاوه،له اهل کتابوسره يي موافقت کاوه،ترهغه وروسته رسول اللهﷺ خپل صنیع

[1] - عن عبدالله ابن ابي ابن سلول قال:اندقت ثنيتي يوم احدفامرني النبي صلى الله عليه وسلم ان اتخذثنيته من ذهب-نصب الرايه۴/۲۳۷-.

[2] - عن واقدابن عبدالله التميمي عن أي عثمان بن عفان انه ضبب اسنانه باالذهب-نصب الرايه۴/۲۳۷-.

[3] - عن عبدالله ابن عمر ان اباه سقطت ثنيته فامرالنبي صلى الله عليه وسلم ان يشدهابالذهب-نصب الرايه۴/۲۳۷-.

[4] - عن طعمة الجعفري قال:رايت موسى ابن طلحه قدشداسنانه بالذهب-مصنف ابن ابي شيبة۵/۲۰۵-. رقم الحديث ۲۵۲۵۹.

[5] - عن حميدالطويل قال:رايت الحسن شداسنانه بالذهب-شرح معاني الاثار۴/۲۵۹-. رقم الحديث ۶۷۴۸. عن حمادقال:رايت المغيرة بن عبدالله اميرالكوفة قدضبب اسنانه بالذهب فذكرت ذالك لابراهيم فقال:لاباس به-شرح معاني الاثار۴/۲۵۹-. رقم الحديث ۶۷۴۹.

بدل کړیادوحی په دریعه یابرته له وحیي خو علماولیکلي دي چي ممکن وحیه وه،بیایی دځیلو ویښتانو فرق پیل کړ.[1] امام نسایي هم داحدیث راوړیدی اوشمائل الترمذي کي هم کي هم داحدیث موجوددی

دیادوني وړده چي قصه اوسدل دواړه په یوه معنی راځي یعني ارخاءالشعر علی الجبین.اوس مهال سنت دادی چي دځیلوویښتانوفرق وکړای شي،یعني ویښتان دوه توټی کړی اودشاطرف ته يې واړوي چي دی ته ځنی ویل کیږي،ځني په دری دوله دي.جمه،لمه او وفره؛ بعضي علماوایي چي نبی کریمﷺ روستنی فعل چي فرق دی هغه ناسخ دی،سدل اوقصه منسوخه ده اودمنسوح حکم دده جوازدی خوداخبره صحیح نده،ډیرومحدثینو علماولیکلي دي،چي چي سدل منسوخ نه دی اوفرق واجب ندی حکم داسي دی چي دویښتانوفرق مستحب دی اوسدل یاقصه نفس جوازلري،په دی اروندیوحدیث هم له حضرت عائشي څخه روایت شویدی هغه وایي چي مایوه ورخ دنبي کریم دویښتانوفرق وکرخودمخي طرف ویښتان مي په جبین ورته راپریښودل[2] له دي حدیث څخه معلومیږي چي نبي کریمﷺ له فرق سره سدل هم کړیدی.

اوخینوصحابه وبه هم دځیلو ویښتانوسدل کاوه،نوسدل نسخه ندی دواړه دوله ویښتان پریښودل جوازلري خومستحب داده چي فرق وکړای شي.کذافي عمدة القاري کتاب اللباس للعلامه عیني،وفتح الباري للعلامه عسقلاني،وارشادالساري للعلامه قسطلاني،واعلاءالسنن للعلامه ظفراحمد،وجمع الوسایل للعلامه علي القاري،والمواهب الدینیه علی الشمائل الترمذي للعلامه مناوي،والمنهاج للعلامه نووي وفي الظهرالربا علی المجتبی للعلامه سیوطي.دي تولوکتابونوکي لیکل شویدی چي دویښتانوسدل یاقصه جوازلري.

اوبل میلان دویښتانودی یوه اوبل طرف ته چي زمونږپه اصطلاح کي پیکی ورته ویل کیږي دهغه بیل حکم دی،یواځي په وچ پیلي باندي دویښتانوراپریښودل ثابت دي خودبي کیږي هلک لپاره جوازنه لري څکه چي ږهغه حکم دښځي په شان دی.

[1] - عن عبدالله ابن عباس ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یسدل شعره وکان المشرکون یفرقون روسهم وکان اهل الکتاب یسدلون روسهم وکان یحب موافقته اهل الکتاب فیمالم یؤمرفیه بشئ ثم فرق رسول الله- (شمائل الترمذي/۳)

[2] - عن عائشة قالت:انافرقت لرسول الله صلی الله علیه وسلم رأسه من یافوخه،انظرجمع الوسائل علی الشمائل الترمذي للعلامه علي القاري- ۱/۸۹. مخرج حذفي.

## دبریتونولندول سنت دي:

دبریتونوپه داسي دول لندول(کمول)چي حلق ته نږدې وي سنت دي.خودمجاهدلپاره غټ بریتونه پریښودل هم جوازلري ددې لپاره چي ددښمن په سترګوکي هیبتي ښکاره شي.اودسبالتینوپریښودل هم جوازلري څکه چي دادحضرت عمررضی الله عنه سنت دي.

## نوادره:

دهندوستان په هیوادکي دیوه سړي څه باندي یومتربریتونه دي،دلادیرومعلوماتولپاره عجائب المخلوقات ته مراجعه وکړی. اوددویم جنګ جهاني پرمهال دفرانسي فوجیان دتیارسی په حالت کي ولاړوه په دې وخت کي دوی ته دجرمنیانوله لوري یوجاسوس راولیږل شوچي دهغه دوه فوټه قد وه،په لاس کي یې دفانتابوتل نیولی وه چي هغه بوتل له ده څخه لوی وه،کافران هروخت داستخباراتي معلوماتوپه تولونه کي له هردول چل څخه کاراخلي.نوپه نړی کي دومره کوچني خلک هم شته دالله تعالی دیر عجیب نظام دی.

## دږیري پرېښودل واجب دي:

دږیري دپرېښودلودثبوت لپاره له نبي کریم څخه احادیث روایت شویدي،چي یوله هغواحادیثوڅخه داده چي:عشرمن الفطرة.[1]داحدیث په تولوصحاح سته وکي موجوددی.علامه عبدالرحمن ابن محمدابن قاسم الحنبلي په دې اړوندکتاب جوړکړی "تحریم حلق اللحا"هلته یې دګیرې دخریلو دتحریم لپاره ګڼ شمیراحادیث راوړي چي نبي کریمﷺ په هغوکي دګیري په پرېښودلوامرکړیدی؛دبیلګي په توګه:واعفوااللحی.[2]نودګیري پرېښدل واجب دي.

## دفنګینو،خدینواوعنفقه خریل:

دخدینو(غومبورو)په اړوندعلامه انورشاکشمیري فیض الباري کي لیکلي دي چي فقهاو دی ته مکروه ویلي دي؛خوکراهیت دشرعی له وجهي نه بلکي دضررونوله وجهي دی هغه داچي کله یوڅوک

---

[1] - عن عائشة ان النبي صلى الله عليه وسلم قال:عشرمن الفطرة قص الشارب،واعفاءاللحية،والسواک،والاستنشاق،وقص الاظفار،وغسل البراجم،ونتف الابط،وحلق العانة،وانتقاص الماء قال:زکریا قال:مصعب ونسیت العاشرالاان تکون المضمضة-جامع الترمذي-۲/۱۰۴.

[2] - عن ابن عمرقال:قال رسول الله انهکواالشوارب واعفوااللحی-صحیح البخاري۲/۸۷۵-.

دخپلوغومبورو وبېنتان وخريي بياهغه وبېنتان شخ شخ راخي.اوكه يې له بيخ څخه وباسي بيايوبل تاوان لري هغه داچي دستركونظرورسره كميږي؛كني خريل ياويستل يې نفس جوازلري [1]

خودفنكينوخريل بدعت دي ديروكتابونوكي دامسئله ليكلي ده مهنم:ردالمحتار،[2]لامع الدراري، احياءالعلوم اوداسي نور..څكه چي يو وخت كي حضرت عمرياعمربن عبدالعزيزته يوسري راغى هغه حيل فنكين خريلي وه؛حضرت عمردهغه شهادت قبول نكراوهغه يي په دي باندي تعزيركرچي ولي دي حيل فنكين خريلي دي.خوپه مونږاحنافوكي لوی محقق علي ابن سلطان القاري الهروي په شرحه دعين العلم كي له علامه عبدالحق ابن سيف الدين څخه نقل كړی چي هغه وايي دفنكينو خريل څه پروانه لري.

اوبل عنفقه خريل دي چي دايه شرعه كي جوازنه لري څكه چي داهم گيره ده؛خوعلامه عبدالحق اوعلامه علي القاري ليكلي دي چي په دي كي دعلماواختلاف دى خوپرېښودل يې غوره دي.

## درقبي حلق:

خيني خلک دخپل ستوني وبېنتان خريي آيادی خريل شرعاجوازلري؟په دي اړوندعلامه شامي ردالمحتاركي ليكلي اوفتاوى الهنديه كي هم ليكلي دي چي ددي خريل جوازلري.اوكه دچاپه سينه باندی وېښتان ديروي دهغي خريل هم جوازلري خوعلماوليكلي دي چي په دي سره ترک دادب راځي. [3]

المطالب العاليه كي علامه ابن حجريوحديث راوری دسالم اب عبدالله ابن عمرپه روايت سره نوموړی وايي چي يوه ورځ حضرت ابن عمردسردوېښتانوحلق كاوه كله چي نايي دمخ هدوكوته راورسيدنوموړی ورته وويل چي نوريي لاندې مه خريه؛بيايي خپل لستوني ورته پورته كړل خپلې متې اوسينه يې هم وخريل،سالم وايي چي مامي خپل پلار(حضرت ابن عمر)ته وويل:داسې نه چي څوک گمان وكړي چي دمتوخريل هم سنت دي،هغه راته وويل چي سنت ندی خوزه يې څكه خريم چي ديريي تنگ كړی يم.[4]انوكه څوک له خپلو وېښتانوسره پتنگ شي هغه كه دغاړی وي،كه دسيني وي اويادكوم بل ځاى وي خريل يې جوازلري.

---

[1] - واماالاشعارالتي على الخدين فليست من اللحية لغة،وان كره الفقهاء اخذهالانه ان كان بالحديدفذالک يوجب الخشونة في الخدين وان كان بالنتف فانه يضعف البصر-فيض الباري ۴/۳۸۰-.

[2] - نتف الفنكين بدعةوهماجانباعنفقة وهي شعرالشفة السفلى كذافي الغرائب-ردالمحتار ۹/۶۷۱-.

[3] - ولايحلق شعرحلقه وعن ابي يوسف لاباس به...وفي حلق الشعرالصدروالظهرترک دالادب-ردالمحتار ۹/۶۷۰

[4] - سمعت ابن عمرللحلاق ياعلام ابلغ العظمين قال:فلماحلقه اعطاه ذراعيه وصدره فحلق شعراعليهما والناس ينظرون فقال له سالم:ياابة ان الناس يحسبون انهاسنة قال:فاخبرالناس انهاليست بسنة ولكن ابن عمراراده الشعرفاذاني يخففه عنه-المطالب العاليه ۲/۲۴۶-.

# له عاني سره دمقعدحلق هم سنت دی

علماولیکلي دي چې له عاني سره دمقعدحلق هم سنت دی.خيني خلک حپل ورنونه حربی داهم نفس جوازلري خوترک الادب ده.اودازالة الشعرلپاره ددوا استعمال هم جوازلري،نوره اوچیته استعمالول هم جائزدي.اودنسحولپاره حکم داسي دی چې هغوی به نتف کوي،علامه علي القاري ليکلي دي چې په نتف کی فائده داده چې په دی سره اشتها کميږي.

## دتصویرونوبیان.

په دی باندی دعلماواتفاق دی چې دتصویرجوړول گناه کبیره ده،خوتصویرونه په دوه دوله دی یودول هغه تصویرونه دي چې هغه دی ظل وي معنی داچې سیوری لري اوبل دول هغه تصویرونه دي چې هغه ظل(سیوری)نه لري.

سیوري لرونکي هغه تصویرونه دی چې هغه جوهروي دبیلکي په دول:له لرگي،تیږی،باکوم بل شي څخه جوړشوي وي،دادول عکس چې کله لمرته کیښودل شي نوسیوری لري،په دی باندی دټلورومذاهبواودټولی نړی دعلماواتفاق دی چې دادول تصویرونه ناروا اوحرام دي.

او هغه تصویرچې هغه سیوری نه لري دبیلگي په توګه:چې په دیوال کاغذیاهم پرده باندی جوړشوی وي دادول تصویر عرض دی قائم بالغیروي په دی اړوند دعلماواختلاف دی ملکي مذهبه علماء ندي په جوازباندی قول کوي خواحناف، شوافع،حنابله اوغیرمقلدین دادول تصویرهم حرام گڼي.بعضی ملکي مذهبه علماءوايي چې غیرذی ظل عکسونه جوازلري خوپه دوی کي هم محققین علماءوايي چې غیرذي ظل عکس هم حرام دی.په موالکوکی محققین علماءلکه:علامه زرقاني، علامه دسوقي اوعلامه صاوي ندي په حرمت فتوی کړی همدانګه علامه دردیرهم په شرح الکبیرکی ندي په حرمت باندی فتوی کړیده.

مجوزین علماءدخپلي مدعی لپاره له یوه حدیث څخه استدلال کوي چې هغه حدیث په ترمذي شریف کی روایت شویدی هغه داچې عبیدالله ابن عبدالله ابن عتبه ابن مسعودوايي:چې حضرت ابوطلحة الانصاري مریض وه.خوموری وايي چې زه حضرت ابوطلحه الانصاري ته ورغلم هلته حضرت سهل ابن حنیف هم ناست وه،په دی وخت کی یوبل سړی راغي چې دهغه په زیرپراني کی عکسونه وه،هغه اراده وکړه چې خپله زیرپیراني وباسي حضرت سهل ابن حنیف ورته وویل چې زیرپیراني دي ولی باسي؟هغه ورته وویل:چې عکس پکی دی حضرت سهل ورته وویل:چې ولی تاله نبی کریمﷺ څخه ندي اوریدلي چې:الاماکان رقما في الثوب یعنی هغه

تصویر پروانه لري چي هغه نقش وي،هغه ورته وويل چي ستاخبره سمه ده خو زه بي نشکم[1]داحديث په موطائينوکي موجود دی بيابي ليکلي دي چي اسنادهذالحديث اسنادصحيح.

خوداحديث دجمهوروله لوري ردشويدی ځکه چي حضرت عائشة وايي:چي يوه ورځ ماخپلې کوټي ته پردی اچولی وی،په هغوپردوکی تماثيل وه،کله چي نبي کريمﷺ کورته راغی رنګ يي متغيرشو هغه پردی يي راوشکولي.[2]جمهورعلماء وايي:چي داخوهم نقش وه که چيرته غيرذی ظل تصويرجانزوی نو ولی نبی کريمﷺ داپردی راشکولي له دی ځخه ځرګنده شوه چي نقش هم حرام دی.ياداچي هغه مخکنی حديث په دی حديث باندی منسوخ دی اويا داچي په هغه زيرپيراني کي چي کوم عکسونه وه هغه دغيروذی روحوعکسونه وه،لنده داچي په دی باندی دعلماواجماع ده چي دادول عکسونه حرام دي خودغيرذی روحوعکسونه له دی حکم ځخه مستثنی دی.

ديادوني ورده چي کوم کورکي دذي روح حيوان تصويروي،که له هغه ځخه سرکټ کړای شي بياحکم دغير ذی روح لري؛ددی لپاره په احاديثوکي هم ثبوت شته.[3]

## دهغه شي استعمال چې په هغه کي تصويروي:

که څوک يوداسی شی استعمالوي چي په هغه کي تصويروي دبيلګي په ډول:کالي،جای نماز،بالښت، توشکه،فرش اوداسي نور..دابه له دوحالتونوځخه خالي نه وي يابه داسي شی وي چي دهغه اهانت اوسپکوالی نه کيږي لکه ديوال ياپرده کي تصوير داپه شرعه کي جوازنه لري،کذافي اوجزالمسالک للعلامه زکرياکاندهلوي،تحفة الاحوذي للعلامه عبدالرحمن مبارکپوري،فتح الباري للعلامه ابن حجر، عمدة القاري للعلامه عيني،تعليق الممجد للعلامه عبدالحی الکنوي وايضاً الفتح الرباني للعلامه شوکاني.

اوهغه شيان چي دهغواهانت کيږي لکه فرش،توشکه،بالښت ياداسي نور..په دی شيانوباندی تصوير جانزدی.ديادوني ورده چي په ممتهن شي باندي خوتصويرجانزدی خوهغه کورته کوم کي چي

[1]- عن عبيدالله ابن عبدالله بن عتبه بن مسعودانه دخل على ابي طلحةالانصاري فوجدعنده سهل بن حنيف قال:فدعا ابوطلحه انسانايزع نمطاتحته فقال له سهل:لم تزعه قال ان فيهاتصاوير وقال النبي صلى الله عليه وسلم ماقدعلمت قال:سهل اولم يقل الارقماً في الثوب قال:بلى ولكنه اطيب لنفسي-جامع الترمذي۲/۳۰۵-.

[2]- عن عائشة قالت:قدم رسول الله من سفر وقدسترت بقرام لي على سهوة لي فيه تماثيل فلمارآه رسول الله هتكه-صحيح البخاري۲/۸۸۰-.

[3]- عن ابي هريره قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اتاني جبرئيل عليه السلام قال:اتيتک البارحة فلم يمنعني ان اكون دخلت الاانه كان على الباب تماثيل وكان في البيت قرام ستر فيه تماثيل وكان في البيت كلب فمر برأس تمثال الذي على باب البيت فيقطع فيصيركهيئة الشجره انتهى-مشكاة المصابيح۳/۳۸۶-.

تصویرروي ملکي ورحي اوکنه؟په دی اروندعلامه زکریاکاندهلوي په اوجزالمسالک کی لیکلي دي چي په دی اره علماءدوه ټولي دي یوه طرف ته امام خطابي البستي اوقاضي عیاض المالکی دی،اویل طرته ،علامه ابن حجراوعلامه نووي دی؛امام خطابي اوقاضي عیاض وایی چي په کومو صورتونو کی سپي مستثنی دی په هغوصورتونوکي تصویرهم مستثنی دی.خوامام نووي وایی چي منعه عامه ده نوموړي لیکلي دی چي چي مونږدامنوچي په شرعه کي په ځوصورتونوکي دسپي ساتل جائزدی اوپه هغه شي چي دهغه سپکوالی کیږي تصویرجوازلري خوهلته بیا درحمت ملائکی نه ورحي.کذافي المنهاج للعلامه نووي.علامه قرطبي،علامه ابن حجراوعلامه علي القاري هم دامام نووي رایه غوره کړیده تقریبا ددنیا دجمهورو علماودامذهب دی چي هرهغه تصویرچي دهغه اهانت کیږي په شرعه کي جائزدی همدارنګه دسپي ساتل دحفاظت یادبل څه عذرلپاره جائزدی خوهلته بیادرحمت ملائکی نه ورحي.(۱)

# کوم ځای کې چې تصویروي هلته دغضب ملائکې ورځي خودرحمت ملائکې نه ورځي:

خیني خلک پوښتنه کوي چي ملایانوتاسي خو وایی چي کوم ځای کي تصویروي هلته ملائکي نه ورحي زمونږپه کورکي خوتصویرهم وه،نودازماپلارولي مرشو؟علامه سیوطي په خپل کتاب الحبائک في اخبارالملائک کی همداپوښتنه کړی بیرته یي بیاددي لپاره خواب هم کړیدی هغه داچي په کوم کورکي تصویروی هلته درحمت ملکي نه ورحي خودغضب ملائکي ورحي.ان شئتم علی ان تقفواباالمسائل المختلفه باالملائکه فلترجعوا الی هذالکتاب ممکن لایوجدکتاب ابسط من المسئل المتعلقه من هذالکتاب.

# دکامرې اوموبایل په واسطه عکس حرام دی.

شمسي اوفتوغرافي تصویرونه څه حکم لري؟په دی اروند دعلماوبیلابیلي رایي دي په مونږاحنافوکي علامه وهبت الزحیلي فقه اسلامي وادلته اوتفسیرالمنیرکتابونو کي لیکلي دي چي کوم عکسونه دکامرې په واسطه جوړیږي هغه جوازلري. خو نحن لانسلم معه هذالفتوی.ډیرو علماوددی په حرمت فتوی ورکړي علامه صابوني په روائع البیان کي په دی اره ښه مدلل اومحقق بیان کړی بیایي لیکلي

---

۱- سمعت اباطلحه یقول:سمعت رسول الله یقول:لاتدخل الملائکة بیتا فیه کلب ولاصورة تماثیل-صحیح البخاری۱/۴۵۸.

دي چي دادول تضويرونه شرعا جوازنه لري.علامه محمدادريس کاندهلوی هم تعليق الصبيح کی ددي په حرمت باندی فتوی کريده همدارنګه مفتي تقي صاحب اونورودېرو علماوهم ددی په حرمت باندي فتوی کړيده. والمختار عندعبدالحميد ايضا الصورالشمسي والصورفوتوغرافی حرام بآيات القرآن واحاديث النبويه.

اوکومه خبره چی علامه زحيلي کړې هغه بلکل مردوده ده،نوموړي ليکلی دي چی کوم عکسونه دکامرې يا موبايل په واسطه اخيستل کيږي دي له سره عکس نه ويل کيږي څکه چی داله زرو څخه جوړيږي؛ دنوموړي داخبره څکه نده صحيح چي دی دول تصويرته مونږه عکس وايواوکنه؟اوپه اسلام کی هم له تصويرڅخه منعه شويده نبي کريم فرمايلي دي چی:ان اشدالناس عذابا عندالله المصورون.[1]صحيح خبره داه چی کوم عکس دکامرې اوموبيل په واسطه اخيستل کيږي داهم تصويردی؛ نوڅوک چي دادول عکسونه اخلي تردي حديث لاندی راځی کوم چي ورباندی ذکرشو. دکامرې اوموبايل يودول حکم دی،ددنيا محقيقينو علماوپه دی باندې دحرمت فتوی کريده زما په خپله هم په دی اړه دحرمت فتوی ده خوډېرتشددهم ندی پکارلکه نوروعکسونوکي څکه چی په اوسني دورکي خلک خامخا په خپلوموبايلونوکي عکسونه ساتي له دی څخه چی دفحش اوفجورعکسونه وساتي ښه داده چی دنيکومجلسونوعکسونه وساتي؛مونږدامنوچی ګناه ده خواوس مهال عموم بلوی راغلې ده يوڅه مثبت اړخ ته هم نظرکول پکاردي که دنيکومجالسوعکسونه واخيستل شي نوجامعه به دخيرطرف ته سوق شي کني حرام دي.

## دحاجت لپاره تصويرجائزدی:

خينی خلک په ملايانوباندې اعتراض کوي چي تاسي خووايی چي تصويرناروا ده،اوتاپه خپله په خپل جيب کي تذکره اچولي ده اوعکس دي هم پکي شته؛مونږ ورته خواب کوو چي دايوضرورت دی اودارتيابرمهال تصويرجانزدی داله هغوعکسونو څخه مثتثنی دی دکومو چي حکم وړاندي ذکرشو. په مونږاحنافوکي سيرالکبيردامام محمدکي ليکلي دي چي که يوڅوک داسي توره استعمال کړي چي په هغې کي تصويروي نودالابأس به دی.يادرسول اللهﷺ په زمانه کي چي کومي روپی وې هغه دعجمو دکسرا دامپراتوری روپی وې چی جزيرة العرب کي استعماليدلي په هغوروپيوباندي دکسرادبادشاه عکس هم وه،نبي

---

[1] - صحيح البخاري کتاب اللباس با بعذاب المصورين يوم القيمة ۲/۸۸۰-. ان عبدالله ابن عمراخبره ان رسول الله قال:ان الذين يصنعون هذه الصوريعذبون يوم القيمه يقال لهم احيوا ماخلقتم-صحيح البخاري ۲/۸۸۰-.

کریمﷺ اوصحابه و په هغوروپیوباندی منعه نده کړی په جیبونوکي به بی هم وی بیادبیورورسته دعباسیانو په خلافت کي داسلام خیلي رولپي جوړي شوی داتول ددی دلائل دي چي دضرورت حالت مستثنی دی.

## دتصویرجوړول حرام دي:

دي ظل اوغیرذي ظل دواړه دوله عکسونه جوړول حرام دي،هغه که په داسي شي باندی وي چي دهغه احترام کیږي اوکه په داسي شي باندی وي چي دهغه اهانت کیږي په دواړوصورتونوکي دتصویرجوړول جوازنه لري؛مطلقا تصویرجوړول حرام دي.

## آیادکفتروساتل جوازلري؟:

دکفتروساتل جوازلري،خوالوزول یي نارواده خکه چي په الوزولوکي یي نوروخلکوته ضرروي. کذافي مسئل الجدیده واحسن الفتاوی.اودکاغذپران دالوزولوهم دغه حکم دی کوم چي دکفتر ودی.

## په کورکي دسپي دساتلوشرعي حکم:

ایاپه کورکي دسپي ساتل جوازلري؟په کورکي دسپي ساتل شرعا جوازنه لري،یوه حدیث کي راحي چي دچاکورکي سپی وي هره ورخ به بی دوه قیراته اجرکمیږي.[1]خویواخي دبنکار،رمي اودکور یاهم باغ دحفاظت لپاره دسپي ساتل جوازلري. پرته له دي په کورکي دسپي ساتل ناروادي.

## دسپي عادتونه:

سپی دیرنادراوعجیب عادتونه لري،چي یوله هغوڅخه داده چي کله یوڅوک خیرن وویني هغه خوري اوکه دچاکالي پاک وي هغه ته بیاڅه نه وایي.بل داچي دیرصبرناک دی. په یوه زمانه کي دبلخ دعلماواودخینونوروسیمودعلماوترمینځ مناظره وشوه،دبلخ علماوپوښتنه وکړه چي ستاسي څه دول عادتونه دي؟هغوی ځواب ورکړچي زمونږعادت په دي باندي جاري دی که الله تعالی کوم شی راکړي هغه خورو اوکه رایي نکړي نوصبرکوو؛دبلخ دعلماو له لوري ابویزیدبسطامي یا ابراهیم ابن

---

۱- عن ابن عمرقال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من اقتي کلبا الاکلب ماشیه اوضارنقص من عمله کل یوم قیراطان مشکاة المصابیح ۲/۳۵۹.

ادهم ورته وویل:چې داحورمونږپه بلخ کې دسپیو عادت دی،سپي ته که څوک کوم شی ورکړی هغه خوري اوکه ورېي نکړي بیاصبرکوي.

هغوی پوښتنه ورڅخه وکړه چې ستاسي دبلخ دبزرګانوڅه عادت دی؟دوی حواب ورکړچې زمونږدبلخ دبزرګانو عادت په دې باندی جاري دی چې که الله تعالی څه ورنکړي صبرکوي اوکه الله تعالی څه ورکړي بیادالله تعالی شکراداکوي اوله دی سره ایثاراوقرباني کوي یعنی نوروخلکوته یې ورکوي کله چې له حان څخه بل څوک ورې ووینې که دی څومره زیات وږی وي بیایې هم حپله نه خوري هغه ته یې ورکوي.ددنیاعلماءحیران شول چې داڅه عجیب خلک دي.

اوبل له عادتونوڅخه یې داده چې خپل څښتن ته دیرزیات وفاداردی؛کتابونوکې یوه کیسه راحې چې یو وخت کې یوبادشاه وه،هغه په خپل کورکې دښکارلپاره یوسپی ساتلی وه،یوه ورځ بادشاه چیرته په ښکرباندی ته خپلی مینځې ته یې وویل:چې ماته لږشودی ګرمې کړه کله چې زه بیرته راوګرځیدم بیاهغه څښم،دامینځه ګونګې هم وه اوشله هم وه،کله چې دې مینځې شودې پخی کړی په دی وخت کې یومار راغی په دی شودوکې یې خپل سرښکته کړهغه یې وڅښلی اوزهریې هم پکې پریښودل؛کله چې بادشاه بیرته راستون شواراده یې وکړه چې داشودې وڅښي،سپي په اشاره باندی دابادشاه پوی کاوه چې داشودې مه څښه بادشاه پوی نه شوپه دی شودوکې یې دودی ماته کړله کله یې چې دخوراک اراده وکړه نوسپي نه پریښوده چې ویې خوري بالاخره بادشاه له سپي څخه په تنګ شومنده یې کړه چې نیزه رواخلي اوسپي ووهي ترڅوچې بادشاه نیزه راخیستله سپي داشودې وڅښلې کله چې بادشاه داسپي په نیزه باندی وواهه په دی وخت کې سپي لکه اپره داسې وه،بادشاه پوی شوچې په دی شودوکې څه چل وه،له مینځې څخه یې پوښتنه وکړه هغې ټوله کیسه ورته وکړه،داسپي دومره زیات وفاداردی چې خپل حان وژني خوخپل څښتن له مرګ څخه ژغوري.

## له سپي سره دسفرکولوشرعي حکم:

په دې باندی تقریباًدعلماواتفاق دی چې کله یوڅوک سفرکوي اوله هغه په سفرکې سپي ملګری وي اوپاشرنګالي ورسره وي نوله هغه سره فرښتې سفرنه کوي،دیادونې وړده چې شرنګالي دوه ډوله دي،یودول هغه شرنګالي دي چې خلک یې دخپلوحیواناتوپه غاړوکې وراچوي،اودبل دول هغه دی چې هغه په پښوکې ترل کیږي چې هغه ته جلجل ویل کیږي ددوارو یودول حکم دی.

علامه ظفر احمد اعلاء السنن کې لیکلي دي چې که څوک دکوم حیوان په غاړه کې شرنګانی وړ واچوي هغه که په سفرکې وي اوکه پرته له سفر څخه وي په دواړو حالتونوکې مکروه دي.ابهامی لیکلي دي چې دجلجل هم دغه حکم دی.فتاوی هندیه اوسیر الکبیر دامام محمدکې هم دامسئله لیکل شویده.

اوکوم شرنګانې چې خلک دماشومانوپه پښوکې اچوي،ځوره داده چې وروانه چول شی ځکه چې په دې اروندمنعې احادیث راغلي دي یوه حدیث شریف کې راځي چې حضرت عائشې ته یو هلک راغی چې دهغه په پښوکې شرنګاني وه حضرت عائشې هغه ورڅخه لرې کړل اوویې ویل چې بایرښتې نه ورسره راځي.[1]نورهم ددي دمنعې په اړه کتابونوکې دیراحادیث روایت شویدي چې دماشومانوپه پښوکې اویادحیواناتوپه غاړوکې شرنګاني اچول جوازنه لري.دامسئله په سیرالکبیر دامام محمداوالمحیط البرهاني علی مذهب النعماني کتابونوکي لیکلي ده.

اوبل داچې له دښمن سره دمقابلې پرمهال هم دحیواناتوپه غاړوکې شرنګاني اچول ناسم کاردی،ځکه که مجاهدین وغواړي چې په دښمن باندې په پټه حمله وکړی نوهلته شرنګاني شرنګیږی اودښمن ته دمجاهدینوموقف څرګندیږي؛نوبناءپه غزواتوکې هم دشرنګاني استعمال ناجائزدی؛څوکه دڅه فوائدولپاره دحیواناتوپه غاړوکې شرنګاني ورواچول شي بیاجواز لري دبیلګې په دول دکوم حیوان په غاړه کې چې شرنګاني وي نوروحیواناتوته دهغه حیوان پته لږیږي،یاهم دحیواناتو دخوشحالتیاسبب ګرځي ځکه چې هغوی دشرنګاني په غږسره دیوډول خونداحساس کوي.کذافي سیرالکبیروالمحیط البرهاني.

# دتعویذونوبیان.

خینی علماءتعویذته شرک وایي په دي اړه حقیقت څه شی دی،آیاتعویذپه اسلام کی جوازلري اوکنه؟دتعویذپه اړوندچي کوم اختلاف دی هغه آن دصحابه وله زماني څخه پیل شویدی،خینوصحابه و تعویذونه ناجائزګڼل اوخینونورودتعویذپه جواز باندي قول کاوه؛یوله هغوصحابه وڅخه چي دتعویذپه نه جوازباندی قائل وه،هغه حضرت عبدالله ابن مسعودوه اوبل حضرت عقبه ابن عامروه؛اوهغه صحابه چي دتعویذپه جوازباندي قائل وه هغه حضرت عبدالله ابن عمروبن العاص وه اوحضرت عائشه ام المؤمنین وه.حضرت عبدالله ابن عمروبن العاص ته رسول الله دا الفاظ وربنودلي وه چي: (اعوذبکلمات الله تامات من غضبه وعقابه الخ).کوم څوک به چي په خوب کي وریدل نوموري به دادعا وربنودله اوماشومانوته به یي دادعا په کاغذباندي لیکله.اودهغه کاغذبه یي په غاړه کی

[1] - عن عائشة قالت:بینماهي عندها اذدخل دخل علیها بجرية وعلیها بجلاجل یصوتن فقالت: لاتدخلنهاعلیّ الا ان تقطعوجلاجلها وقالت :سمعت رسول الله لاتدخل الملائکة بیتا فیه جرس- سنن ابي داود۱ ۲/۵۸-.

وراچولو(۱) داحدیث په سنن ابي داود،جامع الترمذي،مصنف ابن ابي شیبه اوالترغیب والترهیب کتابونوکې روایت شویدی چې داتعویذجوازلپاره یولوی دلیل دی.

اوبل دعائشې ام المومنین حدیث دی چې:لیست التمیمة ماتعلق به بعدالبلاء(۲)یعنی هغه تمیمه نشته چې لرې چې الله تعالی یوڅوک مریض کړي او وروسته تر هغه یې په غاړه کې واچوي رواه الحاکم في المستدرک کتاب الطب وقال:اسنادهذاالحدیث اسنادصحیح وایضا وافق معه امام ذهبي.دعلم احادیثوپه نوروډیروکتابونوکې هم داحدیث روایت شویدي منهم:سنن الکبری للامام بیهقي،وجامع لابن وهب،وحلیة الاولیاءللعلامه ابونعیم،وکنزالعمال للعلامه علاءالدین،وجمع الجوامع المشهوربجامع الکبیر.له دې دواړوحدیثونوڅخه دتعویذجوازمعلومیږي.

بیاتردې وروسته دتابعینوپه دورکې لویوتابعینو دتعویذجوازفتوی ورکوله،چې یوله هغوی څخه عطاء ابن ابي رباح دی چې نوموړی په سیدالتابعین باندې ملقب وه له هغه څخه چاپوښتنه وکړه چې تعویذجوازلري اوکنه؟نوموړي په خواب کې ووېل: چې لاباس به دی.(۳)داحدیث داحادیثوپه ډیروکتابونوکې روایت شویدی منهم:سنن دارومي،مصنف ابن ابي شیبه،سنن الکبری للبیهقي وایضافي التفسیرالقرطبي.کچیرته تعویذشرک وی نولې حضرت عطاء ددې په جوازباندې فتوی کوله؛ که څوک وایي چې تعویذ شرک دی اوڅوک چې دشرک عمل کوي هغه مشرک وي نوولې بیاداامام بخاري په ډیروسندونوکې عطاءابن ابي رباح راغلی نوبایدچې هغه حدیثونه موضوعي کرځیدلی وی ځکه چې مشرک په سندکې راغلی دی.

اوبل په تابعینوکې سعیدبن المسیب هم دتعویذجوازفتوی وکړي،نوموړی یولوی شخصیت تیرشویدی دحضرت ابي هریره زوم هم وه.همدارنګه ضحاک ابن مضاحم بلخي،امام مجاهد،جعفرصادق اومحمدبن سیرین هم دتعویذپه جوازباندې فتوی کریده.دعلم احادیثوپه ډیروکتابونوکې داحدیثونه ذکر شویدی منهم:کنزالعمال،سنن الکبری للامام بیهقي،تفسیرقرطبي،تفسیر روح المعاني اوتفسیربحرمحیط اوتکمله دفتح الملهم کې مفتي تقي عثماني لیکلي دي چې امام شعبي هم دتعویذجوازفتوی ورکړیده.

---

۱- عن عمربن شعیب عن ابیه عن جده قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذافزع احدکم في نومه فلیقل:اعوذبکلمات الله تامات من غضبه وسوءعقابه ومن شرعباده ومن شرالشیاطین وان یحضرون فکان عبدالله ابن عمرویعلمها ولده من بلغ من ولده ومن لم یبلغ منهم کتبها في صک ثم علقها في عنقه-جامع الترمذي ۲/۱۹۲-.

۲- عن عائشة قالت:لیست التمیمة ماتعلق به بعدالبلاءانماالتمیمة ماتعلق به قبل البلاء-وهذاحدیث علی الشرط الشیخین ولم یخرجاه - المستدرک علی الصحیحین ۴/۲۴۲-. رقم الحدیث ۷۵۰۶.

۳- عن عبدالملک عن عطاءفي الحائض یکون علیهاالتعویذ قال:ان کان في ادیم فلتنزعه وان کان في القصبه فضة فان شاءت وضعته وان شاءلم تضعه مصنف ابن ابي شیبة رقم الحدیث ۲۳۵۴۲.

یوه حدیث شریف کی راغلي چي التمائم شرک[1] البادالتمیمه څه شی ته ویل کیږي؟په دی [illegible] ووند علماولیکلي دي چي هي خرزات کان اهل الجاهلیه یعلقون فی اعناق صبیانهم یعنی داهغه دانې وي چي دجاهلیت دزماني خلکوبه دخپلوماشومانو په غاړوکي اچولي،اوس وخت کي هم [illegible] کي دادول عادت شته چي هغه ته تمیمه ویل کیږي.علامه سلیمان الجمل په شافعي مذهب علماوکي لوی عالم تیرشوی په تفسیرجلالین یې شرحه کړی الفتوحات الهیه المشهوربس العلماء بالجمل هغه یې لیکلي دي چي تمیمه دوه معنی وی لري،یو هغه دجاهلیت دزماني تمیمه وه چي هغه تیري اومري وي چي دماشومانوبه غاړوکي اچول کیدلي چي هغه تیري په خپله موثري وي دادول تمائمي په اسلام کي مردودي دي؛عجائب المخلوقات کي علامه قزویني په دی اړه تحقیق کړی اومفتاح السعادة چي دایې دری سوه اوپنځوس مسائلومشتمل کتاب دی هلته یې دتیروخواص ذکرکړیدی چي په دنیاکي یودول تیری دي کله یې چي یوڅوک په خپله غاړه کي واچوي دهغې تیری په واسطه یې دمعدی ناروغي ختمیږي، په دنیاکي داسي تیری هم شته چي کله یې بسخه دولادت پرمهال په خپل ورون وتړي په ولادت کي یې تیسیر راځي اوپه دری کي داسي تیری هم شته کله یې چي یوڅوک په خپل سرباندی وتړي دپوری ویره یې بندیږي؛دجاهلیت دزماني خلکودا عقیده کوله چي همداتیری شفاورکونکي دي.دوموري لیکلي دي چي بل دول تمیمه دی ته ویل کیږي چي یوڅوک دقرانکریم آیتونه ولیکي اویایې په غاړه کي واچوي دادتمیمي دویمه معنی ده چي په دی کي دعلماواختلاف دی خوجمهور امت محمدي په دی باندی قائل دی چي دادول تمیمه جوازلري؛خوهغه تعویذچي په هغه کي قرانکریم اوحدیث لیکل شوی وي اویابل داسي شي پکي لیکل شوي وي چي دهغې معنی معلومه وي بلکل جواز لري.

په مالکي مذهبه علماوکي علامه قرطبي په تفسیرقرطبي کي لیکلي دي چي تعویذ جائزدی دوموری له امام مالک څخه هم دتعویذدجوازنقل کړیدی.بل په مالکي مذهبه علماوکي علامه ابوحیان اندلوسي په تفسیربحرمحیط کي لیکلي دي چي تعویذ جوازلري.اوبل په مالکیانوکي مشهورتفسیر محررالوجیز دعلامه ابن عطیه المالکي اندلوسي کي هم دتعویذپه جوازباندي فتوی شویده.

په شافعي مذهبه علماوکي علامه ابن حجرفتح الباري کی لیکلي دي چي مجهول الفاظ نه وي پکي تعویذبلکل جوازلري. امام نووي په شرح المهذب کي دتعویذدجوازفتوی ورکړیده.علامه هیثمي په فتاوی حدیثیه کي دتعویذدجوازفتوی ورکړیده.

---

[1] عن عبدالله قال:سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول:ان الرقی والتمائم والتولة شرک سنن ابي داود ۲/۵۴۲.

په حنبلي مذهبه علماوکې لوی عالم شیخ الاسلام ابن تیمیه په مجمع الفتاوی کې چې په څلورویشتو جلدونوکې کتاب دی هلته دتعویذدجوازفتوی ورکړیده نوموړي په حبل بل کتاب الكلم والطرهن کې هم مدلل اومحقق بیان کړی بیایې لیکلي چې شرکیات نه وي پکې تعویذلکل جائزدي علامه ابن قیم هم په زادالمعاد دریم جلدکې مکمل بیان کړی اولیکلي یې دي چې صحابه وبه هم تعویذونه کول نه امام احمدڅخه یې هم دوه روایتونه نقل کړیدي بوروایت داسې راغي چې هغه به په حبله هم تعویذکاوه،اوله امام ابي داودڅخه یې هم نقل کړیدي چې هغه وایي:ماعبدالله ابن احمدبن حنبل په مته تعویذولیده،اداب الشرعیه دابن مفلح کې دغه خبره لیکلي ده.

په حنفي مذهبه علماوکې لوی محدث علامه بدرالدین عیني دتعویذدجوازفتوی ورکړیده.علامه علي القاري میرقات کې دتعویذدجوازفتوی ورکړیده.[1]علامه طیبي په مشکات باندې شرحه کړی الکاشف عن حقائق السنن هلته یې دتعویذ دجواز فتوی ورکړیده.طحطاوي على ادرالمختار اوالتعلیق الصبیح کې هم دتعویذپه جوازباندې فتوی شوېده.علامه شامي ردالمحتار کې په دې اره مکمل تحقیق کړیدی بیایې لیکلي دي چې تعویذلابأس به دی.[2]دیرونوروحنفي مذهبه علماوهم دتعویذدجواز فتوی ورکړیده،منهم:علامه عبدالحمیدطهمان في الفقه الحنفي في ثوبه الجدید،وعلامه وهبت الزحیلي في تفسیر المنیر ،وعلامه شهاب الدین الوسي في تفسیرروح المعاني وایضاً علامه خلیل احمدسهارنپوری.

غیرمقلدینوعلماوکې لوی محدث امام بیهقي په سنن الکبری کې ددې لپاره ځانګړی باب راوړی تراوردتحقیق وروسته یې لیکلي دي چې هغه تعویذونه چې مجهول الفاظ نه وي پکې دقرانکریم ایتونه اواحادیث پکې لیکل شوی وي بلکل جوازلري. علامه اعظمي په عون المعبود على السنن ابي داودکې دتعویذدجوازفتوی ورکړیده.علامه عبدالرحمن مبارکپوري هم په التحفة الاحوذي کې دتعویذپه جوازباندې فتوی کړیده.اوعلامه نواب صدیق حسن خان هم په الدین الخالص کې په دې اره مکمل تحقیق کړی بیایې لیکلي دي چې تعویذجوازلري ځو ورعه اوتقوی په دې کې ده چې ونکړای شي.لنده داچې دجمهوروعلماومذهب دادی چې تعویذجوازلري خوپه دې شرط چې شرکي الفاظ به وی پکې لیکل شوي.

---

[1] -والمرادمن التميمه ماكان من تمائم الجاهلية ورقاها،فان القسم الذي يختص باسماء الله تعالى وكلماته غيرداخل في جملته بل هومستحب مرجوالبركة عرف ذالک من اصل السنة.میرقاة المفاتیح٨/٣٧۵.

[2] - التميمه المكروهة ماكان بغيرالقرآن،وقيل هي الخرزة التي تعلقها الجاهلية ويعظمهم ويوهم ان المعاذات هي التمائم وليس كذالك انما التميمة الخرزة،ولابأس بالمعاذات اذاكتب فيها القرآن واسماء الله تعالى ردالمحتار ٩/۶٠٠.

## آیادحیواناتوپه غاړوکې تعویذاچول جوازلري:

په دې اړوند دتفسیرقرطبي له عبارتونوڅخه ضمنا داسې څرګندیږي چې دحیوان په غاړه کې تعویذچول جوازلري.په شافعي مذهب علماوکې علامه ابن حجرفتاوای حدیثیه کې لیکلي دي چې دحیواناتوپه غاړه کې تعویذاچول مطلقاجوازلري. خوپه حنبلي مذهب علماوکې علامه ابن مفلح ادآب الشرعیه کتاب کې لیکلي دي چې یاپه داحیوان ماکول اللحم وي اویاپه غیر ماکول اللحم وي،که حیوان ماکول اللحم وي بیاپې په غاړه کې تعویذاچول مکروه دي اوکه داسې حیوان وي چې دهغه غوښه په خوړل کیږي دهغه په غاړه کې بیاتعویذاچول حرام دي.خوزمونږداحنافوپه کتابونوکې ماپه دې اړوڅه ندي لیدلي؛چونکه ماپه دې موضوع کې نهایي زیاته مطالعه کړی غوره داده چې دحیواناتوپه غاړوکې تعویذونه وروانه چول شي؛خودحرمت خبره یې ځکه نه کوم چې علماودحنبل وحنفي لپاره په غاړه کې دتعویذاچولوفتوی ورکړیده.والله اعلم

## آیاپه غاړه کې تاراچول جوازلري؟

په دې اړوندپه مصنف ابن ابي شیبه کې یوحدیث راځي چې ایوب وایي:مادحضرت عبیدالله ابن عبدالله ابن عمربن الخطاب په مټه باندې تاروليده.[1]له دې ځخه دتاراچولوجواز معلومیږي؛ خوزمونږاحناف علماءوایي:چې تمیمه شرک ده دوی وایي چې تمیمه دې ته ویل کیږی چې په غاړه،لاس یاپښه کې دمصیبتونودفعې لپاره تارواچول شي.علامه شامي ردالمحتارکې لیکلي دي چې په غاړه کې تاراچول ګناه ده.[2]نورونورو علماوهم دغه خبره لیکلي ده مهم:علامه طحطاوي في شرح درالمختارکتاب الحضروالاباحة،وعلامه ابن نُجیم في البحرالرائق،وعلامه ابی سعودالحماوي في المعین علی الکنز وایضا علامه فخرالدین الزیلعي في التبین الحقائق جلدالثاني.

اوبعضې خلک په ځینوغاړوکې ځنځیراچوي په دې اړوندهم علامه شامي ردالمحتارکې لیکلي دي چې داجوازنه لري[3] مجمع الانهراوسبک الانهردواړوکتابونوکې یې لیکلي دي چې دځنځیراچول په غاړه کې شرعا جوازنه لري.

---

[1] - قال حدثنا ایوب انه رأی وعضدعبید بن عبدالله ابن عمرخیطا- مصنف ابن ابي شیبة- رقم الحدیث ۲۳۵۴۹.

[2] - قال الزیلعي:ثم الرتمة قدتشتبه بالتمیمة علی بعض الناس وهي خیط کان یربط في العنق اوفي الید في الجاهلیة لدفع المضرة عن انفسهم علی زعمهم،وهومنهي عنه،وذکرفي حدودالایمان انه کفر-ردالمحتار ۹/۶۰۰-.

[3] - وفي المنح الملذکرهنا لان من عادة بعض الناس شدالخیوط علی بعض الاعضاء وکذاالسلاسل وغیرها وذالک مکروه لانه محض عبث- ردالمحتار ۹/۶۰۰-.

اوکله ناکله یوځوک په یوچاباندی ددی لپاره تعویذکوي چي دهغه محبت ورسره پیداشي،دیلکي په نول بسحه په خپل میړه باندي ددی لپاره تعویذوکړی چي هغه مینه ورسره پیداشي،آیادادول تعویذ شرعاجوازلري؟په دی اروندعلامه شامي لیکلي دي چي دادول تعویذجوازنه لري.[1] نورور ډیرو کتابونوکي هم دغه خبره لیکلی ده.کذافي المحیط،والطحطاوي على الدر المختار ، والفقه الحنفي في ثوبه الجديد.

## په حروف ابجدوباندي دتعویذلیکل:

په دی اروندعلامه شامي لیکلي دي چي په حروف ابجدوباندی دتعویذلیکل مکروه دي.[2] او علامه طحطاوي په شرحه ددر المحتارکي ددی دحرمت فتوی وکړېده.خوعلامه اشرف علي تهانوي لیکلی دي چي په حروف ابجدوباندی تعویذلیکل څه باک نه لري.زماپه خیله هم دغه رایه ده چي په حروف ابجدوباندي دتعویذلیکل جوازلري،خوپه دي شرط چي معنی یي معلومه وي.

اوبل داده چي ښايي له معتمدوکتابونوڅخه تعویذ ولیکل شي لکه:الرحمت في الطب والحکمت دعلامه سیوطي یااعمال قرآني دعلامه اشرف علي تهانوي یاهم دعلامه انورشاه کشمیري دتعویذونوکتاب اوداسي نور؛لنده داچي تعویذ به په داسي الفاظولیکل کیږي چي دهغوالفاظومعنی معلومه وي.

یادونه:په تعویذباندی شکرانه اخیستل هم جوازلري،علماوددي دجوازفتوی ورکړي؛اوتعین دشکرانی هم جانزدی.

## نشره "څاښت":

نشره چي زمونږپه اصطلاح کي څاښت ورته ویل کیږي داهم جوازلري،ګن شمیرکتابونوکي دامسئله لیکلي ده؛هیڅ یوه عالم هم په دی باندي ردندی کړی،ما تراوسه داسي کتاب نه دی لیدلی چي په هغه کي دی لیکلي وي چي نشره شرک ده.

---

[1] - وفيها امرأة ارادت ان تضع التعويذا ليحبها زوجها ذكر في الجامع الصغيران ذالک حرام لايحل ردالمحتار ۹/۶۰۱-.

[2] - وانا تكره المعوذة اذاكانت بغيرلسان العرب،ولايدري ماهو،ولعله يدخله سحراوكفراوغيرذالک واماما كان من القرآن اوشئ من الدعوات فلابأس . بهم ردالمحتار ۹/۶۰۰-.

# ددم شرعي حكم

ددم حكم دتعويذپه شان دی،هغه دم چې هغه معلوم المعنی وي هغه بلكل جوازلري؛اوله دم سره مسح كول اودلارو وربادول هم جوازلري،ځكه چې لاروكي هم بركت وي الله تعالی دهغولاروپه واسطه دردونه كموي.

# دفال اوطيرې بيان.

فال اوطيره په اسلام كی څه حكم لري؟له يوه شی څخه دخيراستنباط كولوته فال ويل كيږي چې داپه اسلام كې جوازلري؛ اوطيره بدشاگمي ته ويل كيږي چې داپه اسلام كی جوازنه لري.په پخوانی زمانه كې الله تعالی عربوته په علم دطيرې كې ډيرزيات مهارت وركړی وه،علامه ابن قيم په مفتاح دارالسعادة كې په دې اړوندمكمل تحقيق كړيدی،هلته يې ليكلي دي چې په عربوكې داسې عادت وه چې كله به دكومې ښځې ميړه څلوركاله څپل كورته رانغی نوهغه ښځه به يې بل چا ته ودوله؛بيايو وخت كی ديوی ښځې ميړه څلوركاله خپل كورته نه وه راغلی دهغې ښځې دخصرگنی غرېوهغې ښځې ته وويل:چې تاموتربل چاته وركوو،دهغې ښځې اوميړه ترمينځ مينه وه هغې ورته وويل چې يوكال نورهم مابل چاته مه وركوی كيدلای شي چې زماخاوندراشي؛خودخصرگنی غرو ورسره ونه منله بلاخره دې ښځې وويل چې راځی دطيرې والاته به ورشوله هغه څخه به پوښتنه وكړوچې زماميړه مړدی اوكه ژوندی؟

دوی همداسې وكړل دطيرې والاته ورغلل له هغه څخه يې همداپوښتنه وكړه،هغه دباندې ووت كله چې بيرته راغی دوی ته يې وويل:چې هغه مړدی ځكه چې كله زه دباندې ووتلم په يوه داسې مړي مې سترگې ولږيدلی چې لاسونه يې په نامه باندې ايښي وه.شاگردانو ورته وويل:چې استاذه داسړی ژوندی دي ځكه چې دمړی لاسونه په نامه باندې ايښي وه،اودا دژوندعلامه ده،استاذهم دشاگردانوخبره تأييدكړه چې سړی ژوندی دی،بياپه رښتياهم هغه سړی ژوندی يوه مياشت وروسته خپل كورته راغی؛ډومره زيات مهارت الله تعالی دوی ته په علم دطيرې كې وركړی وه.

اوبل به دطيرې والا له آوازونوڅخه ډيراستنباط كاوه،يو وخت كې يوسړی درجزوالا عالم ته ورغی هغه ته يې وويل:چې مافلانكي ځای ته پسونه ليږلي دي،ماته دامعلومات وكړه چې هغه خپل ځای ته رسيدلي دي اوكنه؟درجز عالم خپل غلام ته وويل:چې ورشه دباندې ووزه كوم آوازدې چې واوريده بيامانه ووايه؛دلته دامستفتي هم له خان سره خپل غلام راوستلی وه له مخكې څخه يې بوی كړی وه چې ته بيا دشغال آوازوكړه،چې عربي كې ابن آوي ورته ويل كيږي،كله چې داغلام دباندې ووت

هلته یې دښغال اوازواوریده بیرته راغی هغه عالم ته یې وویل:چې دښغال اوازمې واوریده،عالم هغه مستقتي ته وویل:چې میږی اوپسونه دی تول مره شویدي؛مستفتي ورته وویل:چې دروغ مه وایه هسی خلک خطابسی اوازخورما غلام وکرمایه تاباندي امتحان کاوه؛درجز عالم ورته وویل:چې داپښ اوي اوارستاغلام کریدی نوبیاستاشپونکی مرشویدی اوستامیږی سالمی رسیدلي دي؛کله چې هغه معلومات وکړل په رښتیاهم هغسي وه شپونکی مړشوی وه،میږې اوپسونه سالم رسیدلي وه؛دومره ریاب مهارت دوی ته الله تعالی په علم دطیری کې ورکړی وه.

شاه عبدالحق ابن سیف الدین لیکلي دي چې زمایواستادوه په علم دفراست کې الله تعالی دومره زیات مهارت ورکړی وه چې کله به یې دچامخ ته وکتل ورته ویل به یې چې ستافلانکی نوم دی؛اوحال داچې هغه به یې ترهغه وراندې نه پیژانده؛ علماولیکلي دي چې مخ دباطن ابینه ده،سبحان یاعلی العجب څومره نادرفراست الله تعالی ورکړی وه.

## دکارغه عجیبه کیسه:

دجاهلیت په زمانه کې یوسړی چیرته سفرکاوه،لږشودي یې هم له خان سره واخیستلې،کله چې په خپله اوښه باندې سپورشواویوڅه اندازه سفریې وکړوړی شوله خان سره یې وویل:چې اوښه به چوکرم اوداشودي به لږاوڅښم؛کله چې ده خپله اوښه چوکوله پدې وخت کې یوتورکارغی له ده څخه گردتاویده،دوی خوله کارغې څخه بدفال اخیست لکه اوس چې خیني خلک له کشکری څخه بدفال اخلي،هغه شودې یې ونه څښلې خپله اوښه یې بیرته پورته کره اوپه خپل سفریې پیل وکړ.

داسړی وایي چې یوڅه خای لاړم تنده راباندې غالبه شوه بیامې خپله اوښه چوکړه چې داشودې وڅښم،بیادې کارغې زما مخې ته داسې حرکتونه کول چې ماپوی کړې چې داشودې مه څښه،ماله خپل خان سره وویل:چې څه خبره خوضرورشته له خان سره مې وویل چې کیدلای شي چې په دې شودوکې څه خبره وي،دشودوبوتل مې په خمکه وویشت چې ومې لیدل په بوتل کې یومار وه،داسړی وایي که هغه شودې ماڅښلې وی نوهغه ماربه خامخا زماخولې ته راغلی وه اوزه به یې چیچلی وم؛دهغه وخت خلکوبه له کارغه څخه بدفال اخیست خودې سړي ته الله تعالی دکارغه په واسطه نجات ورکړ؛مفتاح دارالسعادة کې داحکایت لیکل شویدی.

# په اسلام کی بدشاګمي نشته:

دجاهلیت دزماني خلکوبه له اوازونوڅخه بدشاګم اخیست،کله به چې دوی په سفرباندی تلل که ښې طرف ته به یې مرغی والوته بیابه دوی سفرکاه اوکه چپ طرف ته به والوته بیابه یې سفرته کاوه،لکه اوس مهال چې خلکوکی عادت دی کله چې دیوچاپه کورکې کیشکره وچغېږي بیاهموی وایي چې کورته میلمه راځي،په هغه زمانه کی هم داسي عادت وه.

څوکله چې داسلام زمانه راغله داټول شیان مردود وګرځیدل،نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې:لاطیرة في الاسلام.[1]یعني په اسلام کی بدشاګمي نشته؛هغه که دمرغانوله آوازونوڅخه وي،که دحیواناتوله اوازونوڅخه وي اوکه له نوروشیانوڅخه وي هرډول بدشاګمي په اسلام کی یومردودعمل دي؛حتی چې علماوداسي لیکلي دي چې یوڅوک دسفرپرمهال دکارغي یاکشکری په واسطه بدشاګمي وکړي نوقریبه ده چې دی کافرشي کذافي فتاوی قاضي خان وبریقه.

یابعضي وختونوکي چې کوم کورکي چرګه اذان وکړي بیاخلک وایي چې په دی کورکي څوک مره کیږي،داډول عقیده کول شرک ده کفرده ګناه ده؛یاکوم کورکي چې سپی خلاف العادت آوازوکړي بیاخلک وایي چې پخ دي کورکي څوک مره کیږي،داهسي یودروغ ده؛مونږ دامنوچې بدشاګمي شته خوپه اسلام کي بدشاګمي کول جوازنه لري په اسلام کی له بدشاګمي څخه منعه راغلی ده لاتطیروا.دلته لادنفي په معنی نده بلکه دنهي په معنی ده.

اویوه بله خبره هم دادوني ورده هغه داچي حدیث شریف کی راځي نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې که څوک داعقیده کوي چې فلانکی ستوری په مونږباندي باران کوي دادول عقیده کول شرک ده.[2]زمونږپه افغانستان کي هم داسي عادت دی چې کله دجدي میاش راشي بیاخلک وایی چې جدي به هم خان معلوم کړي دوی داسي.عقیده کوي چې په دي میاشت کي کومه واوره کیږي همدامیاشت دغه واوري کوي،دلته زمونږ عقیده هم دجاهلیت دزماني له عقیدی سره برابره ده؛که څوک وایي چې مونږخوستوري نه ښایومونږمیاشت ښایو؛خوبیرته دامیاشتي هم تربرجونوپوری تعلق لري،ددی لپاره دخل لارعلامه شبیراحمدفتح الملهم کي لیکلي ده هغه داچي یوڅوک ووایي چې په مونږباندی باران هغه فلانکی ستوری کوي خومؤثر حقیقي الله تعالی دی داستوری یامیاشت یواځي سبب وګڼي دادول

---

[1]- عن ابي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:لاعدوى ولاطيرة ولاهامة ولاصفر-صحيح البخاري۲/۸۵۷-.

[2]-عن زيدبن خالدالجهني قال:فقال النبي هل تدرون ماذاقال ربكم قالوا الله ورسوله اعلم قال:قال اصبح من عبادي مؤمن بي وكافرفامامن قال مطرنابفضل الله ورحمته فذاك مؤمن بي كافر بالكوكب وامامن قال مطرنابنوءكذا وكذا فذالك كافربي مؤمن باالكوكب-سنن ابي داود-۲/۵۴۵.

عقیده کول جوازلري؛داخبره نورودیرو علماوهم لیکلي ده منهم: علامه علي القاري،ومفتي محمدتقي، وعلامه طیبي في الکاشف عن حقائق السنن،وایضاًعلامه محمدادریس کاندهلوي في التعلیق الصبیح.

## بدنظرثابت دی.

بدنظرپه قرانکریم اواحادیثوباندې دی،کماقال الله تعالی{ وَقَالَ يَٰبَنِيَّ لَا تَدۡخُلُواْ مِنۢ بَابٖ وَٰحِدٖ وَٱدۡخُلُواْ مِنۡ أَبۡوَٰبٖ مُّتَفَرِّقَةٖ }[1]وقال الله تعالی في مقام آخر{ لَيُزۡلِقُونَكَ بِأَبۡصَٰرِهِمۡ }[2]له دی ایتونوڅخه علماءدنظردثبوت استدلال کوي،په دې اروندیوه حدیث شریف کې هم راځي چې نبي کریمﷺ فرمایلي:دي لوکان شئ سابق القدرلسبقته العین.[3]یعني که داسي شی وی چې هغه له تقدیرسره مسابقه کولای شوی نوهغه به سترګي وې؛دیرداسي نورحدیثونه هم دنظرپه اړه راغلي دي،نونظربلکل حق دی.

دعلم فلسفي له لحاظه هم نظرثابت دی،په دې اروند داسلام لوی فیلسوف علامه فخرالدین رازي په تفسیرکبیرکي مکمل اومدلل تحقیق کړی اوعلامه ابن قیم په خپلودوکتابونوزادالمعاداوبدائع الفوائدکي مکمل تحقیق کریدی په دې اړه یوڅه لند تحقیق ذکرکوو؛هغه داچې سترګي ولي؟اوڅرنګه تاثیرکوي؟په دې اړوندعلماولیکلي دي چې الله تعالی په سترګوکي یودول تأثیراېښي کله چې یوڅوک خپلي سترګي دیوچاطرف ته وروا‌ړوي اوهغه مستحسن وګني؛نوپه دې وخت کې له سترګوڅخه یودول اجزاءصادریږي چې په سترګونه لیدل کیږي کله چې هغه په معیون باندی ولږیږي په هغه باندې تأثیرکوي ددی لپاره علامه الوسي،علامه ابن قیم اوعلامه بنوري داسي مثال ذکرکریدی چې په نړی کې یودول ماران دي الله تعالی دهغوماران‌وپه سترګوکي یودول شعا ایښي ده کله چې هغه مارله یوچاسره خپلي سترګي وجنګوي نودهغه سترګي ړندیږي؛ اوداسي ماران هم شته کله چې یوچاته وګوري په یوه نظرباندی هغه وژني؛اوپه دنیاکي داسي ماران هم شته چې دګومي ښځي په نس کې بچی وي کله چې هغه مار ورته وګوري دهغې له نس څخه هغه بچی غورځیږي.

---

[1]- سورة یوسف/۶۷.

[2]- سورة القلم/۵۱.

[3]- جامع الترمذي ابواب الطب باب ماجاء ان العین حق۲۶/۲-.

اوکتابونکی لیکلي دي چې شاه محمودابن سبکتکي الغزنوي فاتح الهند په مونږ افغانانوکی دوه تنه دهند فاتحین دي،یویې احمدخان ابن زمان خان المشهوربـ احمدشاه ابدالی اوبل همداشاه محمودالغزنوي ده،دوی دواړه په اسلامي تواریخوتلي خلک دی؛امام تقي الدین السبوکي الشافعي شاه محمودخان په شافعي مذهبه علماوکي ذکرکړیدی؛نوموړی یوکتاب هم لري چې نوم یې دی التفریع والفروع چې داپه شپیته زره مسائلومشتمل کتاب دی دی په خپله شافعي مذهبی دی خوکتاب یې په فقه حنفي کې لیکلي دی.نوموړی چې کله هند ته لاړهلته فتوحاتي کولی هلته یوښاروه مجاهدینوبه خپل ټول توان وکاراوه خوبیاهم هغه ښارنه فتحه کیده،په مجاهدینوبه تبه راتله؛وجه داوه چې دهندوستان خلکویه جادوکې ډیرمهارت درلود،هغوی هلته یوځوداسي کسان کینولي وه چې دهغوی سترګونظردرلود کله به چې دشاه محمودخان لښکرپه دې ښاربانډې بریدوکړ هغوی به خپلې سترګې اوروحونه دمجاهدینوطرف ته متوجه کړل؛په دې سره به مجاهدین معیوبن شول،سترګوبه ووهل، مریضان به شول؛بیامجاهدینوته چاوویل:چې مونږپه تاسي ته یوچل در زدکړوهغه داچې کله مجاهدین لومړي خط ته مخکې شول په دې وخت تاسي ډولونه پیل کړي شراوشورجوړکړی په دی سره به دهغوخلکوخیالات اوتوجوبدله شي کوم چې تاسي په خپلوسترګوباندی وهي؛کله چې مجاهدینوداډول کړنه ترسره کړه نودهغه ښاروکمله فتحه وشوه نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې:الحرب خدعة.[1]

اوبل داچې په سترګوباندي ډیرنورنادرکارونه هم کیدلای شي،تفسیر روح المعاني کی لیکلي دي چې په عربوکي داسي خلک وه کشتی به چې په دریاب کی روانه وه کله به یې چې هغې ته وکتل هغه به سم دلاسه په دریاب کې ډوبه شوه؛ اوبني اسدچې دادیوي قبیلي نوم دی،کله به چې دوی وږي شول دقافلې په لاره کې به یې خیمي ودرولې؛کله به چې قافله په هغې لاره باندی تیریدله دوی به وویل:دغه ده لویه قافله یوې اوښې ته به یې توجو وکړه هغه اوښه به راوغورځیدله دقافلی والابه دی ته اړشول چې هغه اوښه حلاله کړي؛بیابه دوی هم خپلې کاسي وروړلي چې لږغوښه مونږته هم راکړي بیابه دقافلی والا دوته هم غوښه ورکوله په دې ډول یې خپل وخت تیراوه؛داټول دبدنظردثبوت لپاره دلائل دي.

# ارواح په اجسادوتأثیرکوي:

کتابونوکی لیکلي دي چې یو وخت کې یوځوک په چاباندي عاشق وه،له ډیرځخه یې په خپل جانان باندي بدرالدین نوم ایښی وه،یوه شپه چې دپنځلسم سپوږمی هم وه ده ته چاخبرورکړچې بدرالدین

[1] - عن عمروبن دینارسمع جابربن عبدالله قال:قال النبي صلى الله عليه وسلم الحرب خدعة-صحيح البخاري۱/۴۵۲-.

مړشو، ددې خبر په اوریدلو سره دده حالت بدل شو خپل روح یې ټول سپوږمۍ ته متوجه کړ هغې ته یې خطاب وکړچې ای بې حیا سپوږمۍ تا په ټوله نړۍ باندې خپله رڼا خوره کړې ده او زما جانان بدرالدین مړشویدی، په ما باندې ځومره لوی غم راغلی، ته له ما سره دغم اظهار هم نه کوې، له دې سره سم دسپوږمۍ رڼا ختمه شوه، نوکله ناکله ارواح هم په اجسادو باندې تاثیر کوي، تفسیر روح البیان کې دا حکایت نقل شویدی.

دفلسفې علماو لیکلي دي چې کله یو ځوک په غوسه شي په دې وخت کې چې بل ځوک لاس ورباندې کیږدي نو دهغه غوسه ختمیږي، یاکوم ځوک چې لرم وچیچي دردېې ډیر زیات وي بیا چې کله هغه لرم ووژني نو دردېې کمیږي دلته هم دارواحو معامله ده، یاهم کله چې ځوک ودارشي نورنګ یې زیړ شي، او یاکله چې ځوک وشرمیږي نورنګ یې سور شي دلته هم په اجسادو کې تاثیر راځي.

## حکایت:

په یوه زمانه کې یو سړی وه دعبدالله السروجي په نوم باندې، له نوموړي سره ډیر ملګري وه، ځوددوه ملګري ستر ګو یې نظر درلوده نه چاوویل چې ستا دهغه فلانکي ملګري سترګې نظر لري اوپه دې ورځه ساته چې نظر یې نکړي، هغه ورته وویل چې دهغه دسترګو نظر زما په اوپه اثر نشي کولای، ځکه چې ما ته الله تعالی عجیب دم راښودلی دی، اوهغه کس ته چې سترګو یې نظر درلود چاوویل چې عبدالله السروجي داسې وایي چې دده دسترګو نظر زما په اوپه باندې تاثیر نشي کولای، هغه ته غوسه ورغله خپلې سترګې یې داوښې طرف ته متوجه کړې په دې سره هغه اوښه په ځمکه راپریوته، عبدالله السروجي چې کله په هغه باندې دم وویلی دهغه سترګې بوټې راووتلې او اوښه بیرته روغه شوه، نودسترګو نظر حق دی خو ځینې معتزله له دې سره مخالفت کوي هغوی وایي چې سترګې نظر نشي کولای، دلاښه تحقیق لپاره تفسیر کبیر او زادالمعاد ته مراجعه وکړي چې حق به واضح شي

## ځینې وختونه یو ځوک خپل ځان هم نظر کوي

علامه الوسي تفسیر روح المعاني کې لیکلي دي چې کله ناکله یو ځوک خپل ځان هم نظر کوي یواځې لیدل هم ندي شرط بالوصف هم نظر کیدلای شي، داسې لکه په دول یو ځوک دچا صفت وکړي او موصوف هلته نه وي دچا سترګې چې نظر لري کله چې هغه خپل روح دهغه موصوف طرف ته متوجې کړي په دې سره هغه نظر کولای شي

اوبل داچي پيريان هم نظير کولای شي ددي لپاره هم علماواحاديث راوړي چي پيريان اوانسان دواړه نظير کولاشي ([1])

## دچاسترګي چي نظيرلري هغه دي په کورکي بندکړای شي

زموږ داحنافو دامذهب دی چي دچاسترګي نظيرلري هغه دي په کورکي بندکړای شي،هغه ته به دحکومت لخوا نفقه ورکول کيږي ددي لپاره چي دهغه له ضرر څخه خلک په امن شي؛اوکه قصداً خلک په نظيرکول بيايي تعزير هم جائزدی. خومالکي مذهبه علماءوايي چي که يوځوک بل څوک په نظيرباندی کړي بياله هغه نظير څخه هغه مړشي نوله نظيرکونکي څخه به قصاص هم اخيستل کيږي. دپاک نفسه سړي،دښه عالم اودشريف خاندان والا سترګي نظيرنه لري؛داخبره علامه فخرالدين الرازي ليکلي ده اوعلامه الوسي يي تاييدکړی سره له دي چي يواعتراض يي هم کړيدی هغه داچي يو وخت کي يوپيغمبروه،يوه شپه يي خپل قوم ته وکتل له هغوی څخه يي اويازره کسان په نظيرباندي مړه کړل نوموړي ليکلي دي چي ددی څه ځواب دی؟ددي اعتراض لپاره علماوداسي ځواب کړيدی چي هغه سبحان الله يابسم الله نه وه ويلي څکه داسي وشول.

## دنظرددفعي لپاره څه کول پکاردي:

دنظيرددفعي لپاره علماوديرشيان ښودلي دي چي يوله هغوڅخه دلاحول ولاقوة الا بالله لوستل دي؛بل داچي اکثره غيرمقلدين له دي سره مخالفت هم کوي هغه جمجمه ده،چي زموږپه اکثره سيموکي يي خلک په خپلوفصلونوکي په يوه لوړځای باندي ږدي،آياداپه اسلام کي جووازلري اوکنه؟دامام ابي داودپه مراسيلوکي يوحديث راځي له يوه تابعي څخه روايت دی چي کله رسول اللهﷺ مديني منوری ته هجرت وکړنوخلکوته يي خطاب وکړچي تاسي اکثره دهقانان ياست ددی لپاره چي فصل مونظيرنشي جمجمي پکي را زوړندي کړی،الله تعالی به ستاسوفصلونه له نظير څخه وساتي. ([2])

---

[1] - والعين عينان عين انسية وعين جنية فقدصح عن ام سلمة ان النبي صلى الله عليه وسلم رأى في بيتها جارية في وجهها سفعة فقال:استرقوا لها فان بها النظرة السفعة اى النظرة من العين -زادالمعاد۳/۸۶-.

[2] - عن عمربن على عن ابيه ان النبي صلى الله عليه وسلم امربالجماجم ان تنصب في الزرع قال:قلت من اجل ماذا ؟قال:من اجل العين-مسندبزار۲/۲۵۷-. رقم الحديث ۶۶۷. عن عمربن علي بن الحسين ان رسول الله صلى الله عليه وسلم امربتلک الجماجم تجعل في الزرع من اجل العين-سنن الكبرى للبيهقي-باب ماجاءفي نصب الجماجم لاجل العين۶/۲۲۸-. رقم الحديث ۱۱۷۵۳.

یابعضی روایتونوکی راځی چی یوه بیخه رسول اللهﷺ ته راغله ورته ویی ویل چی زموږ فصلونه نظیرکیږي نبي کریمﷺ ورته وفرمایل:چی جمجمه پکی کیږدي؛جمجمه کی داتاثیر دی چی په لومړي خل باندی دسترګوشعاع په همدی باندی لویږي، نظیرپه هغه ځای باندی ماتیږي.داحدیث په مراسیلودابوداودکی شته خوحدیث مرسل دی اومرسل حدیث زموږپه نزدحجت دی؛په دی کتاب باندی علامه شعیب ارناوت تعلیق کړیدی هلته یی لیکلي دي چی رجال هذالحدیث رجال ثقات؛ مسند بزارپه مسند دحضرت علی ابن ابی طالب کی هم داحدیث راوړل شوی دی اوپه سنن الکبری کی امام بیهقي ددی لپاره ځانګړی باب راوړی"باب نصب الجماجم لاجل العین" ؛مجمع الزوائد،فیض القدیر،جمع الجوامع،جامع الصغیراو کنزالعمال کتابونوکی هم داحدیث روایت شویدی؛ خوعلامه ترکماني په الجوهرالنقي کی لیکلي دي چی داحدیث ضعیف دی؛ خوپه اعتباردمجموع طرقوسره مرتبی دحسن ته رسیږي اوحسن حدیث داستدلال وړوي.

زموږدفقهي حنفي په کتابونکي هم دامسئله شته چی په فصل کی دجمجمی کینودل جوازلري؛کذافي الفقه الحنفي في ثوبه الجدید،وفتاوای عالمګریه کتاب الحظروالاباحة وایضافي ردالمحتار [1] نوجمجمه(دمرخره سر)په فصل کي کښنودل دنظر ددفعي بلکل جوازلري.

اوعلماولیکلي دي چی کله یوځوک بل څوک نظیرکړي اونظرکونکی معلوم وي،هغه دی خپل مخ،لاسونه،پښي اوزنګنونه ومینځي؛اوبعضی علماءوایی چی ازاردی هم ورسره ومینځي؛خوله ازارڅخه دپرتوک پالنګ دننه طرف مراد دی؛کله یی چی داتول ځایونه ومینځل هغه اوبه دی په یوه لګن کی واچوي،هغه څوک چی هغه نظیرشویدی هغه دی کینوي اودشاله لوري څخه دی هغه اوبه وربادندی وربادندی تویي کړي؛په دی دول به الله تعالی هغه نظرختم کړي.ځیني نوری طریقی هم علماولیکلي دي چی شرکی عمل نه وي بلکل جوازلري څکه چی هغه تولی طریقی دتداوي لپاره ښودل شویدي.

## دسپیلني دودول جوازلري:

غیرمقلدین وایي چی دسپیلني دودول شرک دی،آیاداخبره حقیقت لري؟په دی اړوندیوحدیث شریف راځي چی نبي کریمﷺ فرمایلي دي:ماذافي الامرین من الشفاء؟الصبروالثفاء.[2]یعنی دومره زیاته شفاپه بل شي کي نشته لکه په صبراوثفاکي چي ده.صبرممکن چی زموږپه اصطلاح کی بادبرګ ته

---

[1] - ولابأس بوضع الجماجم في الزرع والمبطخة لدفع ضررالعين لان العين حق ردالمحتار ۹/۶۰۱.

[2] - زادالمعادفصل في الطب النبوي۴/۲۷۵.

ویل کیږي اودثغاترجمه علماوبه خردل باندی کړېده؛په علم دغریب الحدیث کي مشهورکتاب نهایه لابن اثیرکي لیکلي دي چي له ثغاڅخه خردل(سپانده)مرادده.اوپه مونږاحنافوکي علامه ګجراتي په مجمع بحارالانوارکي لیکلي دي چي ثفاخردل ته ویل کیږي.داحدیث په مراسیلودامام ابوداود، زادالمعاددعلامه ابن قیم،جمع الجوامع اوجامع الصغیردعلامه سیوطي اوسنن الکبری دامام بیهقي کي ذکرشویدی.خوداحدیث ضعیف دی.

اوپه دی اړوندبل حدیث شریف هم روایت شویدی چي:علیکم بالثفاءفان فیه شفاءمن کل داء[۱]داحدیث علامه سیوطي په جامع الصغیراوجمع الجوامع کي راوړیدی؛کنزالعمال کي هم داحدیث شته نورودیرومحدثینوهم ددی حدیث روایت کړیدی؛ خوداحدیث هم ضعیف دی،ځکه چي ضعیف حدیث له ضعیف سره یوځای شي مرتبي دحسن ته رسیږي نوداحدیثونه داستدلال وړدي.

داچي په سپیلني باندی څه کیږي؟په دی اړوندعلامه ابن قیم په زادالمعادکي لیکلي دي اوعلامه مناوي په فیض القدیرکي لیکلي دي چي دا دودیږي،ځیني خلک یي دنظرددفعي لپاره دودوي اوبعضي خلک دخزندو دورکولولپاره دودوي؛نودسپیلني دودول جوازلري.

## آیاتداوي باالحرام شرعاجوازلري؟:

په دی اړوند دحنابله ومسلک دادی چي تداوي باالحرام شرعاجوازنه لري؛المغني لابن القدامه داپه حنالبه وکي مشهورکتاب دی له هغه څخه علماونقل کړیدی چي تداویی باالحرام جوازنه لري.د مالکي مذهبه علماوهم دغه رایه ده.خوپه شافعي مذهبه علماوکي علامه ننوي په شرح المهذب کي لیکلي دي چي تداوي باالحرام په دی شرط جوازلري چي نیشه لرونکي نه وي.اوزمونږدفقهي حنفي علماءپه دي اړوندتفصیل کوي چي حاصل یي په دی ډول دی:چي که مسلمان اوحازق طبیب یي ناروغ ته دخوړلوحکم وکړي بیاتداوي باالحرام هم جوازلري.کذافي البحرالرائق للعلامه ابن نجیم وردالمحتارللعلامه شامي.[۲]

---

[۱]- علیکم باالثفاءفان الله جعل فیه الشفاءمن کل داء. رواه ابن سني وابونعیم في الطب عن ابي هریره کذافي جامع الصغیرللسیوطي رقم الحدیث ۱۳۲۴۸. قال حماسي وجدته في مراسیل ابي داودومجمع الفوائد۳/۳۱۵-. وسنن الکبری للبیهقي۹/۵۸۲-. مخرج حماسي.

[۲]- یجوزللعلیل شرب البول والدم والمیتته للتداوي اذا اخبره الطبیب مسلم ان فیه شفاءولم یجدمن المباح مایقوم مقامه-ردالمحتار۷/۵۰۸-.

# دخوبونوبيان.

كوم شى چې په عالم دمثال كې په يوى معنى سره راخي هغه بياپه دنياكى په عالم داجسادوكى بله معنى لري.دبيلګي په توګه:شودى په عالم دمثال كې خپله خانګړى معنى لري چې هغه علم دە،كه څوک په خوب، كې ووينى چې چاشودې وركړې نوده ته به الله تعالى علم وركړي.بقيه ابن محلدپه نړى كې مشهور عالم تيرشويدى هغه په خپل مسندكې ليكلي دي چې يو وخت كې مې رسول اللهﷺ په خوب كې وليده چې ماته يې شودې راكړې،كله چې سهارله خوب څخه راويښ شوم هغه خوب مې په حقيقت بناءكړ،له خان سره مې وويل چې ربښتيايي شودې راكړې اوكنه؟په خپله خوله كې مې ګوتى واچولى چې ګورم شودې مې قى كړلې؛نوبښايي چې خوب په حقيقت باندې بنا نكړاى شي،خوب ته به تعبيركيږي؛نوموړى ليكلي دي چې:كه ماهغه شودې نه وى ګرزولې نوماته به الله تعالى څومره لوى علم راكړى وه.

علامه دميري په حيوة الحيوان كې له امام محمدبن سيرين څخه نقل كړيدى چې يو وخت كې هغه ته يوسړى راغى له هغه څخه يې پوښتنه وكړه چې بيګاه مې خوب ليده چې زماله بام څخه چرګ جوارتولوي ددې څه تعبيردى؟هغه ورته وويل چې څه اوس لاړشه كله دې چې غلا وشوه بياراشه زه به غل درته وښايم؛بله ورځ بياهغه سړى راغى چې زمافرشونه ورک شويدي؛امام محمدبن سيرين ورته وويل:چې ستافرشونه مؤذن پټ كړيدي څكه چې جوارپه عالم دمثال كې دفرش په معنى دي اوچرګ دمؤذن معنى وركوي.علم دتعبيريوالهامي علم ده چې هرچاته يې الله تعالى نه وركوي؛څوپه دې علم كې په اسلامي نړى كې له امام محمدبن سيرين څخه پورته عالم ندى تيرشوى ډيرعجيب تعبيرونه يې كړيدي.

نوموړى ته يووخت چاوويل:چې ماخوب وليده چې زهره ستورى له سرياستوري څخه وړاندى شي لومړى زهره ستورى ولويږي بياسرياستورى وغورځيږي.امام محمدبن سيرين ورته وويل:چې زهره ستورى حسن بصري دى اوسرياستورى زه يم،هغه به له ماڅخه مخكې وفات شي اوزه به له هغه څخه وروسته وفات شم؛بياپه ربښتياهم همداسي وشول داسي عجيب علم الله تعالى په علم دتعبيركى وكړى وه.

علامه عبدالغني النابلوسي په تعطيرالانام في التعبيرالمنام كې ليكلي دي چې يوه سړي ته پرښتى په خوب كې وويل:چې ستابښخى ته ستاملګرى زهروركوي؛بله ورځ چې حقيقت ورته څرګندشوهغه ملګري يې له ښځى سره زناكوله؛زهرپه عالم داجسادوكې خپله خانګړى معنى لري خوپه عالم

دارواحوکي دزلزلې معنی سره راځي،مناسبت یې دادی چې زغږ هم پټ وي کوم کیږي اوږغږ هم په پټه کيږي.دهغه شي چې په خوب کې لیدل شوی وي له هغه شي سره چې تعبیرېې ورځخه کیږي ددې دواړوترمینځ په یودول مناسبت موجودوي.

خلکوکې مشهوره ده چې کوم خوبونه دشپې لیدل شوي وي هغه ښه معنی لري اوکوم چې دورځې لیدل شوي وي هغه ښه معنی نه لري اياداخبره سمه ده؟په دې اړوندعلماولیکلي دي چې هغه خوبونه چې هغه دورځې لیدل کیږي هغه ډیر رښتیا وي په نسبت سره هغوخوبونوکه چې هغه دشپې لیدل کیږي،امام محمدبن سیرین په خپل کتاب منتخب الکلام في التعبیر الاحلام کې لیکلي او علامه نابلوسي په تعطیرالانام کې لیکلي دي چې هغه خوبونه چې هغه دورځې لیدل کیږي هغه ډیره ښه معنی لري په نسبت سره هغوخوبونوته چې هغه دشپې لیدل کیږي.اوبل داچې دکال په فصلونوکې دکوم فصل خوب ښه معنی لري؟په دې اړوندعلماولیکلي دي چې دسپرلي خوبونه ښه معنی لري ځکه چې دسپرلي په موسم کې ارواګانې ډیرې خوښې وي،دژمي اومني په موسمونوکې هم خوبونه ښه تعبیرلري.کذافي التعطیرالانام.

# دخوب دتعبیرلپاره مناسب وخت

دخوب دتعبیرلپاره مناسب وخت چې په هغه کې یوځوک معبرته دخپل خوب بیان وکړي هغه دسهارله لمانځه څخه وروسته اودلمرله ختلوڅخه وړاندې وخت دی،ښایي چې په همدې وخت کې معبرته خپل خوب بیان کړای شي.خینې وختونه داسې وي چې یوځوک خوب ووینې بیاچې هغه خپل خوب هریوه معبرته بیانوي هغه وایي چې زه په دې خوب باندې نه پوهیږم؛ په دې اړوندعلامه نابلوسي لیکلي دي چې هغه خوب چې لیدونکې یې په خپله زمانه کې دهغه لپاره معبرپیدانکړي نوهغه دې له خان سره پټ وساتي دهفتې په ورځ دې دسهارله لمانځه څخه وروسته ورځې کوم ځوک چې لومړی په مخه ورشي دهغه دنوم پوښتنه دې وکړي،که دهغه سړي ښه نوم وه نودخوب تعبیریې هم ښه دی؛اوکه نوم یې سمه معنی نه درلوده بیایې دخوب تعبیرښه نه دی.

دمکان په اعتبارهم دخوب تعبیرتوپیرلري که په یوه ځای کې دخوب یوډول معنی وي په بل ځای کې بیاهغسې نه وي. اوډیرځلې خوب په هغه معنی باندې نه وي څه ډول چې ښایي دهغه تعبیر وشي لکه:یو وخت کې علامه محمدبن سیرین ته یوځوک راغی پوښتنه یې تری وکړه چې خوب مې لیده چې په جومات کې ډول وهم،انونموری ورته وویل:چې ځومره ګناهونه دې کړي له هغوڅخه په توبه

کارشي ترهغه وروسته به په جومات کي خلکوته ددين اشاعت کوي.څه وخت وروسته په رښتياهم داسي وشول؛يعني دخوب تعبيرپه ضدمعنى باندي وشو.

بل داچي له حاسدانسان څخه به دخوب تعبيرنه غواړي څکه چي هغه بيادخوب بنه معنى په بده تعبيروي؛اوکله ناکله يوڅوک په خوب کي يوشى دبل شي په شکل کي ګوري دبيلګي په توګه:موږک ده ته دمارپه شکل ښکاريږي،ددې خوب به څه ډول تعبيرکيږي؟آياپه هغي معنى به يې تعبيرکيږي کوم چي دده په خيال کي رغلى اوکه په بله معني به يې تعبيرکيږي؟ علماوليکلي دي چي ددې خوب تعبيربه په هغه ډول کيږي کوم چي دخوب ليدونکي په خيال کي راغلي دی. اوبل داچي په کتابونوکي ليکلي دي چي دګناهګارسړي علامه داده چي کله هغه خوب ويني هغه خوب ژر ورڅخه هيريږي.

## "من رأني في المنام الخ"حديث کي تحقيق:

په يوه حديث شريف کي راځي چي نبي کريمﷺ فرمايلي دي چي:من رأني في المنام فقدرآني فان الشيطن لايتمثل بي.[1]

ژباړه:هغه څوک چي ماپه خوب کي ويني،نوژر ده چي مابه په ويښه هم ويني څکه چي شيطان زماپه شکل اوصورت کي خان نشي جوړولای.دعلم احاديثوپه ډيروکتابونوکي په دې حديث کي دفسيراني يقظة الفاظ ذکرشويدی چي به دې کي دعلماومختلف اقوال نقل شويدي بعضي علماءوايي چي داليدل به دقيامت په ورځ باندي وي؛بياپه دې باندي علماو ردکړيدی څکه چي دقيامت په ورځ خوهرڅوک نبي کريمﷺ ليدلای شي؛لنده داچي محققين علماو داحديث په دې باندي حمل کړيدی چي څوک په دنياکي نبي کريمﷺ په خوب کي ويني،نودی به ترهغوالله تعالى نه مرکوي ترڅويي چي نبي کريمﷺ په دنيا کي مشافهة په خپلوسترګوباندي نه وي ليدلی.

که څوک اعتراض وکړي چي ماخونبي کريمﷺ په خوب کي ليدلی دی،خومشافهة مي په خپلوسترګوباندي نه دی ليدلای؟ ددې لپاره علماوداسي څواب کړيدی چي کله دانسان دمړيني وخت شي په دې وخت کي به دنبي کريمﷺ مطهرروح له هغه سره ملاقات کوي؛کذافي بهجة النفوس للعلامه ابن جمره المالکي،وتنويرالحلک للعلامه سيوطي.سعادت الدارين کي هم په دې اړوندتحقيق ليکلي دي دحضرت ابن عباس څخه يې اثرنقل کړيدی چي هغه وايي:دنبي کريمﷺ له وفات وروسته مي هغه په خوب کي وليده؛نوموړی وايي چي ماته خوداحديث معلوم وه،چي څوک رسول اللهﷺ په

---

[1] - صحيح البخاري کتاب العلم ۱/۲۱-. ورواه الترمذي في ابواب الرؤيا ۲/۵۳-.

خوب کي وويني بيابه يې په ويښه باندې هم ويني،نوموړې وايي چې زه حضرت ميمونه بنت حارثه ته ورغلم هغې ته مې وويل:چې دنبي کريمﷺ کوم شي درسره شته اوکنه؟هغې راته وويل:هو بيايې ماته دنبي کريمﷺ ايينه راکړه،ماچې کله په هغې آينې کې وکتل هلته دنبي کريمﷺ مبارک مخ معلوميده زماخپل مخ نه معلوميده.(۱)

علامه سيوطي وايي چې زما اوياخلې په دنياکې له رسول اللهﷺ سره ملاقات شوېدی،نوموړی په دې اړوندخانګړی کتاب جوړکړی چې په دنياکې دانبياوليدل ممکن دی اوکنه؟په هغه کتاب کې يې ډيرې داسې واقعې نقل کړيدی چې دعلماوپه دنياکې له رسول اللهﷺ سره ليدل شويدي.هلته يې دعبدالله القريشي په نوم باندې ديوه سړي ذکرکړيدی چې هغه وايي:په يوه زمانه کې په مصرباندې ډيره سخته قحطي راغله،زه دبيت المقدس په لور روان شوم کله مې چې هلته دحضرت ابراهيمﷺ قبرته وکتل په دې وخت کې خپله ابراهيمﷺ په مخه راغی نوموړی وايي چې مادوعا ورڅخه وغوښته چې زموږپه هيوادکې ډيره قحطي ده بياهغه دعا راته وکړه.

علامه عبدالقادرجيلاني وايي:چې يوه ورځ په کوفه کې په يوه جومات کې وم،له خلکوسره مې څه ډيرې خبرې نشواې کولاې چې زه عجم وم اوهغوی عرب وه،نوموړی وايي چې دماسپښين دلمانځه پرمهال نبي کريمﷺ راته راغی راته ويې فرمايل:عبدالقادره ولې خبرې نشې کولاې؟ماورته وويل:چې ای دالله تعالی رسوله دوی عرب دي اوزه عجم يم،زه په عربي ژبه رواني خبرې نشم کولاې،نوموړي ليکلي دي چې نبي کريمﷺ زماپه خوله کې لاړې راکړې اوراته ويې فرمايل:چې اوس خبرې کوه؛کله چې نبي کريمﷺ لارماپه خبروپيل وکړ،تردې وروسته حضرت علي راغی مابياخبرې نه شواې کولاې هغه هم په خوله کې لاړې راکړې.داهم له رسول اللهﷺ سره په دنياکې ملاقات وه.

په نورې کې يوسړی تيرشويدی د حمايل په نوم باندې هغه به چې هروخت کې غوښتل له رسول اللهﷺ سره يې ملاقات کيده؛کله به چې چادکومې مسئلې پوښتنه ورڅخه وکړه هغه به په خپل ګريوان کې کتل بيابه يې خواب ورکاوه چې ماته نبي کريمﷺ داسې وفرمايل..نوموړی يوامې سړی وه بيابه چې کله محدثينوهغه خبره په کتابونوکې وکتله په رښتيابه هم هغه ډول وه.

---

۱- اخذت الميمونة لابن عباس مرأة النبي صلى الله عليه وسلم قال ابن عباس:فنظرت في المرآة فرايت صورة النبي صلى الله عليه وسلم ولم ارنفسي صورة.كذافي حاوي الفتاوی۲/۲۴۳-۲.

اومجددالف ثاني وايي:چي زماروح په يوه وخت کي ريحان وکړ،حضرت خضراوحضرت الياس ته ورغلم له هغوی څخه مي پوښتنه وکړه چي تاسي مړه ياست اوکه ژوندي؟ هغوی راته وويل چي اصل کي مړه يو،خوکارونه دژوندیوکوو؛داهم په دنياکی له انبياوسره ملاقات دی.له دی تولوڅخه څرګنده شوه چي په دنياکی دانبياوليدل ممکن دي.دلانبه تحقيق لپاره تنويرالحلک اوسعادة الدارين کتابونوته مراجعه وکړي.

همدارنګه له پرښتوسره هم په دنياکي ليدل ممکن دي؛له حضرت عمران ابن حسين صحابي سره به پرښتوملاقات کاوه؛يو وخت کی نوموړي داغ لړولی وه بيادپرښتوراتګ له ده څخه بندشو؛نبي کريم ورته وفرمايل چي داغ لړول پريږده بيابه پرښتي تاته دملاقات لپاره راشي؛نوله پرښتوسره هم په دنياکی ليدل ممکن دي.

# په خوب کې نادرې:

تفسيرالمنارکي دخوبونوپه اړوندهرازخيزتحقيق موجود دی،هلته يی ليکلي دي چي خيني وختونه انسان په خوب کی داسی کارونه کوي چي په ويښه هغه کارونه نشی کولای؛يوه حديث کی راځي چي کله انسان ويده شي روح ورڅخه وځي. له دی حديث څخه علماواستدلال کړيدی چي انسان دوه روحه لري،يوداسي روح ده چي په هغه باندیٓ تشعير،مابه الامتياز اومابه العلم ورباندی راځي.اوبل هغه روح دی چي هغه دانسان ترژړنديوري ترلی دی.

په همدي تفسيرالمنارکی ليکلي دي چي په يوه زمانه کي يوسيدلي(دواجورونکی)وه،هغه ته يوه طبيب يوه نسخه ورکړي وه چي زمالپاره دادوا جوړه کړه،داسيدلي په خوب کي پاځيدلی وه دهغي نسخي ترکيبي اجزاءيي په هاونګ کی اچولي وه،په دي وخت طبيب ورباندی راويښ شوهغه ته له علانموڅخه څرګنده شوه چي سيدلي ويده ده په خوب کي جيګ شويدی؛کله يی چي دهغی نسخي ترکيبي اجزاءسره يوځای کړل په دی وخت کي طبيب زهر ورکړل ورته ويی ويل:چي داهم ورسره وتکوه؛سره له دي چي سيدلي ويده وه خوبيايي هم طبيب ته وويل چي دادول دوايه دی نسخه کی نشته کومه چي ته ماته راکوي؛دومره عجيب شعورالله تعالی ورکړی وه چي په ويښه بياداشعورنه وه؛طبيب ورته وويل چي ولی يی نه ورسره تکوی داهم دهمدي نسخي جزده؟سيدلي ورته وويل چي نه دازهردي؛اصبادورخی بيادی طبيب هغه زهرهغه دواجورونکي ته راواخيستل چي داهم ورسره وتکوه؛دواجورونکي ورته وويل:سمه ده دغه به هم ورسره وتکوم؛طبيب ورته وويل:چي ته بيګاه په

خوب کې پاڅېدلی وی دوادی جوړوله ماداز هردرکول تانه اخیستل خواوس مې چې په ویښه درکړل وادی خیستل له دی څخه څرګنده شوه چې ستا بیګنی شعورچې هغه په خوب کې وه،ستاله اوسني شعورڅخه چې په ویښه دی ډیرزیات وه.

# له خپل خان څخه غلا:

په یوه زمانه کې یوه سړی خپل ملګری ته وویل:چې هره شپه زمونږله صندوق څخه روپۍ ورکیږي اوحال داچې دصندوق کیلي هم زماسره ده؛ملګري یې ورته وویل:چې نن شپه به زه هم ورسره ویده شم؛دکورڅښتن اوملګری یې دواړه ویده شول کله چې نیمه شپه شوه دکورمالک په خوب کې پورته شوخپل صندوق ته ورغی دصندوق سرېې خلاص کړله هغه څخه یې یوڅه مقدار روپۍ راواخیستلې اودباندې ووت،داملګری یې هم ورپسې راووت دکورڅاوندپه ډیرې تیزی سره په یوه نري دیوال باندې لاړپه یوه ځای کې له هغه دیوال څخه کوزشو،هلته یې له یوه ځای څخه خاورې راواړولې اوهغه روپۍ یې پکې پټې کړې؛بیرته راغی په خپل ځای کې ویده شو،کله چې سهارشوملګری یې پوښتنه ورڅخه وکړه چې نن خوبه دې روپۍ نه وي ورکې شوي؟

دکوروالاخپل صندوق ته ورغې هغه یې خلاص کړکله یې چې خپلې روپۍ وشمیرلې روپۍ بیاکمې وې؛خپل ملګري ته یې وویل چې نن شپه بیاهم زماله صندوق څخه روپۍ غلاشویدي،ملګري یې ورته وویل:چې همداته په خپله غل یې،له خپل خان څخه غلاکوې،بیایې ټوله کیسه ورته وکړه؛داملګریې وایی:چې دې څومره دشپې په هغه دیوال باندې تیزتګ دورځې هغسې نه شو وړباندې تللای، بیایې دکورڅښتن بوته ورته ویې ویل چې په دې ځای کې تادشپې روپۍ خښې کړلې کله یې چې په هغه ځای کې پلټنه وکړه هغه ټولې روپۍ چې له ده څخه ورکې شوې وې هغه ټولې یې هلته وموندلې؛خیني وختونه په خوب کې هم داسې نادرې کیږي.

په یوه بل ځای کې دیوی مهمان خانې یوغلام وه دهغه داسې عادت وه چې دشپې به په خوب کې پورته کیده دهغې مهمانخانې ټول لوښې به یې مینځل،کله به چې دشپې ویده کیده له ځان سره به یې وویل چې څه لوښې به صباته ومینځم هغه به ده دشپې په خوب کې مینځلې وه؛هغه به له ځان سره ویل چې دازمالوښې به چامینځلې وې،کیدلای شي چې پیریانومینځلې وې؛په دې باندې نه پوهیده ده په خپله په خوب کې مینځلې دې؛نوکله ناکله په خوب کې داسې نادرکارونه هم کیږي.

## دسلام بیان.

دسلام کول سنت دی اوځواب ورکول یې واجب دي؛خوځیني وختونه داسې وي چې یوشي سنت وی خودهغوسنتوثواب له واجبوڅخه ډیروي؛دبیلګي په توګه:په یوه چاباندی دبل چادین وي اوهغه دائن دیرغریب وي؛هغه غریب ته څه موده مهلت ورکول واجب دي،اوهغه ته دین وربښل سنت دي،نودلته ددین وربښل دیرثواب لري په نسبت سره تأخیرورکولوته.دیری داسې نوری مسئلي هم دي چې یوشی واجب اوبل سنت وي خوپه نسبت سره واجبوته دسنتوثواب ډیروي.

## دتودیع پرمهال سلام په اسلام کې څه حکم لري:

دخدای په امانی پرمهال سلام کولوته دتودیع سلام ویل کیږي،داډول سلام هم سنت دی په احادیثوکي ثبوت لري؛په دی اړوندعلامه نووي په الاذکارکي لیکلي دي چې دتودیع پرمهال سلام سنت دی؛علامه علی القاري هم دغه خبره لیکلی ده؛ اوعلامه سمهودي په دې اړوندخانګړی کتاب جوړکړیدی؛نودتودیع پرمهال سلام کول په اسلام کی بلکل جوازلري.

## دسلام په ځواب کې دواولوستل ضرورنه دي:

کله چې یوڅوک په چاباندی سلام وکړي چې السلام علیکم،نوهغه به په ځواب کې څه وایي:وعلیکم السلام اوکه علیکم السلام ؟په دي اړوندعلامه سمهودي لیکلي دي چې پرته له واوڅخه هم ځواب اداکیږي؛نورودیروکتابونوهم لیکلي دي چې پرته له واوڅخه هم سلام اداکیږي خوغوره داده چې واو ورسره وویل شي،کذافي فتاوی تاترخانیه،وکتاب الاذکارللعلامه نووي وایضاردالمحتارللعلامه شامي.[1]خوکه یوڅوک په چاباندي سلام وکړي هغه په ځواب کې یواځې علیک ووایي په دی سره ځواب نه اداکیږي؛خوکه واو ورسره زیات کړي چې وعلیک بیاپه دي سره ځواب اداکیږي کذافي کتاب الاذکارللعلامه نووي.

---

[1] - ویأتي بواوالعطف في وعلیکم وان حذفها اجزاه- ردالمحتار۹/۶۸۳-.

## يواخې دلاس په پورته کولوسره سلام نه اداکيږي:

په دې اروندیوه حدیث شریف کې راغلي چې سلام بالاکف دیهودیانوسلام ده.[۱] داحدیث په اوجز المسالک کې علامه زکریاکاندهلوی راوړیدی،اله دې څخه څرګندیږي چې دادول سلام شرعا جوازنه لري.یوه بل حدیث شریف کې راغلي چې یوه ورځ په جوماتِ کې ښځې ناستې وې کله چې نبی کریم په هغوی باندې تیریده،هغوی ته یې دلاس په اشاره باندې سلام وکړ.[۲]

ددې دواړوحدیثونوترمیځ تعارض راغلی ددې لپاره علماوداسې تطبیق کړیدی چې په لاس باندې دسلام کول جوازلري خوپه دې شرط چې دسلام لفظ به ورسره وایي،یواخې دلاس په پورته کولوسره سلام نه اداکیږي ځکه چې دیهودیانویواخې دلاس پورکول عادت دی خوکله چې دسلام لفظ ورسره ووېل شي په دې سره له تشبه څخه خبره وځي کذافي الکوکب الدري للعلامه رشیداحمد.اوکوم ته به هم په اشاره باندې سلام کوي خولفظ دسلام به هم ورسره وایی ځکه چې هغه غږنه اوري.

## عسکري سلام ناروادی:

سلا م العسکري کماهوالعادت في قوای العسکریه في حکومات الاسلامیه،ناروادی ځکه چې دادول سلام دیهودوسلام دی؛ نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې:خالفوالیهودوالنصاری.[۳] یعنې تاسې له یهودواونصاری وسره مخالفت کوي.نوعسکري سلام چې لاس په تنده باندې ږدي شرعا جوازنه لري علامه نجم الدین برهانپوري الحنفي په شرح دعین العلم کې همدا خبره.لیکلې ده له علامه عبدالحق څخه یې نقل کړی چې هغه وایي دادول سلام شرعا جوازنه لري.اوبل داچې په دې سلام کې لفظ دسلام هم وایي نودادول شرعاجوازنه لري.

[۱]- عن عمروبن شعیب عن ابیه عن جده ان رسوا الله قال:لیس منا من تشبه بغیرنا لاتشبهوا بااليهودولانصارا فان تسلیم الیهودالاشاره بالاصابع وتسلیم النصاری الاشاره بالاکف جامع الترمذي۲/۹۹-.

[۲]- سمعت اسماءبنت یزید تحدث ان رسول الله مرّفي المسجدیوماوعصبه من النساء فالوی یده باالتسلیم واشارعبدالحمیدبیده-جامع الترمذي-۲/۹۹.

[۳]- عن ابي هریره ان النبي صلی الله علیه وسلم قال:ان الیهود والنصاری لا یصبغون فخالفوهم.متفق علیه-مشکاة المصابیح۲/۳۸۰-.

## آیاپه کبرجن باندې سلام کول جوازلري؟

که یوڅوک په دی باندې ویریږي چې که زه په فلانکي باندې سلام وکړم کیدلای شي چې هغه زماسلام وانه خلي،ځکه چې هغه ډیرکبرجن دی په دې صورت کې به هم سلام ورباندی کوي کذاقال علامه شامي في ردالمحتار.[1]اوبل داچې کله یوڅوک په چاباندې سلام کوي نوپه هغه باندی به ځيل سلام اوروي یعنی په دومره آوازبه سلام کوي چې هغه یی واوري؛ اوکه ورباندې وایي نه ورو‌ي نوپه دی صورت کې په هغه باندې ردندې واجب اودده سنت هم نه اداکیږي.

## آیادسلام په الفاظوکې زیادت جائزدی؟

اصل کې دسلام الفاظ دادي چې:السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته،آیاپه دی الفاظوباندې نور زیادت هم جائزدی اوکنه؟په دی اړوندفقهاولیکلي دي چې ښایي په دی الفاظوباندې زیادت ونکړای شي؛کذافي فتاوای تاترخانیه وردالمحتار.[2]خوپه ضعیفو احادیثوکې له دی الفاظوڅخه زیادت هم راغلی دي،علامه ابن حجرلیکلي دي چې داحدیثونه ضعیف دي خوپه متعددو طروقوسره راغلي دي مرتبې دحسن ته رسیږي.لنده داچې په دی اړوند دجمهورومذهب دادی چې زیادت به نه کیږي خوکه څوک یې کوي هم څه باک نه لري.

بل داچې خیني وختونه دوه کسان له یوبل سره مخامخ شي دوی دواړه په یوبل باندې سلام وکړي،آیا ددوی لپاره یواځي همدومره کفایت کوي اوکه یوبل ته به ځواب هم ورکوي؟په دی اړوند دجمهورو علماومسلک دادی چې یوبل ته به ځواب هم ورکوي؛که ځواب یې ونکړسنت یی نه اداکیږي.[3]

اوبل داچې کوم مجلس کښې چې یوسړی ویده وي اونورناست وي هلته به سلام کونکی په داسې ډول سلام کوي چې هغه ویده سړی راویښ نشي او ویښ خلک یې واوري داه درسول الله ﷺ سنت ده؛علامه ابن علان په فتوحات مکیه کې دامسئله لیکلي ده،علامه نووي اوعلامه شامي هم په خپلوکتابونوکې دامسئله لیکلي ده.

---

[1] - واماالشک بین انه فاسقاً اوصالحافلااعتبارله بل یظن بالمسلمین خیرا-ردالمحتار ۹/۶۸۰-.

[2] - والافضل للمسلم ان یقول السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته،والمجیب کذالک یرد ولاینبغي ان یزاد علی البرکات شئ-ردالمحتار ۹/۶۸۳-.

[3] - ویسلم الماشي علی القاعد،والراکب علی الماشي،،والصغیرعلی الکبیر،اذا التقیا فافضلها سبقها،فان سلم معا یردکل واحد-ردالمحتار ۹/۶۷۸-.

## په بعضو خلکو سلام نه کول:

په بدعتي،فاسق،کافر،لیوني اوډودۍ خوړونکي باندي سلام کول نشته،له ډودۍ خوړونکي څخه هغه څوک مراد دی چي ډوډۍ یې په خوله کي وي؛کذاقال علامه شامي وعلامه طحطاوي [۱] همدارنګه کوم څوک دمعصیت لپاره راغونډشوي وي، دبیلګي په توګه:قماروهي په هغوی باندی هم سلام کول نشته؛خوامام صاحب وایي:چي په دي ډول خلکوبه هم سلام کوي څکه چي دسلام په واسطه دوی له معصیت څخه مشغول شي؛خوصاحبین وایي چي په دي ډول خلکوبه څکه سلام نه کوي چي ددوی تحقیروشي.

اوبل داچي کله یوڅوک په چاباندي سلام وکړي اوهغه وي،سلام کونکی په دی نه وی خبرچي کافردی خوکله چي ورباندي پوی شي بیادي ورته ووایي چي زماسلام را ردکړه؛فقهاوداطریقه ښودلي ده.

## دسلام اړوندضروري مسائل:

په یوه معین شخص باندي هم سلام کول جوازلري،دبیلګي په توګه:یوه مجلس کي ډیرخلک موجودوي یوسړی راشي په یوه معین شخص باندي سلام وکړي داهم په احادیثوباندي ثابت عمل دي.بل داچي یوڅوک مخکي روان وي او وروسته ورپسي روان وي،نوکله چي وروستنی مخکني ته ورو رسیږي په هغه به سلام کوي.

التمهید دعلامه ابن عبدالبرکی لیکلي دي چي په یوه زمانه کي دوه تابعیان چیرته په سفر روان وه،هغوی دواړه په خپلو سوارلیوباندي سپاره وه،نزه هم ورسره ملګری شوم په یوه ځای کي زماسوارلي دمتیازولپاره توقف وکړ،کله چي بیرته له هغوی سره یوځای شوم هغوی راته وویل چي سلام دي ولي ونکړ؟ماورته وویل:ماورته وویلچي په دي وخت کي هم سلام شته هغوی راته وویل چي هو.

بل داچي سپوربه په پیاده باندي سلام کوي؛اوډیرخلک به په لږوباندي سلام کوي.بل داچي کله یوڅوک جومات ته لاړشي اوهلته خلک په تسبیح بوخت وي،یایه لمانځه ولاړوي اویاهم دقرانکریم په تلاوت بوخت وي نودی به په هغوی باندي سلام نه کوي؛اوکه یي وکړی نوپه هغوی باندي رددی واجب.

---

[۱] - ولایسلم علی الشیخ المازح الکذاب واللاغي،ولاعلی یسب الناس اوینظروجوه الاجنبیات،ولاعلی الفاسق المعلن ردالمحتار ۹/۶۸۵.

بل داچي يوچاته سلام لېږل هم جوازلري،کله چي مرسل اليه ته سلام ورسيږي هغه به يي حواب په دي دول کوي چي. وعليک وعليه السلام.په سلام رسونکي به هم سلام کوي اودسلام لېږونکي حواب به هم وايي.بل داچي کله يوڅوک داسي يوځاى ته داخل شي چي هلته هيڅوک هم نه وي بيابه هم سلام کوي؛خوداسي به وايي چي:السلام علينا وعلى عبادالله الصالحين.

بل داچي يوه سړى ته به دجمعي په صيغي سره سلام کيږي که دمفرد په صيغي سره؟يوه سړي ته به هم دجمعي په صيغي سره سلام کيږي يعني السلام عليک به نه وايي عليکم به وايي؛حکه چي له انسان سره پرښتي هم موجودي وي.بل داچي په ښخوباندي هم سلام کول جوازلري،سړى به په خپله ښځه هم سلام کوي؛اوښخي به هم په نوروښخوباندي سلام کوي؛ خوسړى به څکه په زوانوښخوباندي سلام نه کوي چي فتنه ورڅخه پيداکيږي.خلکوکي عادت دى چي په خپله ښځه باندي سلام کول عاراوپيغور ورته ښکاريږي؛دادجاهليت دزماني عقيده ده،سړى به په خپله ښځه باندي سلام کوي.

## استيذان"اجازه غوښتل":

که يوڅوک دچاکورته ورځي نوخامخابه دهغه کورله ځښتن څخه اجازه غواړي،همدارنګه که څوک دچاکوټي ته ورځي دهغي کوټي له ځښتن څخه به اجازه غواړي.بل داچي کله يوڅوک دچادروازه ټکوي نوديره په زوره به يي نه ټکوي؛ صحابه وبه درسول اللهﷺ دروازه په نوکانوباندي ټکوله.ادب المفرد دامام بخاري کي ددي لپاره خانګړى باب راوړيدى چي په نوکانوباندى دروازه ټکول.دطالب العلم لپاره ادب داده چي دخپل استاذ درږوازه په نوکانوباندى وټکوي؛اوکه په نوک باندي نه کيده بيايي په تيږه باندي ټکول هم جوازلري.

الجامع لاخلاق الراوي وأداب السامع کتاب کي علامه خطيب بغدادي ليکلي دي چي حضرت عبدالله ابن عباس وايي چي کله نبي کريمﷺ وفات شومايوه بل انصاري صحابي ته وويل:چي دهغوصحابه وکورونوته به ورشوچي هغوى ته دنبي کريمﷺ احاديث معلوم دي هغه به ورڅخه زده کړو؛هغه راسره ونه منله،نوموړى وايي چي زه به دهغوصحابه وکورونوته ورتلم کوموته چي دنبي کريمﷺ احاديث يادوه،خپل ځادربه مي دهغه ددروازي په ليخک باندي واچاوه،هغه به مي دحان لپاره پالنګ وګرخاوه،په هغه به څملاستم؛بادبه زمايه ځادرباندي خاوري راوړي وي داحترام په خاطرمي دهغوى دروازې هم نه ټکولي کله به چي هغه صحابي راووت راته ويل به يي درسول اللهﷺ دترخويه ته ولي راتللي څوک به دي راليږلي وه زه به درغلی وم؟ما به ورته وويل:څوک چي علم زده کوي هغه

به په خپله پسې خي.په دی دول به حضرت عبدالله ابن عباس له صحابه وڅخه احدیث رده کول؛نوښایي چي طالب العلم هم دنوموړی تکلاره خپله کړي.[۱]

## دمصافحي اومعانقي بیان.

مصافحه کول سنت دي.کف له کف سره لږولولوته مصافحه ویل کیږي؛چې کف نه په پښتوژبه کې رغوی وایي.اوبل معانقه ده داهم سنت ده،معانقه دستري مشي پرمهال غاړه په غاړه کېدلونه ویل کیږي لکه اوس هم خلکوکي عادت دی کله چي له یوبل سره ستري مشي کوي نویوله بل سره غاړه په غاړه کیږي؛اومعانقه دالتزام په معنی هم راخي یعني خانته رانږدی کول دواړه دوله معاهقه سنت ده.

## دواړه ډوله مصافحه جوازلري.

غیرمقلدین وایي چي مصافحه به په یوه لاس باندي وي،خواحناف اومالکي مذهبه علماءوایي چي معانقه به په دواړو لاسونوسره وي؛ډیرومحقیقینواحنافوپه خپلوکتابونوکي لیکلي دي چي مصافحه به په دواړولاسونوسره وي منهم علامه طحطاوي في الشرح درالمختار،وفتاوای الهندیه،ولمعات،وتعلیق الصبیح،ومجمع الانهر،وملتقي الابحر،والفقه الحنفي في ثوبه الجدید وایضافي ردالمحتارللعلامه شامي.[۲]

اوهغه علماءچي هغوی وایي چي مصافحه په یوه لاس باندي سنت ده یوله هغوڅخه علامه عبدالقادرجیلاني الحنبلي ده،نوموړي په الغنیه کتاب کي باب ایښی هغه کارونه چي په ښی لاس باندي کیږي اوهغه چي په چپ لاس باندي کیږي؛ بیایي لیکلي دي هغه کارونه چي په ښی لاس باندی کیږي یوله هغوڅخه مصافحه ده؛علامه عبدالرحمن مبارکپوري په تحفة الاحوذي کي په دی مسئله باندي تحقیق کړي بیایي لیکلي دي چي مصافحه به په یوه لاس باندي وي،نوموړی له علامه شامي څخه نقل کړیدی چي هغه وایي مصافحه به په یوه لاس باندي وي خوپه دی ځای کي علامه

---

۱- عن ابن عباس قال:لما اقبض رسول الله قلت لرجل من الانصار:هلم فلنسأل اصحاب رسول الله فانهم الیوم کثیر،قال:واعجبالک یاابن عباس،اتری الناس یحتاجون الیک وفي الناس من اصحاب رسول الله من فیهم؟قال:فترک ذاک،واقبلت انا اسأل اصحاب رسول الله عن الحدیث،فان کان لیبلغني الحدیث عن الرجل فآتي بابه،وهوقائل فاتوسدردائي علی بابه تسفي الریح علي من التراب،فیخرج فیقول:یا ابن عم رسول الله ماجاءبک،الا ارسلت الي فآتیک فاقول:انا احق ان آتیک فسأله عن الحدیث-الجامع لاخلاق الراوي وآداب السامع۱/۱۸۵- رقم الحدیث ۲۱۵.

۲- والسنة ان تکون بکلتا یدیه،وبغیرحائل من ثوب اوغیره،وعندالقاءبعدالسلام وان یأخذالابهام فان فیه عرقا ینبت الحبة کذا جاءفي الحدیث-ردالمحتار۹/۶۲۹-.

مبارکپوري سهوه شویدی څکه چي علامه شامي صراحة لیکلي دي چي:بکلتایدیه.غیرمقلدعالم علامه اعظمي په عون المعبودکي لیکلي دي چي مصافحه به په یوه لاس باندي وي.

۵

هغه علماءچي هغوی وایی مصافحه به په یوه لاس سره کیږي هغوی دخپلی مدعی لپاره یوحدیث دلیل راوړي چي هغه حدیث په التمهیدکتاب کي راوړل شویدی هغه داچي حضرت عبدالله بن بُسروایی چي ماپه دغه لاس له رسول الله سره مصافحه کریده.اوحدیثهم صحیح حدیث دی؛نورهم دیرداسي حدیثونه راغلي دي چي له هغوڅخه څرګندیږي چي مصافحه به په یولاس باندي وي.[1] کنزالعمال کي هم په دي اروندحدیثونه روایت شویدی.دمصافحي له لغوي معنی څخه هم داڅرګندیږي چي مصافحه باالید ده،څکه چي علماء دمصافحي تعریف داسي کوي چي:الصاق الکف بالکف.په مونږاحنافو کي علامه زکریاکاندهلوي هم دبذل المجهودپه حاشیه کي لیکلي دي چي مصافحه به په یولاس کیږي.

زمونږاحنافوپه شمول هغه علماءچي هغوی وایي چي مصافحه به په دواړولاسونوسره وي هغوی دخپلي مدعی لپاره یوحدیث راوړي چي هغه حدیث په دي ډول دی:اذاتصافح المسلمان لم تفرق اکفهما حتی یغفرلهما.[2] ژباړه:کله چي دوه مسلمانان له یوبل سره مصافحه کوي،نو وراندی تردي چي دوی خپل لاسونه سره خلاص کړي الله تعالی به دوی ته ببښنه وکړي.دلته اکف دجمعي په صیغي سره راغلی دی.داحدیث په مجمع الزوائدکي راوړل شویدی خوضعیف دی؛ضعیف احادیث هم په فضائلو داعمالوکي داعتبارووړوي.

اوبل حدیث په مسند دامام احمدبن حنبل کي روایت شویدی چي:ولایفرق بین ایدیهماحتی یغفرلهما.[3] وقال علامه نورالدین الهیثمي في مجمع الزوائد اسناد هذالحدیث اسنادصحیح.که څوک اعتراض وکړي چي اصل کي خومصافحه په یوه لاس باندي ده نوتاسي ولي په دواړولاسونوباندي مصافحه کوی؟

---

[1] - عن سلمان الفارسي ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال:ان المسلم اذالقي اخاه المسلم فاخذت بیده،تحاتت عنهاذنوبها کاتحاتت الورقة في الشجراليابسة في یوم ریح العاصف.رواه الطبراني في الکبیر-(المصارحة في احکام المصافحة/۲۱)

[2] - مجمع الزوائد۸/۳۷- رقم الحدیث ۱۲۷۶۷.

[3] - عن انس بن مالک أن النبي الله قال:مامن مسلمین فاخذاحدهما بیدصاحبه الاکان حقاعلی الله عزوجل ان یحضردعاءهما.ولایفرق بین ایدیهماحتی یغفرلهما. رواه احمد والبزارواویعلی الاانه قال:کان حقا علی الله ان یجیب دعاءهما ولایرد ایدیهماحتی یغفرلهما. ورجال احمد رجال صحیح-مجمع الزوائد۸/۳۶- رقم الحدیث ۱۲۷۶۴.

مونږ وورته جواب کووچې په مسند دامام احمدبن حنبل کې حدیث راځي چې کله دوه مسلمان له یو بل سره ښتړی مشی کوي،په یوه روایت کې راځي چې الله تعالی به یې دعا قبوله کړي،په بل روایت کې راځي چې الله تعالی به ښښه ورته وکړي مخکې له دې چې هغوی خپل لاسونه جلا کړي،په دې حدیث کې دایدیهما لفظ راغلی دی چې داجمعه ده اوجمعي کم افراد دری دي،له دې څخه څرګندیږي چې مصافحه به په دواړولاسونوسره وي ځکه چې ددواړوجانبینوځلورلاسونه کیږي اوڅلورجمعي عدد دی.مونږدامووچې دیوه لاس په اړوندهم احادیث شتون لري اودوولاسونوپه اړه هم حدیثونه روایت شویدي؛خوښایي چې مصافحه په دواړولاسونوباندې وشي ځکه چې په دې کې له سنتوڅخه ترځلویوري تعامل دی؛ حوکه څوک یې په یوه لاس باندې کوي هم څه بک نه لري چې بحمدالله ومنته هدارایه مي په الکوکب الدري دعلامه رشیداحمدګنګي هم وموندله اوبخاري شریف کې هم یوحدیث راځي چې صافح حمادبن زیدمع عبدالله ابن المبارک بکلتایدیه.[2] ژباړه:حمادبن زیدله عبدالله ابن المبارک سره په دواړولاسونو باندې مصافحه وکړه.لنډه داچې دواړه دونه مصافحه جواز لري خوښایي چې اوسني عصرکې په دواړولاسونوباندې وشي ځکه چې اوس مهال په یوه لاس باندې مصافحه کول دکفارو عادت ګرځیدلی دی،په دې دول به له تشبه څخه هم حان وژغورل شي.

## دبیرته تلوپرمهال مصافحه:

په احادیثوکې دخدای په اماني پرمهال مصافحه ثابته ده،دبذل المجهوداواحسن الفتاوی کې داسې لیکل شویده.[3]له کوندی کافرسره هم مصافحه جوازلري؛خوپیرته له کوندي له ووروکفاروسره مصافحه ناروانه،کذافي فتاوای عالمګریه.بل داچې کله یوڅوک له چاسره مصافحه کوي ترمعوبه خپل لاس به ورڅخه لری کوي ترڅویې چې یوښته نه وي ورسره کړي؛ کذافي الفتوحات الربانیه علی اذکار النوویه وروضة الریاحین شرح ریاض الصالحین.

اوبل داچې دمصافحې پرمهال غمض(دلاس زوروکول)هم جوازلري،کذافي فتوحات المکیه اوبل داچې له سپین سرری ښځې سره هم مصافحه کول جوازلري؛خوله زوانې ښځې ناروانه اوسحوکې علت دی چې کله ښتړی مشی سره کوي نوبه دیلی مخ ښکلوي،ابداشرعا جوازلري اوکه،په دې اړوندمونږدفقهي حنفي کتابونوکې لیکلي دي،که شهوت نه وي بیاجوازلري اوکه دشهوت په وجه

---

[2]- صحیح البخاري کتاب الاستیذان باب الاخذبالیدین ۲/۹۲۶.

[3]- والمشهورعلی الالسنه ان المصافحه عندالوداع لااصل ولیس صحیح الروایات ذکرها علی هامش بذل المجهود ۳۳۲/۸ طبع مکتبه یحیاویه کراتشي.

وي بیاخو ارنه لري.او موږ به هو ادکي چي کوم رواج دی داخکه جو ار لري چي داد شهوت په وجه نه وي کما قال علامه طحطاوي و علامه شامي.[۱]

## دمعانقې شرطونه:

لکه څرنګه چي مصافحه سنت ده،همدارنګه معانقه هم سنت ده.خوله بې ګېرې هلک سره معانقه جوازنه لري ځکه چي هغه حکم دښځي په شان دی.بل داچي له نامحرمي ښځي سره هم معانقه ناروا ده.اوبل داچي کله يوڅوک له چاسره معانقه کوي نوکالي به يې اغوستي وي.

## انحناءحرامه ده:

دستري مشي پرمهال يوچاته دخپل سرټيټولوته انحناء ويل کيږي.له رسول اللهﷺ څخه صحابه وپوښتنه وکړه چي کله موږله يوبل سره ستړي مشي کوونوخپل سرونه ورته ټيټوواوکنه؟نبي کريم ورته وفرمايل:نه.[۲]داحديث امام ترمذي راوړيدی بيايي ليکلي دي چي اسنادهذاالحديث اسنادصحيح.په مسند دامام احمدبن حنبل کي هم داحديث شته خوهغه وايي چي داحديث ضعيف دی اوعلامه ناصر الدين الباني ليکلي دي چي داحديث حسن دی.

په موږاحنافوکي علامه علي القاري په شرح دعين العلم کي ليکلي دي چي انحناءحرامه ده.نوموړی ليکلي دي چي كاد ان يكون كفرا.يعني کيدلای شي چي يوڅوک وربانذي کافرشي.همدارنګه ديرونوروکتابونوکي هم ليکلي دي چي انحناء حرامه ده منهم:نجم العلم شرح عين العلم للعلامه برهانپوري الحنفي،مجمع الا نهر،ملتقى الابحر،تعليق الصبيح وردالمحتار.[۳] خودلاسونودښکلولوليار ه انحناءڅه باک نه لري ځکه چي هلته له انحاءڅخه مقصود دلاسونومچوکول وي.

## دقيام الى الغير شرعي حکم:

قيام په څلورډوله دی:قيام عليه،قيام له،قيام بين يديه اوقيام اليه.قيام اليه هغه قيام ته ويل کيږي چي يومشرناست وي او محافظين ورته ولاړوي،يامشرهم ولاړوي اوساتونکي يې هم ولاړوي

---

۱- وكذاتقبيل المرأة المرأة عندالقاءاو وداع،وهذالوعن شهوة واما على وجه البراوالبرعندالكل.قال امام عيني بعدالكلام فعلم اباحه تقبيل اليدوالرجل ورأس والكشح كما علم من الاحاديث المتقدمه اباحتها على الجبهه،وبين العينين والشفتين على وجه المبرة والاكرام- ردالمحتار ۹/۶۲۷.

۲- عن انس بن مالك قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الرجل منايلقى اخاه اوصديقه اينحنى له ؟قال:لا جامع الترمذي ۲/۱۰۲.

۳- وقال شمس الائمه السرخسي:ان كان لغيرالله تعالى على وجه التعظيم كفر....وفي المحيط انه يكره الانحناءللسلطان وغيره ردالمحتار ۹/۶۳۲.

قیام له:هغه قیام ته ویل کیږي چې خلک په مجلس کې ناست وي یولوی شخصیت هغه مجلس ته ورشي؛تول خلک ورته ودریږي.قیام بین یدیه:هغه قیام ته ویل کیږي چې یوعزت مندشخصیت هم ولاړوي اوخلک هم ورته ولاړوي.

اوقیام الیه:هغه قیام ته ویل کیږي چې یولوی شخصیت راروان وي کله چې خلک هغه ووینې نوخلک ورته جیک شي او دهغه مخې ته ورشي.کذافي اعلاءالسنن للعلامه ظفراحمد العثماني په دی مسئله کې دعلماواختلاف دی چې داختلاف په یوه ارخ کې امام نووي دی نوموړي په دی اروندیوه رساله لیکلې ده هلته یې ددې مسئلې دثبوت لپاره احادیث راوړي بیایې لیکلي دي چې داځلورډوله قیام جوازلري.

اوداختلاف بل طرف ځلورتنه مانعین دي چې یوله هغوی څخه علامه امیرالحاج الشافعي دی نوموړي په کتاب المدخل کې دامام نووي په خبره ردکړیدی چې همدا رد علامه ابن حجرهم فتح الباري کې رانقل کړیدی؛امام نووي دبخاري شریف له یوه حدیث څخه استدلال کړیدی چې حضرت سعد ابن معاذنبي کریمﷺ له لوري امیروتاکل شونونبي کریمﷺ وفرمایل: قوموا الی سیدکم.[1]امام نووي لیکلي دي چې داحدیث دقیام له لپاره دلیل دی؛خوبیرته علامه امیرالحاج اوعلامه ابن حجرپه دي باندي ردکړیدی چې ردیې دمنلو وړدی،ځکه چې همداحدیث په مسند دامام احمدبن حنبل کې راوړل شویدي چې هلته یولفظ یکي زیات دی هغه داچې:قوموا الی سیدکم فنزلوه،هلته سعد ابن معاذتپي شوی وه له دی څخه څرګنده شوه چې هلته قیام دراکوزولوپه معنی سره وه.ددی حدیث سندهم صحیح دی.

امام نووي دقیام له لپاره دبخاري شریف له یوه بل حدیث څخه استدلال کړیدی چې حضرت مغیره ابن شعبه په جهاد کې درسول اللهﷺ شاته پیره داري کوله.[2]ددي لپاره مانعینوعلماوداسي خواب کړیدی چې داداکرام اوحفاظت لپاره وه؛خودا خواب ځکه ضعیف دی چې که دارام لپاره وه اوکه دحفاظت لپاره بیاخوهم قیام دی.

---

[1]- عن ابي سعيد ان اهل قريظة نزلوعلى حكم سعدفارسل النبي صلى الله عليه وسلم اليه فقال:قوموالى سيدكم-صحيح البخاري۲/۹۲۶-.

۲- وشهدالحديبية موكان واقفا يوم الصلح على رأس رسول الله صلى الله عليه وسلم بالسيف صلتا- البدايه والنهايه ترجمة المغيرة بن شعبه۸/۴۲۹-.

دقیام له لپاره امام نووي دبخاري اوترمذي له دی حدیث څخه استدلال کړی دی چی کله به بی بی فاطمه درسول اللهﷺ کورته ورتلله نوهلته به نبي کریمﷺ ورته جګیده[1]نوموړي لیکلي دي چي دادقیام له لپاره دلیل دی؛لنده داچي ددی ټولو دولونولپاره امام نووي دلائل وړاندی کړیدي خو هغه ټول علامه امیرالحاج بیرته ردکړیدي؛نوموړي دخپلی مدعی لپاره له یوه حدیث څخه استدلال کړیدي چی من سره ان یتمثل له الرجال قیاما فلیتبوء مقعده من النار.[2]ژباړه:نبي کریمﷺ که څوک داخوښوي چي زما لپاره دی خلک ودریږي نوده دخان لپاره په اورکي خای جوړکړ.

علامه امیرالحاج دقیام دمنعي لپاره له یوبل حدیث څخه هم استدلال کړیدي،چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي:لاتقوموا کمایقوم الاعاجم یعظم بعضها بعض.[3]بعضي له تاسوڅخه دبعضونوردتعظیم لپاره مه دریږي لکه عجموکي چي عادت دی. واړولوړیوڅخه احادیث په دلیل کی راوړل شویدي، بیاخینو نوروعلماوددی احادیثوترمینځ تطبیق کړیدی؛په موږ احنافوکي علامه علي القاري په شرح دعین العلم کي لیکلي دي چي دهغه چالپاره قیام ناروادی چي هغه له خلکوڅخه ددریدلوتقاضا لري؛اوکه دچاپه زړه کي دا نه وي چي خلک دی دهغه داکرام لپاره ودریږي بیاهغه ته دریدل څه باک نه لري.علامه عیني په عمدة القاري کی لیکلي دي چي که یوڅوک کبرجن وي ددی تقاضاکوي چي ماته دی خلک ودریږي،دهغه لپاره دریدل جوازنه لري؛بل دول قیام مکروه دی هغه داچي یوڅوک مجلس ته راشي یاڅوک له سفرڅخه راوګرځي اودایي په زړه کي نه وي چي خلک دی ورته پورته شي خوچي کله خلک ورته نودده په زړه کي څه غرورپیداشي داډول قیام مکروه دی؛بل دول قیام هغه دی چي دچاپه زړه کي هم دانه راځي چي زما لپاره دی خلک پورته شي اوکه خلک ورته پورته شي بیاهم دده په زړه کي غرورنه راځي داډول قیام جوازلري؛اوبل ډول قیام هغه دی چي یوعالم مجلس ته راشي یاڅوک له سفرڅخه راوګرځي دهغه لپاره پورته کیدل مستحب دي.

علامه ظفراحمدعثماني اعلاءالسنن کي دعلامه امیرالحاج خبره تأییدکړیده نوموړي لیکلي دي چي داپه عرف کي یورواج ګرځیدلی دی څکه پورته کیدل بنه ندي.خودنړی محققین علماءوایي چي کوم حدیثونه دمنعي راغلي دي له هغوڅخه هغه قیام مراد دی چي یوڅوک یي تقاضا لري؛اوکه دچاپه زړه

---

[1] - عن عائشة ام المؤمنین قالت:مارأیت احد اشبه سمتا ولاهدیا برسول الله فقیاما وقعودها من فاطمه بنت رسول الله قالت وکانت اذادخلت علی النبي صلی الله علیه سلم قام الیها فقبلها واجلسها في مجلسه-جامع الترمذي۲/۳۲۲۶-.

[2] - جامع الترمذي ابواب الاداب باب ماجاءفي کراهیة قیام الرجل للرجل۲/۱۰۲-.

[3] - عن ابي امامه قال:خرج رسول الله متکا علی عصی فقمناله فقال:لاتقوموا کمایقوم الاعاجم یعظم بعضها بعض-مشکاة المصابیح۲/۴۰۳-.

کي دانه وي چي خلک دی دهغه لپاره ودریږي دهغه لپاره پورته کیدل جوازلري.کذافي بذل المجهود،تحفة الاحوذي،نجم العلم،فتح الباري،تلخیص الحبیر وایضافي ردالمحتار [۱]

حینی علماءوایي چي بودتعظیم لپاره قیام کول دي اوبل داکرام لپاره پورته کیدل دي،دتعظیم لپاره قیام کول جوازنه لري اوداکرام لپاره پورته کیدل جوازلري.کذافي احیاءعلوم الدین اوقیام في المولودهم ناروادی،دهندوستان په هیوادکي داسي عادت دی چي دنبي کریمﷺ دمولودپه لمانځونده کي بودم تول خلک پورته شي چي نبي کریمﷺ راغی؛په دي اروند علامه ابن حجرفتح الباري کي لیکلي اوعلامه ظفراحمداعلاءالسنن کي لیکلي دي چي دادول قیام شرعاجوازنه لري.

# دنومونوبیان.

په یوه حدیث شریف کي راځي چي:احب الاسماء الی الله عبدالله وعبدالرحمن.[۲]یعني ترټولوغوره نومونه عبدالله اوعبد الرحمن دي،په دی ټول علماءمتفق دي چي په هغونومونوکي چي په سرکي یې عبد راځي په هغوټولوکي غوره نوم عبد الله دی؛په صحابه وکي کي هم عبدالله نومي صحابه زیات وه په نسبت سره نو- ونومونوته؛خو کله چي مطلق عبدالله ذکرشي له هغه څخه حضرت عبدالله ابن مسعودمرادوي.

علامه شامي لیکلي دي په هغونومونوکي چي عبد راځي په هغوکي غوره نومونه عبدالله اوعبدالرحمن دي؛خوله دي څخه هم محمداواحمدنومونه ډیرغوره دي ځکه چي الله تعالی خپل پیغمبرﷺته هغه نومونه غوره کوم چي الله تعالی ته ډیر محبوب وي.[۳]

داکثروعلماورایه داده چي په ټولونومونوکي غوره نومونه عبدالله اوعبدالرحمن دي،نه یواځي دادواړه نومونه بلکه ټول هغه نومونه چي عبدپکي راځي؛په احادیثوکږی هم ددي ثبوت راغلی دی.علامه مناوي دترمذي په شرحه کي لیکلي دي چي دملکوترمینځ دنبي کریمﷺ نوم عبدالحمید دی،په عرش کي درسول اللهﷺ نوم عبدالمجید دی اودمرغانوترمینځ دنبي کریمﷺ نوم عبدالغفاردی.

---

[۱]- القیام لغیره لیس بمکروه لعینه،انما المکروه محبت القیام لمن یقام له،فان قام لمن لایقام له لایکره-ردالمحتار۹/۶۳۳-.

[۲]- جامع الترمذي۲/۱۱۰-.

[۳]- ویلحق بهذین الاسمین،ای عبدالله وعبدالرحمن ماکان مثلهاکعبدالرحیم وعبدالملک،وتفضیل التسمیة بها محمول علی من ارادتسمي بالعبودیة؛لانهم کانویسمون عبد الشمس وعبد الدار،فلاینافي ان اسم محمدواحمداحب الی الله من جمیع الاسماء فانه لم یختزلنبیه الاماهواحب الیه،هذاهوالصواب-ردالمحتار۹/۶۸۸-.

## درسول اللهﷺ نوم اوکنیه:

په یوه حدیث شریف کې راځي چې نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې:تاسي زمانوم اوکنیه دواړه په یوه سري باندې مه ږدی.[1] دبیلګي په توګه:چې دیوچانوم محمدوي اوکنیه یې ابوالقاسم وي؛له دی څخه نبي کریمﷺ منعه کړیده.

درسول اللهﷺ څلورکُنیې وی:ابوالمساکین،ابوالارامل،ابوالقاسم اوابوابراهیم.تردی زیاتی هم شته خواکثره علماوهمداڅلور ذکرکړیدي په دی ټولوکي مشهوره کنیه ابوالقاسم وه.یوبل حدیث کي راځي چې نبي کریمﷺ فرمایلي دي:سموباسمی ولاتکنوبکنیتي.[2]یعني تاسي زمانوږدي خوزماکنیه مه ږدی.

په دی مسئله کي دعلماومختلف اقوال نقل شویدي خوصحیح خبره داده چې اوس مهال دنبي کریمﷺ نوم اوکنیه کیښودل جوازلري څکه چې داحکم دنبي کریمﷺ ترژوندپوری ترلی وه.اوبل داچې کراهیت علماوتنزیهي بللی دي،دیروصحابه و په خپلوزامنوباندي محمدنوم ایښی وه اوکنیې یې هم اباالقاسم وي؛چې یوله هغوڅخه محمدابن علي ابن ابي طالب وه،اسم کنیه یې هم اباالقاسم وه،نوموړی دحضرت علي دبلي ښځې زوی وه چې هغه حنفیه نومیده،څکه ورته محمدابن حنیفه وایی. بل دحضرت سعدابن ابي وقاص من العشرة المبشره هم یوزوي محمدنومیده چې کنیه یې هم ابوالقاسم وه.بل دحضرت طلحه ابن عبدالله المجاهدالکبیرهم یوزوی محمدنومیده،کنیه یې هم ابوالقاسم وه.اودحضرت ابي بکرالصدیق هم یوزوی محمد نومیده اوکنیه یي ابوالقاسم وه.کذاقال علامه ابن قیم في کتابه التحفة المودود،وعلامه ابن حجرفي کتابه الاصابه في التمیز الصحابه، وفتوحات مکیه علی اذکارالنوویه وایضافي فتح الباري للعلامه عسقلاني.

## آیادپیغمبرانواوپربښتونومونه کیښودل جوازلري؟:

دانبیاونومونه کیښودل جوازلري،سره له دی چې په دی اړوند دعلماومختلف اقوال دي خوداکثرو علماورایه داده چې دپیغمبرانونومونه کیښودل جوازلري.کذافي تحفة المودود للعلامه ابن قیم.

---

[1] - عن ابي هریره ان النبي صلی الله علیه وسلم نهی ان یجمع احدبین اسمه وکنیته ویسمی محمدا اباالقاسم جامع الترمذي۲/۱۱۱-.

[2] - صحیح البخاري کتاب العلم- ۱/۲۱.

خودپربنتو (ملانکو) دنومونوپه اروندعلماءدوه تونې دي؛علامه ابن قیم وايي چې دپربنتونومونه کیښودل جوازنه لري.خو اکثره علما وايي چې دپربنتونومونه کیښودل هم جوازلري.کذافي تحفة المحتاج للعلامه ابن حجر الهیثمي وفتوحات الربانیه للعلامه ابن علان.

## هغه نومونه چې کیښودل یې نه دي جائز:

هغه نوم چې په قرانکریم اوحدیثوکي وي،نه دپیغمبرانوپه نومونوکي وي اونه په اسلام کې نچلوي؛غوره داده چې دادول نوم کینښودل شي.کذافي فتاوای تاتارخانیه،والفقه الحنفي في ثوبه الجدید وردالمحتار.[١]
دقرانکریم دصورتونونومونه کیښودل هم ناروادي؛همدارنګه دکافرانواوشیطانانونومونه کیښودل هم ناجائزدي.کذافي تحفة المودود للعلامه ابن قیم.دعبدالرسول اوعبدالنبي نوم کیښودل هم جوازنه لري خکه چې دلته شاعبه دشرک راخي که څوک وایي چې مونږمجازي معنی ورڅخه مرادو،بیاهم له شک څخه خبره نه وځي.په بخاري شریف کې حدیث دی نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې:دع مایریبک الی مایریبک.[٢]دیروعلماو دامسئله لیکلي ده منهم:علامه شامي،علامه علی القاري،علامه عبدالحمید محمودطهمان وعلامه ابن قیم.

اوداسې نوم کیښودل هم جوازنه لري چې دهغه په واسطه تزکیه دنفس راځي،دبیلګې په ډول محي الدین،محي الاسلام یاداسې نور..کذافي ردالمحتاروبریقه.[٣]دادول نومونه که ناجائزنشي خلاف الولی خودي نوغوره داده چې دادول نومونه کینښودل شي.

شهاب نوم کیښودل هم ندي جائزادب المفرد دامام بخاري کې لیکلي دي چې یوسړی شهاب نومیده نبي کریمﷺ دهغه نوم په هشام بدل کړ.[٤]علامه علي القاري میرقاة کې لیکلي دي اوعلامه نووي کتاب الاذکارکې لیکلي دي چې شهاب نوم کیښودل جوازنه لري خوکه شهاب الدین شي بیا جوازلري.

## ماشوم باندې نوم کیښودل:

دولادت په لومړی ورځ باندې هم نوم کیښودل جوازلري،خوعلماولیکلي دي چې ومه ورځ مستحسنه ده.[١]کذافي تحفة الاحوذي وفتح الباري.

---

١- التسمیة باسم لم یذکره الله تعالی في عباده ولاذکره رسوله ولایستعمله المسلمون تکلموفیه،الاولی ان لایفعل۹/۶۸۹-.
٢- صحیح البخاري کتاب البیوع باب المشتبهات۱/۲۷۵-.
٣- ولایهافیه تزکیه المنع عن نحومحي الدین وشمس الدین مع مافیه من الکذب – ردالمحتار ۶۹۰-۹/۶۸۹-.
٤-عن عائشة ان النبي صلی الله علیه وسلم کان یغیراسم القبیح-جامع الترمذي۲/۱۱۱-.

لویه مسئله داده چې هم نوم یکیښودل کیږي به دې شرط چې د مور په خیټه کې به زوی شوی وي.[1] مسئله هغه ماشوم ته ویل کیږي چې وزاندې له مودې مخکې پیدا شي کذافي ردالمحتار وفتاوی تاترخانیه والمحیط البرهاني. اوکه له مورخخه په داسې حالت کې پیدا شي چې ژوندی وي بیا وروسته علامې ښکاره شي نو هغه ماشوم باندې به جنازه هم کیږي نوم به هم ورباندې ږدي او وروسته تر هغه به یې نور کیږي مخکې چې ښخ کړی شي به دې باندې امر کیږي.

## زوی به خپل پلارپه خپل نوم نه یادوي

زوی به خپل پلار او ښځه به خپل میړه په خپل نوم نه یادوي به القابو به یې یادوي کما هو العادت في زمانین علامه لکوي په نفع المفتي کې لیکلي دي چې داکه مشهوره ده چې کومه ښځه خپل میړه په خپل نوم یادوي نو هغه عمر کمیږي دا خبره څه اصل نه لري خوغوره او ادب داده چې ښځه به خپل میړه په خپل نوم نه یادوي په القابو به یې یادوي کذافي ردالمحتار وطحطاوي علی الدرالمختار وفتاوی هندیه ونفع المفتي للعلامه عبدالحي لکنوي.[2] او ښځه چې میړه به هم په مجلس کې د خپلې ښځې نوم نه یادوي.

## دنوم اهانت کول:

که څوک نوم عبدالرحمن یا عبدالرحیم وي، هغه ته که څوک قصداً رحیمي ووایي په دې باندې دا قائل کافر کیږي کما هو العادت فینا کذافي ردالمحتار والفقه الحنفي في ثوبه الجدید وطحطاوي علی الدر المختار، وفتاوی تاترخانیه وایضاً المحیط البرهاني.

حتی چې علماو لیکلي دي چې شاید عجم له مره دانول نومونه کیږدي څکه چې هغوی تصغیر یکي کوي او علامه شامي لیکلي دي چې خلک دې دانول نومونه ږدي خو علما دې نور خلک بوی کړي چې تصغیر یکي ونکړي څکه چې دا کفر دی.[4]

## اسم کنیه په اسلام کې جوازلري:

که نجاز من وي نو شاید چې نخپل مشرزوی په نوم باندې خپل ځان مکنی کړي لکه څرنګه چې توکه: ابوالقاسم د رسول الله ﷺ مشرزوی وه. او که نجازوی نه وي هغه هم په ځان باندې اسم کنیه

---

[1] عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان النبي صلى الله عليه وسلم امر بتسمية المولود يوم السابع جامع الترمذي ۲/۱۱۰

[2] انا ولملاحكم ولملات فلايدفنه حتى يسبه ان كان ذكراباسم الذكر وان كان انثى فباسم انثى. ردالمحتار ۹/۶۸۹

[3] (ويكره ان يدعو الرجل اباه وان تدعو المرأة زوجها باسمه) بل لابد من لفظ يفيد التعظيم كياسيدي ونحوه ردالمحتار ۹/۶۹۰

[4] وهذا مشتهر في زماننا حيث ينادون من اسمه عبدالرحيم وعبدالكريم وعبدالعزيز مثلا فيقولون رحيم وكريم وعزيز بتشديد ياء التصغير ومن اسمه عبدالقادر قويدر وهذا مع قصده كفر... وان لم يعرف ماتقول ولاقصده لم يحكم بكفره ومن سمع منه ذالك يحق عليه ان يعلمه. ردالمحتار ۹/۶۸۹

کیبنودلای شي،زوی درلودل شرط ندي؛بخاري شریف کي یوحدیث راحي چې دحضرت انس ابن مال بو وړوکی وروروه دهغه مرغی مره شوی وه؛نبي کریم هغه ته وفرمایل: یا اباعمیر مافعل النغیر (۱)

اوښخي لپاره هم اسم کنیه جائزه ده؛همدارنګه که چاواده نه وي کړی هغه هم خان مکنی کولای شي؛اوداهم نده ضروري چې خامخا به په زوی باندی خان مکني کوي له هرشي سره چې دچا ډیر مناسبت وي په هغه باندی خپل خان مکني کولای شي دبیلګی په توګه ابي هریره یعنی دپیشوګانو پلار،دحضرت ابي هریره له پیشوګانوسره ډیره جوړه وه ځکه په همدی باندي نبي کریمﷺ مکني کړ.یالکه ابوالجراد زمونږیو وروردی دهغه په کوچني توب کی له ملخانوسره ډیره جوړه وه اوس یې کنیه همدا ابوالجراد ده.

## دنبي کریمﷺ مبارک نومونه:

علامه ابن العربي په عرضة الاحوذي کی لیکلي دي چې دنبي کریمﷺ زرنومونه دي،خوتول یې ندی ذکرکړی.علامه سیوطي درسول اللهﷺ دنومونولپاره ځانګړی کتاب جوړکړی چې نوم یې دی الریاض الانیفه في اسماءخیرالخلیقه هلته له پنځوسوځخه زیات دنبي کریم نومونه راغوند کړیدی. علامه زرقاني هم په المواهب الدینیه کی همداپنځه سوه نومونه راوړیدي. سبل الهدای والرشادکی علامه صالحي دنبي کریمﷺ ترپنځوسوزیات نومونه ذکرکړیدی.خوعلامه موسی خان بازي په خپل کتاب الفتوحات مکیه کی دنبي کریمﷺاته سوه اوڅلورنومونه ذکرکړیدي.

په تورات کي دنبي کریم نوم موزموزیاملدماد دی،اوپه انجیل کی دنبي کریمﷺ نوم فارقلیط دی.بیاپه دی کی هم دعلماواختلاف دی چې درسول اللهﷺ اصل نوم احمد دي اوکه محمد؟په دي اړوندعلامه ابن قیم لیکلي دي چې درسول اللهﷺ اصلي نوم احمد دی؛خواکثره علماءوایي چې دنبي کریمﷺ اصلي نوم محمد دی.

له رسول اللهﷺ ځخه وړاندي څلورمحمدنومي خلک تیرشویدي،چې هغوی دتورات علماءوه،په تورات کي یې لیدلي وي چې دمحمدپه نوم به یوسړی راځي هغه به دآخري زماني پیغمبروي،کله چې هغه علامي رانږدی شوي نوخلکوبه په خپلوزا منومحمدنوم کیښوده چې کیدلای شي زمازوی پیغمبرشي.خیني علماوایي چې له نبي کریمﷺ ځخه وړاندي څلورتنه محمدنومي خلک تیرشویدی خوصحیح خبره داده چې درویشت کسان له رسواللهﷺ ځخه وړاندی په دي نوم مسمی وه.بیاچې کله نبي کریمﷺ دنیاته راغي محمدنوم وړباندی کیښودل شواوله رسول الله ځخه روسته لومړی محمدنومي سړی محمدابن حاطب صحابي وه.

---

۱- عن انس قال:کان النبي صلی الله علیه وسلم احسن الناس خلقاًوکان لي اخ یقال له ابوعمیرقال:احسبه فطیم وکان اذاجاء قال:یا اباعمیرمافعل النغیر -صحیح البخاري۲/۹۱۵-.

اوبل داچې محمدپه اعتبار دعلم دادبیاتودعربي سره ډېره نادره صیغه ده،محمدیعنې ځوک محمودکړل شوی مرۀبعداخری ستایل شوی ستایل شوي الخ اوداحمدمعنی ده ډیرحمدویونکی نبي کریمﷺ ډیرحمدویونکی هم وه.

یادونه:دملا معنی ده ډک کړل شوي عالم ته ځکه ملا وایي چې هغه له علم څخه ډک وي،ملا مشددویل کیږي؛یاخوداصیغه دمبالغې ده اویاهم داسم مفعول.

## دشعرونوبیان.

شعرهغه کلام ته ویل کیږی چې هغه موزون وي،دشعرلپاره په لومړي باندی خل خلیل ابن احمد دسبویه استادقواعدی وضعه کړیدي؛دخلیل ابن احمدپه نوم په نړی کی شپږتنه مشهور علما تیر شویدي؛دغه خلیل ابن احمد چې دسبویه استاد دی یوه ورځ په یوه بازارکي تیریده،هلته اهنګردیکی جوړول دهغه سوټک داسی آوازکاوه؛ټنګ،ټونګ اوټینګ.نوموړي چې کله داغږ واوریده له خان سره یي فکروکړچې داخوهم یوعلم ده یوڅه معنی خوځامخالري ددی په واشطه یي دعروضوعلم راپیداکړ اودشعرلپاره یي قواعدي وضعه کړی.

نوموړي ته الله تعالی دومره زیات مهارت ورکړی وه چې یو وخت کي یوطبیب وه هغه به ډیره مفیده دواجوړوله،کله چې هغه طبیب وفات شوهغه نسخه یي هم له خلکوڅخه ورکه شوه؛خلکوخلیل ابن احمدته وویل چې څه وکړونوموړی ورته وویل:چې هغه هاونګ ماته راوړی کوم کی به چې هغه طبیب دواټکوله،خلکو هغه هاونګ ده ته راوړنوموړي به چې کله هغه هاونګ بوی کړویل به چې په دي داشي دي،بیابه یي بوی کړویل به یي چې په دی کي داشی دي تردی چې په هغه نسخه کی شپارس ترکیبي اجزاء وه پنځلس یي په بوی باندی پیداکړل؛بیایو وخت کی هغه نسخه هم پیداشوه خلکوچې هغه نسخه وکتله یوشی پکي کم وه نورټول سره برابروه،دومره زیات مهارت الله تعالی ورکړی وه.علامه موسی خان بازي داحکایت په خپل کتاب غمض العیون والبصائرکی ذکرکړیدی.

بیاپه هریوه شعرکی خانګړي وزنونه دي،یواځي په رباعي کي چې مونږڅلوریزه ورته وایولس زره قواعدي دي.اوخپله شعرلذاته حرام ندی حرمت چې پکي راځي هغه دغیرله وجهی وي.کذاقال علامه ابن حجرفي فتح الباري وعلامه ابن العربي في احکام القرآن.

# خینې وختونه د شعر زده کول فرض کفایي دي

علامه شامي ردالمحتار کې لیکلي دي چې د محاضراتو ترمنځ اشعار زده کول فرض کفایي دي ځکه چې
د هغو اشعارو په واسطه د قرآنکریم او احادیثو معنی په پوره توګه زده کیږي.[1] اسکې په ډول علم د غریب
الحدیث چې هغه د حدیثونو د لغتونو شرح کوي او داسې د محاضراتو ترمنځ په اشعارو پوهیدل لپاره چې
د قرآنکریم او احادیثو په صحیح معنی باندې پوی شو، د محاضراتو ترمنځ اشعار زده کول فرض کفایي دي
بل ډول شعر مستحب او مندوب دی، هغه داچې په هغه شعر کې د اسلام ستاینه کیږي، د قرآنکریم ستاینه
کیږي، د نبي کریم ﷺ ستاینه کیږي او د هغه په واسطه خلک جهاد ته هڅول کیږي، داډول شعر ته
باوېل مستحب دي. کما قال علامه ابن حجر وایضا کتبه في تفسیر القرطبي

بل ډول شعر حرام دی هغه داچې په هغه شعر کې د ښځو د محاسنو ستاینه کیږي، د هلکانو ستاینه کیږي
او د هغو شیانو ستاینه کیږي چې هغه حرام دي، داډول شعر په اسلام کې جواز نه لري.

اوبل ډول شعر مکروه دی، هغه داچې څوک شعر کسب وګرځوي د هغه په واسطه خپل ځان لپاره رزق
حاصلوي، داډول شعر مکروه دی. ادب المفرد امام بخاري کې په دې اړوند ځانګړی باب ذکر شوی دی
هلته یې لیکلي دي چې حسنه حسن وقبیحه قبیح، ددې خبرې د ثبوت لپاره یې احادیث هم راوړي دي.[2]

## شاعرته عطیه

خلکو کې عادت دی چې کله یو شاعر شعر ووایي بیا خلک هغه ته روپۍ ورکوي، داډول ګرانه په
احادیثو کې هم ثبوت لري. او که شاعر داسې یو څوک وي چې د خلکو په عفت او عزت باندې تېری
هغه ته خلک ددې لپاره روپۍ ورکړي چې د هغه له ضرر څخه په امن شي داهم جواز لري.[3] خو په
دې صورت کې بیا شاعر ته اخیستل حرام دي ځکه چې داهم یو ډول رشوت دی. کما قال علامه شامي

---

1- ومعرفة شعرهم رواية ودراية عند الفقهاء الاسلام فرض كفاية، لانه به تثبت قواعد العربية التي بها يعلم الكتاب والسنة المتوقف على معرفتهما الاحكام التي تتميز بها الحلال والحرام. رد المحتار ١/١١٥.

2- عن عبدالله بن عمرو قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الشعر بمنزلة الكلام، حسنه كحسن الكلام، وقبيحه كقبيح الكلام. الادب المفرد ٢٩٩/١، رقم الحديث ٨٦٥.

3- وفيه ايضا دفع المال للسلطان الجائر لدفع الظلم عن نفسه وماله ولاستخراج حق له ليس برشوة يعني في حق الدافع (كان يعطي الشعراء) فقد روى الخطابي في غريبه عن عكرمة مرسلا قال اتى الشاعر النبي صلى الله عليه وسلم فقال يا بلال اقطع لسانه عني فاعطاه اربعين درهما. رواه ابن عساكر في تاريخه عن ابن عباس. رد المحتار ٩/٦٩٩.

اوقرانكريم كى چي كوم منظوم كلامونه راغلى دي هغه خوغيراختياري هم نشي كيدلاى خكه چي له ارادي پرته هيڅ شي نه صادريږي؟ددي لپاره په نسيم الرياض اوعيون الناضره كتابونوكى داسي خواب شويدى چي يومقصوداولى ده اوبل مقصود ثاني ده؛په شعر كي لومړني مقصود شعروي اوپه قرانكريم كي لومړني مقصودشعرنه بلكه وعظ دى الله تعالى چي قرانكريم نازل كړيدى مقصوداولى پكي نظم نده نظم په قرانكريم كي مقصودثانوي دى.

## خيني وختونه بيان ډيرمؤثروي:

يوه حديث شريف كي راځي چي:ان من البيان لسحرا.[1]يعني خيني وختونه بيان دجادوپه څيروي.امام غزالي په احياءعلوم الدين كي ليكلي دي چي يو وخت حضرت داود عليه السلام خپل قوم ته دزبورتلاوت كاوه،كوم مجلس كى چي داتلاوت كيده له هغه مجلس څخه پرله پسي جنازى پورته كيدلى خكه چي سماع څخه متاثرشوى وه.

عوارف المعارف دعلامه سهروردي كي ليكلي دي چي يو وخت كي ديرش زره كسان له حضرت داود عليه السلام سره يوه مجلس ته ددي لپاره تللي وه چي له هغه څخه دزبورتلاوت واوري،كله چي مجلس پاى ته ورسيد لس زره جنازي له دي مجلس څخه حضرت داود عليه السلام له خان سره بيرته يوورلى.او وخت كي يوه جومات سماع اوريدل كيدله ذهغي سماع له وجي دهغه جومات قنديلونه راپريوتل،نوكله ناكله په غيرذي روح شي باندي هم سماع تاثيركوي.

اويو وخت كي په يوه خاى كي سماع اوريدل كيدله هلته په يوه ونه كي يوه مرغى ناسته وه،هغې سماع په مرغى باندى دومره تاثيروكرچي له ونى څخه لاندي وغورځيده له خولي اوپوزى څخه يي وينى روانى شوي اومره شوه.خيني وختونه سماع په مرغانوهم تاثيركوي.

## دنبي كريم صلى الله عليه وسلم مشهورشاعران:

نبي كريم صلى الله عليه وسلم تردوه نيم سوه زيات شاعران وه،خوپه هغوى كي څلورتنه ترنوروزيات مشهوردي،چي دهغوى نومونه په دي ډول دي:حضرت حسان ابن ثابت،حضرت كعب ابن مالك،حضرت عبدالله ابن رواحه اوحضرت لبيدابن ربيعه العامري رضى الله عنهم.

---

[1] - عن عبدالله ابن عمرانه قال:قدم رجلان من المشرق فخطبافعجب الناس لبيانهافقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان من البيان لسحراوان ابغض البيان سحر-صحيح البخاري۲/۸۵۸-.

# دغيبت بيان.

دغيبت کول هم له لويوګناهونوڅخه شميرل کيږي؛کله چې څوک ديوچابدي بيانوي هغه که دهغه په بدن کې وي يادهغه په کاليوکې وي ياهم دهغه په اخلاقوکې وي اويادهغه په بل شي کې وي دی ته غيبت ويل کيږي؛لنده داچې ديوه مسلمان بدي بيانولوته دهغه په غياب کې چې هغه بدي په هغه کې موجوده وي غيبت ويل کيږي.اوکه هغه بدي په هغه کې نه وي موجوده هغه ته بيابهتان ويل کيږي چې داهم لويه ګناه ده.

خوپه شپږوځايونوکې دغيبت کول جوازلري،لومړی داچې کله چې يوڅوک يوچاته دظلم اظهارکوي دبيلګې په ډول يوڅوک په چاباندې ظلم کوي بياکله چې دامظلوم دوخت حاکم ته ورشي هغه ته دخپل تظلم اظهارکوي په دې وخت کې دده لپاره دهغه ظالم غيبت جائزدی.

دويم داچې کله يوڅوک له يومنکرڅخه منعه کوي،دبيلګې په توګه:په يوه ځای کې يوڅوک بدکارياغل وي ددی سيمې خلک يوبل ته ووايي چې هغه فلانکی خوډيربدکارياغل دی که مونږاوتاسويي مخنوی ونه کړونوکيدلای شي چې خلکوته يې ډيرضررورسيږي په دې صورت کې هم ددې يادشوي کس غيبت جوازلري.

دريم داچې استفتاءپرمهال هم غيبت جائزدی،دبيلګې په توګه:يوڅوک يوه مفتي ته ورشي ديوچاپه اروندله هغه څخه فتوی غواړي هلته که مفتي ته دهغه غيبت وکړی داهم جوازلري؛لکه هنده دابوسفيان ښځه رسول اللهﷺ ته راغله له هغه څخه يې پوښتنه وکړه چې ميړه مې ډيربخيل دی مونږته دومره شي نه راکوي چې په هغه زمونږګزاره وشي آيادهغه له اجازې پرته زه کولای شم چې دهغه له مال څخه کوم شی راواخلم؟.[1]دلته هندې دافتاءپرمهال نبي کريمﷺ ته دخپل ميړه غيبت وکړ،نودافتاءپرمهال هم دغيبت کول جوازلري.

څلورم داچې دتحذيرپه حالت کې هم غيبت جائزدی،دبيلګې په توګه:يوسړی بدعتي وي که څوک دهغه غيبت ددې لپاره وکړی چې خلک له هغه څخه منعه کړي په دې صورت کې هم غيبت جائزدی.

---

[1] - عن عائشة ان هندا بنت عتبه قالت يارسول الله ان ابا سفين رجل شحيح وليس يعطيني مايكفيني وولدي الاماأخذت منه وهولايعلم فقال:خذي مايكفيك وولدک بالمعروف- صحيح البخاري٨٠٨/٢-.

پنځم داچي د مجاهر غیبت هم جوازلري،دبیلګي په توګه:یوڅوک په ځرګند ډول فسق اوګناه کوي تولوخلکوته ښه معلوم وي چي فاسق انسان دی دهغه غیبت هم جوازلري.

اوشپږم دتعریف لپاره هم غیبت جوازلري،کله چي یوڅوک دچاپیژندګلوی کوي نوهغه ترهغوپوری نشي پیژندلای چي دهغه غیبت ونشي،دبیلګي په توګه:یوڅوک چاته ووایي چي عمر پیژنی؟هغه ورته ووایي کوم عمریادوی؟نودی ورته ووایي چي ولی هغه چوغی عمریادوم چي تنکي تنکي سترګی یی دي.داهم غیبت دی خودادول غیبت ځکه جوازلري چي په دی سره تعریف راځي.په دی شپږو صورتونوکي دغیبت کول جوازلري.کذافي رفع الریبه في مایجوزمن الغیبه للعلامه شوکاني، وکتاب الاذکارللعلامه نووي واحیاءعلوم الدین للعلامه غزالي.دلاښه تحقیق لپاره الرفع والتکمیل في الجرح والتعدیل دعلامه عبدالحی الکنوي ته مراجعه وکړی.

## دمحبت بیان.

حسن حلاج په نړی کي یوعالم تیرشوی،نوموړی به چي په جزبه شو،الهي مینه به پری غالبه شوه؛خپل ځان ته به یي اشاره کوله او ویل به یي مافي الجبة الاالله.یعنی په دی چپنه کي پرته له الله تعالی څخه بل څوک نشته.اوخپني وختونه به یي داسی ویل چي:سبحاني ما اعظم شاني.اصل کي خوبي باید داسي ویلي وي چي:سبحانک ما اعظم شانک یا سبحانه ما اعظم شانه.خوده به خپل ځان ته اشاره کوله؛ددنیاعلماوپه ده باندي فتوی ورکړه چي چي دی دي قتل کړای شي.بالاخره یی نوموړی په داربانديي کړکومه وینه چي له هغه څخه په ځمکه باندي تویي شوه په هغي باندي ولیکل شوچي: الله، الله جل جلاله.وروسته تردي علماءپوی شول چي مونږپه ناحقه فتوی ورکړیده؛نوعشق اومینه کله ناکله داسي مرتبي ته هم رسیږي لکه یوشاعر وایي چي:

من توشدم تومن شدی ؛ که بعد ازین کس نگویدتودیګر ی من دیګر م .

جامع کرامات الاولیاءکي یوحکایت لیکلي چي یو وخت کي یولوی ولي الله چاپه شهادت باندي ورساوه،دهغه له سرڅخه چي کومي ویني والوتي په هغه باندي ولیکل شوچي:لااله الاالله محمدرسول الله.عربي کي یوه مقوله ده چي کل اناءیترشح بمافیه.یعني له لوښي څخه هغه شی ځاځي کوم چی پکي وي.

# په مینه کې نادري:

یو وخت کې بي بي زلیخا بنکر ولړاوه،کله یې چې وینه په خمکه باندې پریوته ورباندې ولیکل شوچې:یوسف،یوسف. دحضرت یوسف مینې په زلیخا باندې دومره تأثیرکړی وه چې دزلیخا وینه هم یوسف گرخیدلې وه؛روحه روحي وروحي روحه من رأی روحین حلا فی البدن.کله چې څوک دحقیقي عاشقانوکیسې وگوري نودانسان عقل حیرانوي.

علامه ابن جوزي په اخبارالنساء کتاب کې لیکلي دي چې دمازندران دخلکوداسې عادت وه،چې کله به دکومې جیلۍ اوهلک ترمینځ مینه راغله،بیابه یې هغه محابین ازمویل یوکال به یې دوی دواړه سره یوځای کړل بیابه یې جیلۍ دطبي معایناتو لاندې راوستله چې آیا له دې جیلۍ سره کوروالی شویدی اوکنه؟ کله به چې په دې ازموینه کې بریالي شول بیابه یې ددوی ترمینځ واده کاوه.په هغه زمانه کې له مینې څخه مقصودجماع کول نه وه،له مینې څخه مقصود دجانان سره ملاقات کول وه.

علامه ابن جوزی په دې خپل کتاب کې داهم لیکلي.دي چې پخوادعربوپه په زمانه کې یوسړی دخپل وروروپه ښځه باندې مین شوی وه،خوهغه دومره حیاناک انسان وه چې هیڅوک یې هم په دې نه وه خبرکړي چې زه په چامین یم،دیرزیات علاجونه یې ورباندې وکړل خوهغه نه روغیده،آن تردې چې دمرگ حالت ته نږدې شو؛دهغې زماني لوی ډاکتریې ورته راوست هغه چې دده څومره معاینه وکړله هیڅ ناروغي یې پکې ونه موندله.بالآخره داکتروویل:چې کیدلای شي داسړی مین وی دهغه دکور ولاته یې وویل:چې ستاسې په کورکې چې څومره خلک ژوندکوي دهغوتولونومونه ماته راکړی؛ ناروغ په کټ باندې پروت وه،داکتردهغه دکورني داوسیدونکونومونه اخیستل کله یې چې دهغه دورینداري نوم واخیست ناروغ خپلې سترگي وغړولې،داکترورباندې پوی شوچې دخپل وروروپه ښځه باندې مین دی؛چونکه مین غیراختیاري وي نوغوره داده چې په کورکې ستراوپرده وشي.

علامه محي الدین ابن عربي لیکلي دي چې کله ناکله مینه داسې مرتبې ته ورسیږي چې انسان ورته حیرانیږي،نوموړي په خپلودوکتابونوالرسالةالقشیریه اوفتوحات مکیه کې لیکلي دي چې سمنون په نړۍ کې یولوی عالم تیرشوی نوموړی یو وخت کې په ممبرباندې ناست وه خلکوته یې وعظ کاوه،په دې خپل وعظ کې یې دعشق اومحبت بیان کاوه،په هغه جومات کې قندیلونه وه دده بیان په هغوقندیلونوباندې هم اثروکړهغه تول راپریوتل اومات شو.

# دمجنون ابن عامرحکایت:

انوارالقدسیه کتاب کې لیکلي دي چې یوخت کې دمجنون په زړه کې دلیلی دفراق اوربل شوی وه،دومره زیات حرارت پکې پیداشوی وه چې خلکوبه یخې راوړل اودده په زړه باندی به یې کیښودل خوبیاهم هغه حرارت نه کمیده،خلکو وویل:چې لیلی ته خبروکړی چې دمجنون ماشین گرم شویدی هسې نه چې اوروا‌خلي کله چې لیلی راغله خلکو یوبل ته وویل:چې تاسې لرې شي لیلی ته لاره پرېږدی،کله چې لیلی رانږدې شوه په مجنون یې غږوکړچې مجنونه زه دغه یمه زماوصال درسره ده ته ولې خفه یې؟مجنون خواب وکړچې:الیک عني فدشغلت عنک حبک.یعنی له ماځخه لرې شه ستامینه په ماباندې دومره غالبه شویده چې زه نورستاوصال هم نه غوارم،دابیاپه مینه کې یوه بله مرتبه ده،کیدلای شي چې مونږاوتاسوداسې فکروکړوچې دابه دروغ وی ځکه یوځوک چې مین وي هغه دخپل جانان وصال غواړي خومجنون ته په عشق کې داسې یوه مرتبه حاصله وه چې نوریې دخپل جانان وصال هم نه غوښته.

په همدې انوارالقدسیه اوفتوحات مکیه کې لیکلي دي چې یو وخت کې یوشاګرد چې هغه مین وه دخپل استاذ درس ته ناست وه،استاذمحبت بیان کاوه،له دې سره داطالب ویلې کیده،ویلی کیده،آن تردې چې ټول وجودیې داسې وګرځیده لکه یوځوک چې لاړې توکړی؛نوپه مینه کې کله ناکله داسې نادرې هم وي.

# دابن عربي له خپل استاذسره مینه:

فتوحات مکیه کې علامه ابن عربي لیکلي دي چې زمایواستاذوه دعلامه مدین په نوم باندی،له هغه سره زمادیره زیاته مینه وه،یو وخت کې دازمامینه په ماباندې دومره غالبه شوه چې دازمامینه متجسده یامتجسمه وګرځیده،معنی داچې په صورت باندې بدله شوه،زمامینې به له ماسره خبرې کولی اومابه دهغې خبرې اوریدلې،ماته به دې خپلې مینې وصیتونه هم کول؛کله به چې له ماځخه زمادامینه فناشوه نومابه دومره زیات خوراک چې هیڅ به په خان باندې نه پوهیدم،یو وخت کې داسې وخت راغی چې کله به زه دودی ته کیناستم زمامینه به راغله ماته به مخامخ کیناستله،زه به په دیرتحیر کې وم هیڅ خوراک به مې زړه ته نه کیده،مابه چې کوم شی لیدل هغه به زما ملګرونه لیدل،انوخینی وختونه په مینه کې داسې نادرې هم وي.

الرسالة القشيريه کتاب کې ليکلي دي چې يو وخت په هنوستان کي يوسرى په يوى جيلى باندى مينه وه،بياداجيلى چيرته په سفرباندى تلله،کله يې چې له خپل عاشق سره مخه ښه کوله نوددى عاشق يوى سترکى ژړل اوبلي نه ژړل دى عاشق په خپلي هغي سترکي چې دجانان دفراق پرمهال يې نه وه ژړلي پتى ولړوله،دري اتياکاله يې خپلي سترکى ته ددى لپاره عقوبت ورکړچې تازمادجانان دفراق پرمهال ندى ژړلي.سبحان ياعلى العجب.

اويو وخت کې يوهلک په يوى جيلى باندې مين وه،بيايي له هغي جيلى سره زناکړى وه،داهلک په حکومت اسلامي کې په حدکړاى شو،نه نوي ذړي يې وواهه دى هلک هيڅ ذول حرکت هم نه کاوه خوپه سلمه ذره يې آه وکړ؛يوعالم وايي چې ماپوښتنه خني وکړه چې نه نوي ذړى يې ووهلي هيڅ د درداحساس دى هم نه کاوه خوپه سلمه ذره دي غړپورته شو؟دي هلک خواب راکړچې هلته زمامعشوقه ولاړه وه زه دهغي په استغراق کې تللى وم،توله توجومې دجانان لوري ته وه چې دى ته فنافي المعشوق ويل کيږي،په وهلوباندې نه يم پوى شوي خودسلمى دري پرمهال زماجانان له ما څخه مخ وګرخاوه نوزه په درد باندې پوى شوم خکه مې آه وکړداسې عجيب مينان وه.

## فنا اوبقا.

دفنا اوبقا مثال دتلي په شان دى،که يوطرف يې دروندشي بل طرف يې پورته کيږي اوکه بل طرف يې دردوندشي بيايي هغه بل طرف پورته کيږي؛فناء ديرډولونه لري دبيلګي په ډول فنافي طلب الوجود،فنادمعرفت في المعروف،فنا دمعين في العيان اوداسې نور...

الرسالةالقشيريه کې ليکلي دي چې فنا له خان څخه بدي لرى کولواوبرخاى يې په خپل خان کې نيکي راوستلوته ويل کيږي؛يعنى تخلى عن الرزائل تحلى باالفضائل،کله چې يوڅوک له خپل خان څخه بدى لرى کړى نيکي په خپله پکى راخي.

علامه ابن قيم په مدارج السالکين في منازل اياک نعبدواياک نستعين کې ليکلي دي چې اصل کې دفنا اوبقا لوى عامل عشق دى؛کله چې يوڅوک مين شي مينه ديره ورباندې غالبه شي بيانوريه خان هم نه پوهيږي،دبيلګي په توګه بي بي زليخاچې کومې ښځې راغوښتي وى هغوى چې کله حضرت يوسف عليه السلام وليده نوفنا في المحبت شولي خپلې ګوتي يې پرې کړلي له هغوڅخه وينې رواني وى هغوى دهيڅ ډول درد احساس هم نه کاوه،هغوى له خپل خان څخه فناوى داستغراق حالت ورباندې راغلى وه دخپل وجودبقايي ديوسف عليه السلام په وجودکې ليدله ددى لپاره متصوفين علماءيوشعرمثال راوري چې:

روحه روحي وروحي روحه * من رأى روحين حلافي البدن

علامه ابن قیم روضة المحبین کتاب کې لیکلي دي چې یو وخت کې دوه میان داوبو ډنډ ته ناست وه،په دې وخت کې معشوقه اوبوته ور وغورځیده عاشق هم غیراختیاري ورپسې وغورځید،معشوقې یې ورته وویل:چې زه خو راوغورځیدمه داته ولې راپسې راوغورځیدلې؟عاشق ورته وویل چې:غبت بک عني فظننت انک اني.یعنی ستا په وجه زه له ځپل ځان څخه ورک شوم کله چې ته اوبوته ولویدلې مافکروکړچې زه وغورځیدلم.دې ته فناقي المعشوق ویل کیږي؛داسې احساس یې کاوه چې زه پرته له جانان څخه په دنیاکې نه یم.

اوحضرت موسی ﷺ چې کله له الله تعالی سره خبرې کولې هلته حضرت موسی ﷺ له ځپل ځان څخه ناخبروه،عوارف المعارف کې علامه سهروردي لیکلي دي چې افني الموسی عن الموسی فلم تخبر الموسی عن الموسی.یعنی چې کله حضرت موسی ﷺ کوه طورته لاړ هلته حضرت موسی ﷺ له ځپل ځان څخه فناشو.هغه له ځپل ځان څخه نه وه خبر اوحال داچې حضرت موسی ﷺ هماغه یوحضرت موسی ﷺ وه. په علم دتصوف کې داسې نادرې وې؛که څوک غواړي چې په دې اړوند یې مکمل تحقیق باندې واقف شي نومکتوبات دعلامه مجدد الف ثاني ته دې مراجعه وکړي.

## دمینانوکیسې:

په یوه زمانه کې یوځوک په چاباندې مین وه،دهغه معشوق به پرتوګونه خرځول دې عاشق هم له ځپل ځان سره څوپندی پرتوګونه ساتلي وه،ددې لپاره چې زمادجانان له پرتوګونوسره ډیره جوړه ده.

یوبل مین وه دهغه معشوق به پرتوګونه خرځول،دې عاشق هم له ځان سره دوه سوه هاونګونه ساتلي وه،ددې لپاره چې زمادجانان له هاونګونوسره ډیره مینه ده.

## دمسکې کیسه:

سراج المنیرتفسیرکې علامه خطیب الشربیني لیکلي دي چې په بغدادکې یوسړی په مسکې باندې مشهوروه،دهغه له وجودڅخه به دمسکوبوی ته‌ایوه ورځ چاپوښتنه ځنې وکړه چې دغه وجه ده چې له تاڅخه دمسکوبوی ځي؟هغه خواب ورکړچې زما ډیره ښکلې روانې وه،یو وخت کې مې مور ترکې څه شی خرڅول یوه زړه ښځه راغله راته ویې ویل چې داشي راباندې وپلوره ماورته وویل ښه

ده،بیایي راته وویل چي کورته یي هم راسره یوسه،زما خوابده شوه ومي ویل چي زړه ښخه ده ثواب په نیت مي هغه شی له هغي سره دهغي کورته یو وړل،هغي راته وویل:چي کوټي ته یي راته یوسه، هغه شی مي کوټي ته ورسره یو وړل کله چي کوټي ته داخل شوم هلته یوه زوانه جیلی پرته وه چي الله ډیرعجیب حسن ورکړی وه،دازړه ښخه کومه چي بازارته راغلي وه هغه دهمدې جیلی مېنخه وه،په دې وخت کې یې دروازه بنده کړه هغې زواني جیلی خان هم بربنډکړی وه،هغي زه له لاس څخه ونیولم په خپلوتیانویي ور وغورځولم،راته ویي ویل:چي ته به له ماسره زنا کوي.

مسکي وایي چي زه ډیرزیات خفه شوم خکه چي هیڅکله ګناه نه وه کړي،ماورته وویل:چي سمه ده زنا درسره کوم خوزه به یوخل بیت الخلاءته لاړشم کله چي بیت الخلاءته لاړم هلته مي ښه خان په نجاستونوباندې پلیت کړددې لپاره چي نفرت یي راڅخه وشي،کله چي بیرته ورغلم دهغي نفرت راڅخه وشودروازه یي راته خلاصه کړه راته ویي ویل:چي وزه کم عقله،ماخودالله تعالی لپاره داکارکړی وه ددې لپاره چي الله تعالی مي له له دې بدعمل څخه وساتي، کله چي شپه شوه اوزه ویده شوم په خوب کې الله تعالی راته وفرمایل:چي ته زماپه مخلوق کي دویم یوسف یي زه به له تاسره داسي معامله وکړم چي توله نړۍ درباندې خبره شي؛انوموړي وویل:چي خکه خواوس زماله بدن څخه دمسکوبوی خي.

# نوادر.

په پخواني زمانه کي دچین اوهندوستان ترمینځ یوه هیلي وه،چي عربي کي بطه ورته ویل کیږي؛هلته دیوه قوم خلک اوسیدل هغوی دخپلوخمکودخروبولولپاره له اوسپني څخه داهیلی جوړه کړي وه،کله به چي دعاشورا ورخ شوه،خلکوبه دې هیلی ته اوبه ورکولي خوعلماوداندی لیکلي چي داځومره هیلی وه،بیابه دعاشورادورخي له صباڅخه ددې هیلی له مښوکي څخه اوبه تویدلي،ددې قوم پټي به هم ورباندې خړوبیدل اودوی مواشي به هم ورباندې وبه کیدل،آن ترکال هغه وخته به دهغې هیلی له مښوکي څخه اوبه تویدلي کله به چي کال پوره شونوددې هیلی له مښوکي څخه به اوبه نه تللي؛عجیبه خوداوه چي دادومره زیاتي اوبه له کوم لوري څخه ورته راتللي حال داچي دې هیلی ډیرې کمې اوبه ځښلي دادهغي زماني تکنالوژي وه چي له نن څخه هم ډیره پرمخ تللي وه.والله اعلم.

## دمیسومرغی:

کتاب المدهش دعلامه ابن جوزي کي لیکلي دي چي په مخکني زمانه کي په روم کي له میسوڅخه یوه مرغي جوړه شوي وه،دامرغي په یوه لرګي ناسته وه چي هغه هم له میسوڅخه جوړشوی وه،ددواړویوډول رنګ وه؛خوعلماوداندی لیکلي چي ددي مرغی څه ډول رنګ یي وه.

کله به چي په شام کي زیتون پاخه شول،نوددي مرغی رنګ به هم په خپله بلندي زیړشوځومره مرغی چي په دي جنس کي وي هغوټولوبه دي مرغی ته دري داني زیتون په داسي ډول راوړل چي یوبه یي په خوله اودوه نورپه پنجوکي نیولي وه کله به چي ددي مرغی سرته راورسیدل هغه به یي هلته ددي مرغي په سربانډي راپریښودل،بیابه دروم خلکوهغه زیتون راټولول تیل به یي ورڅخه جوړول،رومیانوددي لپاره داچل کړی وه چي په روم کي زیتون نه کیدل په دي ډول به هغوی ډیرتیل غونډکړل چي هغه به ددوی ډیخلي لپاره هم کافي وه اوځراغونه به یي هم خني لږول،داسي عجیبه ټکنالوژي یي جوړه کړي وه.

## دمصراسکندریه مناره:

په مصرکي یوه مناره وه داسکندریي په نوم باندي چي په سربانډي یي لویه آیینه لږیدلي وه،کله به چي چاپه دي آیني کي وکتل آن قسطنطنیه به ورڅخه معلومیدله،دامناره په مصرکي وه اوقسطنطنیه په روم کي وه چي په اوسني جغرافیه کي قسطنطنیه دترکي هیوادیومشهورښاردی،لوی دریاب دمدیترانې چي دروم ددریاب په نوم هم یادیږي هغه ددي دواړوترمینځ واقع دی.کله به چي دښمن له اروپاڅخه افریقاته په بیړیوکي راروان وه دي مناري ته به چي رانږدي شونودا آیینه به یي ورباندي ورتاوکړله هغه بیړي به په دریاب کي وسوزیدله،دامناره بیا الله تعالی مسلمانانوته هم په لاس وروستله خو المؤمن غرکریم.[1]حدیث شریف کي راځي چي مسلمان دیرساده وي.

علامه سیوطي په حسن المحاضره في احوال المصروالقاهره کتاب کي لیکلي دي چي بیایو وخت کي دي مناري ته خیني کسان راغلل چي اصل کي کافران وه داروپایانوله لوري خوپه ظاهرکي یي ځانونه مسلمانان ښودل مسلمانانوته یي وویل: چي مونږپه دي باندي خبرشوی یوچي ددي مناري لاندي ډیري خزاني دي،که ستاسوخوښه وي مونږبه داخزاني را وباسو؛ هغوخلکوپه دي مناره کي دخزاني دپلټني په پلمه کارکاوه،کوم

---

[1] - عن ابي هريره قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم المؤمن غركريم والفاجرخب لئيم-جامع الترمذي۲/۱۷-.

سُرچي په دي مناره کي وه هغه له منخه یوور ،تر هغه وروسته هغه خلک دشپي په بَنه تسَبیدلي وه،مناره یي اسکندریه اوس شته خوکوم سُرچي مخکي پکي وه هغه اوس نشته.

## دزیتون ونه:

نفح الطیب چي داداندلس په تاریخ کي جوړشوی کتاب دی،هلته علامه ابن مقري المالکي چي داندلس خلکودزیتون یوه ونه جوړه کړی وه،څه طلسم یي وربادندی کړی وه چي دشمسي کال په یوه ورځ به یي زیتون هم کول،پخیدل به هم په دغه ورځ،تول هرڅه به یي په همدی یوی ورځي کي کیدل دهغی زماني داسي نادره تکنالوژي وه.سبحان یاعلی العجب.

## درخ مرغه کیسه:

رخ په نړی کي ترتولولوی مرغه ده،حیاةالحیوان کي علامه دمیري لیکلي دي چي یو وخت کی یوشمیرخلکودچین په دریاب کي په بیړی کي سفرکاوه،نوموړی له همدي خلکوڅخه نقل کړیدی چي هغوی وویل:هوادیره طوفاني شوه زمونږ بیړی یي دیره لرې دیوه ساحل په لوري بوتله،مونږ هلته بیړي ودروله په هغه تاپو وزمه کي له بیړی څخه کوزشولو، مونږدیروږي شوي وه،په هغه تاپو وزمه کي گرځیدلوچي له لری څخه مودخیمي په شکل په یوه شي نظرپریوت،کله چي ورنږدی شولو هغه دغره په شان یوه لویه هگی وه،لرگي مو ورته راواخیستل چي ماته یي کړوخوهغه دیره کلکه وه، بالاخره په دي باندی وتوانیدلوچي داهگي ماته کړومونږپه دی نه پوهیدلوچي دابه دڅه شي هگی وي؛کله موچي داهگی ماته کړه وموليدل چي په مینځ کي یي یوژوندی حیوان دی دهغه یو وزرموراکش کړلږغوندی غوښه اوبنکي مو ورڅخه راوشکولي بیرته بیړی ته راغلواوحرکت مووکړ.

کله چي دلمردختلو وخت شویولوی مرغه په هواکي راڅرګندشو،یوه لویه تیږه یي هم په خپلوپنجوکي نیولي وه،چي هغه تیږه زمونږله بیړي څخه دیره لویه وه؛کله چي دامرغه رانږدی شو هغه تیږه یي زمونږپه بیړی باندی راپریښوده،دالله تعالی ساتنه وه هغه تیږه زمونږپه بیړی ونه لږیده په دریاب کي ولویده؛هغه هگي دهمدي مرغه وه چي رخ ورته ویل کیږی اودا په نړی کي ترتولولوی مرغه دی.

اوداندن په یوه موزیم کي یوه هگی ده چي دولس سوه خلي داوسنیوهگیوپه پرتله غټه ده.داسي نادرمرغان هم په نړی کي شته.

# نادر ماهی

یو ډول ماهیان دي چې کله یې خوک را ونیسي په چاړه باندې یې ټوټه ټوټه کړي،چې کله یې بیرته اوبوته وروغورځوي نوه ورځې وروسته هغوټولوبیرته سرونه کړی وي،له هرې ټوټې څخه یې یوژوندی ماهی جوړشوی وی.څومره دالله تعالی عجیب نظام دی.

# ټوکه

یومولوي صاحب زمامنلګری دی له موږسره یې یوځای په باغبانانوکې دتکمیل درجه لوستي وه،یوه ورځ دلته سهاکوټه زموږمدرسې ته راغلی وه،ماطالبانوته درس ویلې،زموږدمدرسې طالبانو دامولوی صاحب جومات ته بوولی وه هلته یې چای هم ورته کړی وه،زموږدمدرسې یواستاذدی مولویصاحب شفیع الله نومیږي طالبانودی میلمه ته ویلي دي چې دهغه مولوي صاحب زړه دمیږي دی،مسلمان ډیرساده وي لکه حدیث شریف کې راځي چې:المؤمن غرکریم.(۱)

دی میلمه مولویصاحب داخبره منلې وه اوحال داچې له ماڅخه پرته په دې مدرسه کې له هیچاسره هم ندی بلد،ماچې کله سبق خلاص کړطالبانوراته وویل:چې داسې یومیلمه راغلی دی،زه هم جومات ته ورغلم پوښتنه مې ورسره وکړه،هغه راته وویل:چې طالبانوراته ویلي چې دهغه مولوی صاحب زړه دمیږی دی دمولوي شفیع الله طرف ته یې ګوته ونیوله؛زه پوی شوم چې طالبانوټوکه ورسره کړیده،ماورته وویل:چې هو که یې نه منې لاړشه له دباندې څخه لږ وابنه راوشکوه بیابه معلومات درته وشي.

ترلږزند وروسته دامیلمه دباندې ووت،کله چې بیرته راغی په رښتیایي هم له خان سره وابنه راشکولي وه،لومړی خوخندا ورتلله زړه یې نه شوکولای چې وابنه ورته ونیسي بالاخره یې مولوي شفیع الله ته هغه شنه وابنه ونیول او ورته ویې ویل چې:بچې بچې خوخلې یې همداسې وکړل اخریې ماته وویل:چې تاسې خوواېی زړه یې دمیږي دی کله یې زړه دمیږي دی که زړه یې دمیږي وی نودي شنووښوته به راجیک شوی وه.داسې نادرخلک هم پیداکیږي.

---

(۱) - سبق تحریکه.

## هندوستان کې دیوه زیارت کیسه:

زمایوملګری هندوستان ته تللی وه،هغه کیسه کوله چې هلته یوه زیارت ته ورغلم یودیرغټ سړی پکې ناست وه چې جامې یې هم نه وې اغوستي،تناسلي غړی یې هم دپښوپه مینځ کې پروت وه،ښځې به راتللي له دې زیارت څخه به یې طواف کاوه،بیابه ورتیټې شوې ددې سړي تناسلي غړی به یې په لاس کې راپورته کړاومچوبه یې ځنې واخیسته؛بیابه یې خوځلي طوافونه کول تره هغه وروسته به له زیارت څخه بیرته تللې.الحمدلله چې زموږ څومره ښکلی دین دی،په نړۍ کې داسې نادرې هم شته.

## مناظره:

په یوه زمانه کې دیوه مقلد اوغیرمقلد ترمینځ مناظره وه،کله چې دوی دواړه مناظرې ته کیناستل غیرمقلد وویل:چې په قرانکریم کې به تأویل نه کوې،دقرانکریم دآیتونوبه ظاهري ترجمه کوې؛مقلدعالم ورته وویل:چې سمه ده.ددوی دواړوترمینځ مناظره پیل شوه،دیرخلک هم دمناظرې لیدلوته راغونډشوي وه؛مقلدعالم ورته وویل:چې الله تعالی په قرانکریم کې فرمایلي دي:{ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِۦٓ أَعۡمَىٰ فَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ أَعۡمَىٰ وَأَضَلُّ سَبِيلٗا }[1]که په دې آیت کې تأویل ونشي بیاخوداَ آیت په تاباندې تحمیل دی څکه چې ته ړوندیې؛په دې سره مقلدعالم مناظره وګټله.

## نباتاتوکې هم حیات شته.

علامه خطیب الشربیني په سراج المنیرتفسیرکې لیکلي دي چې په افریقایي هیوادونوکې یوډول ونه ده په خبروباندې پوهیږي،کله چې څوک ووایي:چې ورشه تبریا اره راوړه چې زه دا ونه ووهم،نوداونه مذبوله غونډې شي څه وخت چې تیرشي دا ونه پوی شي چې تبریا اره نه راوړي بیرته په وروړو خپل حالت ته راوګرځي.

عجائب المخلوقات دعلامه قزویني کې لیکلي دي چې کومه ونه میوه نه نیسي نوهغې وداره کړی،په کراړباندې دې په تبرووهي چې ماته نشي هلته به یوبل کس هم وي هغه به داونه وهونکی کش کوي ورته وایي به چې داخل یې پریږده که بیایې میوه ونکړله بیایې ووهه،په دې وخت کې دې دوه درې تنه نورهم راشي ښه شوردې جوړکړي،ونه وهونکی دې ورته ووایي چې څه داخل دې ستاسې پرمخ

---

[1] - سورة اسراء/۷۲.

خلاصه وي که بیایي میوه ونکرله بیایي وهم؛خوخندابه نه کوي دادول کرنه به بنه قهراوغوسي سره کوي نوکال ته به خامخاددې وني په میوه کې زیات والی راخي.داتول ددی لپاره دلائل دي چې په نباتاتوکې حیات شته.

علماولیکلي دي چې:لاتضربوآمانکم بکثراوانیکم فان لک آجالکم مثل آجالکم.یعني که ستاسوځخه کوم لوښی مات شي نوهغه ماتونکی مه رټی ځکه چې لوښي هم ستاسي په شان اجل اونیته لري.له دی ځخه ځرکنده شوه چې په دی شیانوکې هم حیات شته دلاښه تحقیق لپاره فتح الله ته مراجعه وکړی.

# نباتات هم علم لري:

نباتاتوکې هم علم شته ځکه چې ونوکې عشق اومینه وي،که نباتاتوعلم نه لرلی نوولي یې عشق کاوه؟په خانګړي ډول دخرماپه ونه کې عشق اومینه ډیره وي.علامه ابن جوزي ضم الهوی کې لیکلي دي چې کله دخرماونه مینه شي بیاخرمانه کوي،وده اونموهم نه کوي همدارنګه رنګ یې هم خراب شي؛اودمیني علامه یې داده چې کومه ونه باندې مینه وي دهغې وني لوري ته یې میلان وي؛کله چې څوک یوپړی راواخلي دامعشوقه ونه له خپل عاشق سره وتړي یا دمعشوقي ونی یوه څانګه دعاشقی وني په جیب کې کیږدي په دې سره یې طبیعت ډیربرابروي.ادعلم بله نښانه یې داده چې په ونوکې خوف او ویره هم وي تحقیق وړاندې ذکرشو.

اویوسوداني عالم وایي:چې مادري خایه غنم وکرل،تولوته مې بیلابیل دهقانان(کروندګر)ونیول،هغوی ته مې وویل چې تولوغنموته به په یوه ډول ښوره اواوبه ورکوی؛یوه دهقان ته مې وویل:چې ته به له غنموسره بدچلندکوی؛بل دهقان ته مې وویل چې ته به له غنموسره هیڅ کارهم نلرې اودریم دهقان ته مې وویل:چې ته به له غنموسره دخوشحالي حرکات کوې.

څه موده وروسته چې غنم پاخه شول اولوکړای شول،له تولوځخه مودرمندونه جوړکړل؛کله موچې وتلل له تولوځخه ډیرغنم هغوغنموکړي وه چې دخوشحالی حرکات ورسره کیدل.هغه غنم چې دچاهیڅ کارنه وه ورسره هغه یوڅه کم وه اوهغه غنم چې بدچلندورسره کیده هغه به تولوکی کم راغلل؛اوحال داچې تول په یوه یوه جریب ځمکه باندې کرل شوي وه. له دی ځخه په داګه شوه چې نباتاتوکې هم علم شته ځکه چې یوڅوک په داراباندې پوهیږي هغه خامخاعلم لري.

# كلانوكي عجائب:

په نرى كي يودول گل دى چي دشاتوله مچي پرته بل شي ته خان نه سپري،ددي گل په خوله كي يودول لركى ده دنظام قراول په شان دهغه لركي په واسطه دگل مينځ ته كوم شى نشي ننوتلاى؛دالله تعالى عجيب نظام دى خوچي كله دشاتومچي راشي وبنكبري گل پوى شي چي له دي سره كارت شته نوهغه گل خان ورته وسپري،كوم لركى چي دنوروشيانودننوتلو ممانعت كوي هغه لرى شي دشاتومچي په دي گل كي ننوخي اودگل بيخ ته خان ورسوي دهغه گل په بيخ كي خواږه شيان خوري،هغه گل كي چي كوم لركى وي په هغه باندي دمچى شا لړيږي كوم گردچي په هغه لركي كى وي هغه ددي مچي په شا باندي پاتي شي چي هغه گرد دنر گل وي كله چي دامچى په بل گل كي ننوخي چي هغه گل ښخه وي،مچى چي په دي ښځينه گل كي مخكي اوشاته شي نوهغه دنرگل مني چي كوم ددي په شاكي راغلي دي هغه په دي گل كي پاتي شي په دي دول ددي گلانوتلقيح راځي.قال الله تعالى:{ وَأَنۢبَتۡنَا فِيهَا مِن كُلِّ شَيۡءٖ }[1]

يوبل ډول گل دى زهرة الجند ورته ويل كيږي،اكثره اروپايي هيوادونوكي وي؛يوه ورخ ددي گل يوه ځانگه گلان وغوروي صباته دلمرله ختلوسره بيرته ختم شي؛بله ورخ ددي گل بله ځانگه گلان وغوروي دلمرله ختلوسره ختم شي؛دالله تعالى عجيب نظام دى هره ورخ ددي گل يوه ځانگه چي په هغه كي ښخه گلان وي غوريږي كوم گلان چي مخكي غوريدلي وي هغه نران وي اوكوم چي روسته غوريږى هغه ښخي وي؛هلته خوله وراندي ځخه دشاتومچي په نرانوگلانوباندي گرخيدلي وي په پښوكي يي دنرانوگردوي،كله چي هغه مچى په ښخه گل كي وگرځي دهغه گرد په واسطه كوم چي دمچى په پښوكي وي ددي گلانوتلقيح(حمل) راځي.

اوپه نرى كي يوبل ډول گل دى چي له مچ پرته بل هيڅ شي نشي ورننږدي كيدلاى،ددي گل خوله خلاصه وي خوچي كله مچ ورداخل شي نوهغه گل دخپل لامسه حس په واسطه ددي ادراک وكړي چي مچ راغي خپله خوله بنده كړي مچ پكي وارخطاشي چي بندي شوم په هغه گل كي پورته پورته غورځيږي حكمت پكي داوي چي دگل پاس طرف نر وي اولاندي طرف ښخه وي كله چي مچ پورته پورته ولويږي له پاس لوري ځخه گردونه لاندي طرف ته ولويږي گل بيرته خپله خوله خلاصه كړي مچ ورځخه راووځي په دي ډول دهغه گل تلقيح كيږي.

---

[1]- سورة الحجر/۱۹.

## دنیلوفر گل:

علامه سیوطی په حسن المحاضره کتاب کې لیکلي دي چې یودول گل دی نیلوفرورته ویل کیږي،چې اکثره حشیو په مینځ کې راشین کیږي؛نوموړي لیکلي دي چې دنیلوفرگل دیرکبرجن دی کله چې یوڅوک له دی سره نږدی متیازی وکړي نوده ته دیره زیاته غوسه ورځي چې ولې یې له ماسره نږدی متیازی وکړی،کنې په متیازوکې کوم ډول زهریات نشته چې هغه په دی گل باندی بد ولږیږي یواځې دکبرله وجې متیازی بدې ورلږیږي؛په نړۍ کې داسې نادرگلان هم شته.

## نفیه چې په نفي داخله شي اثبات پیداکوي:

علماوپه کتابونوکې لیکلي دي چې دمارزهردانسان په حیات کې نفي راولي،خوچې کله څوک دهغه مارغوښه وخوري کوم چې دی چیچلي دي نوبیرته یې په حیات کې اثبات راځي؛اوکه څوک دیوه داسې مارغوښه وخوري چې هغه ماردی نه وي چیچلي بیاهم انسان وژني ځکه دمارپه غوښه کې هم زهروي.

عیون الانباءفي طبقات الاطباء کتاب کې هم دامدعی ثابته شویدة چې الله تعالی ضدپه ضدکې پیداکړی،هلته یې لیکلي دي چې یو وخت کې یومصری فوجي په شاباندې لړم وچیچه،خوهغه دومره لوی لړم وه لکه دانسان دلاس پنجه دې فوجي په خپله شاباندې هغه لړم ژوبل کړ هغه دده په شا باندې مړشو،کله چې هغه لړم مړشونودده دردپه کرارشو؛څومره دالله تعالی عجیب نظام دی کله یې چې دی وچیچه دردیې وته وکړخوچې کله هغه لړم دده دوجودپه هغه ځای باندې مړشوپه کوم ځای کې یې چې دی چیچلي وه نوالله تعالی یې درد ختم کړ.

علماولیکلي دي چې یو وخت کې یودهقان(کروندگر)وه،کله به چې هغه په پټي کې کارکاوه نودهغه مزدوربه هغه ته خوراک وروړ؛یوه ورځ یې مزدورخوراک ورته راوړ،دهقان چې کله ددیگي سرخلاص کړچې گوري ددیگي په مینځ کې مړمارپروت دی،ددیگي سرېې بیرته بندکړله خان سره یې وویل:که داوخورم نومړبه شم؛په دې وخت کې یوبل سړی راغی هغه ورته وویل:چې له ما اوتاڅخه لږ وراندې په پټي کې یوسړی پروت دی،هغه دجزام په ناروغي مبتلاده(دایودول ناروغي ده چې دانسان وجود ورسره خوړینیږي)هغه دومره زیات له دردڅخه په تکلیف دی چې دکورخلکوراوری هلته یې په پټي کې اچولی دی هغه وایي چې ماته لږزهر راکړی چې مړشم؛دوی دواړوهغه خوراک واخیسته ناروغ ته ورغلل هغه ته یې وویل:چې په دې خوراک کې مړمارپروت

وه،ته داخوراک ندی لیاره وکړه چې مرشي له دې تکلیف څخه به خلاص شي،ماروغ هغه بودی وخوړله خلکو وویل:چې صباته به داناروغ مړوي؛څوکله چې صباداناروغ خلکو ولیده جوړ اوروغ شوی وه،هغه خوړین پوستکی ورڅخه لویدلی وه پرځای یې سورپوستکی وربالندی راشین شوی وه،هغه ناروغ ډیرکلونه ژوندی وه بیاپه خپل طبعي مرگ مړشو.

بل داچې یوسړی وایي:چې زه په سفربالندی روان وم په یوه ځای کې ډیرستړی شوم ډیوی ونې لاندې مې ډده ولږوله، همداسې ویده شوی وم چې یو وخت کې ماروچیچلم هغه ماړډیرلوی وه اوزهریې هم ډیرتیزوه،ډډیردرډله وجې له خپل ځای څخه نه شوای ښوریدلای،له ځان سره مې وویل:چې اوس خومرگ یقیني دی یوکاغذمې راواخیست اوخپل وصیت مې پکې ولیکه ندی لپاره چې یې وګوري خپل وطن ته مې یوسي؛څه وخت چې تیرشوډیرزیات تږی شوم له ماسره نږدې داوبویوډډوه هغه ډډته مې په سینه بالندې ندی لپاره ځان ورکش کړچې لږ اوبه وڅښم؛کله مې چې له هغه ډډڅخه اوبه وڅښلی یودم مې دردونه په کرارشول لږنوری اوبه مې هم وڅښلي ترلږزندوروسته بیرته خپل حالت ته راوګرځیدم له ځان سره مې وویل:چې په دې ډډکې خامخایوڅه شته،له یوې ونې څخه مې یولرگی رامات کړپه دې ډډ کې مې وواهه چې کتل مې دلرگي له سرسره دوه ماران راووتل یوهغه ماروه چې زه یې چیچلی وم ندی دواروماړانوله یوبل سره جنگ شوی وه دواره دې ډډ ته ورغورځیدلي وه،ددې مارانوزهرپه اوبوکې گډشوې وه هغه اوبه الله تعالی زمالپاره شفاګرلي نوداخبره صحیح شوه چې الله تعالی ضدپه ضدکې پیداکړیدی.

اویووخت کې دیوه بادشاه یوغلام په بادشاه بالندې ډیرگران وه،خوداغلام ډیرمضروه،نوروزیران ډیرورڅخه تنگ شوی وه، وزیرانوځکه څه نشوی ورته ویلای چې داغلام په بادشاه بالندې ډیرګران وه؛بالاخره وزیران ډیرورڅخه پتنگ شول په ډوډۍ کې یې زهر ورته واچول داغلام یې په یوه کوټه کې بندي کړ پیره دارانوته یې وویل:چې دروازه ورته خلاصه نکړی چې څوک دوا او اوبه ورنکړي؛دالله تعالی عجیب نظام دی کله چې دې غلام زهرخوړلي دې بیخي په ځان بالندې ندی پوی شوی همداسې بې هوشه لویدلی دې یو وخت کې یومار راغلی داغلام یې چیچلی دی په دې سره دی په هوش کې شویدی نعرې یې کړیدی چې هلې ماروچیچلم؛داغلام په دې بالندې نه دی پوه شوی چې مازهرخوړلي دي،پیره دارانوله وزیرانوڅخه اجازه وغوښته چې دروازه ورته خلاصه کړواوکنه؟هغوی اجازه ورکړه چې خلاصه یې کړی کله یې چې دروازه ورته خلاصه کړه چې گوري غلام روغ اوجوړدی هیڅ چاهم نه ورته ویلي چې تازهرخوړلي وه اودی په خپله هم نه پوهیده

چي مار هم حوږلي و دانو هغه دمار زهر بیرته الله تعالی دهغه غلام لپاره شفا وکرحول دانول ددی لپاره دلائل دي چي الله تعالی صت په صمدکي پیداکریدي.

## په جماداتوکی هم حیات شته:

شیخ علی الخواص په نری کي یولوی عالم تیرشویدی،له هغه څخه علامه موسی خان بازي نقل کریدی چي هغه وایی: مابه دتیرونکراوریده نوموړی دعلامه شعراني باشعراوی استاددی څپله عبدالوهاب الشراني وایي:چی کله به مادکرپیل کرنوکرد چاپیره تیرونه هم له ماسره ذکرپیل کړ،ورو ورو به دادذکرڅپه خوریدله،نوموړی وایي:چي ونو،بوټواوتیږوبه له ماسره زما ذکربدرګه کاوه.

شیخ علی الدباغ صاحب الابریز وایي:چي یووخت کي ماته داسي حالت پیښ شوچي کله به می تیږه داستنجاءلپاره راواخیستله هغي تیږی به نعري وهلي چي الله،الله جل جلاله.لوته به می چي راواخیستله هغي به ذکرکاوه،اوبوته به چي ورنږدي شوم چي استنجاءورباندی وکړم اوبوبه ذکرکاوه حیران پاتي وم چي په څه شي باندی استنجاءوکرم؛بیامي الله تعالی ته سوال وکرچي یاالله تعالی داحالت له ماڅخه واخله بیا الله تعالی بیرته هغه حالت لماڅخه نفي کر.کذاقال الله تعالی{ وَإِن مِّن شَيْءٍ

إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ }[1]

اوعلامه عبدالعزیزالدباغ له شیخ علی الخواص څخه نقل کریدی چي یوه ورځ دیری تیری په حمکه باندی پرتي وی تولوداالله تعالی ذکرکاوه،خویوه تیږه له دی نوروتیږوڅخه یوڅه لری وه هغي بل دول اوازکاوه،نوموړی وایي چي ما دخان سره فکروکرچي دایوه تیږه ولی بل دول غږکوي.کله چي نږدی ورغلم ومي لیدل چي له یوچاڅخه معجون تویي شویدی په هغومعجونویوری کوچنی کوچنی تیږی نښتی وی بیاپوی شوم چي دایوه تیږه نه بلکه دیری تیږی دي الله تعالی خپل مخلوق نه وراوروي چي تیږی هم داالله تعالی ذکرکوي اوپه دی شیانوکي هم ژوندون شته.

## دحیواناتوپه ژبه پوهیدل:

دحضرت سلیمان علیه السلام په زمانه کي نوموړي ته دبني اسرائیلوڅخه یوسړی راغی هغه ته یې وویل:چي له الله تعالی څخه وغواره چي زه دحیواناتوپه ژبه باندي پوی شم؛حضرت سلیمان علیه السلام ورته وویل:دی

---

[1] - سورة اسراء/۴۴.

دادیره سخته ده څه یې کوی؛هغه سري وویل چې زه هر یوه شرط ته تیاریم حوچې الله تعالی مې دحیواناتوپه ژبه باندې پوی کړي؛حضرت سلیمان ؑ ورته وویل: چې سمه ده زه به دعا درته وکړم خوته به دحیواناتوخبرې چاته نه کوی اوکه چاته دې وکړی بیاته مرکیږي؛سري ورته وویل سمه ده نودسلیمان ؑ په دعاباندې الله تعالی داسری دحیواناتوپه خبروباندې پوی کړ.

ددې سري په کورکې یوه غوا اویوخر وه،دی چې کله خپل کورته لاړدواړوته یې لږ لږ واښه واچول؛خره غواته وویل:چې ته دې نن خپله برخه واښه ماته راکړه زه به صبا خپله برخه واښه تاته درکړم،غوا ورته وویل:سمه ده؛کله چې دې سري داواوریدل ویې خندل ښځه یې هم ولاړه وه هغې ورته وویل چې ولې دې وخندل؟سری ورته وویل چې هسې مې وخندل؛ صباته بیادی سری خپلې غوا اوخره ته واښه واچول،غواخره ته وویل چې پرون خوماخپله برخه واښه تاته درکړی وه نن به ته خپله برخه واښه ماته راکوې؛خره ورته وویل:چې ته خبره نه یې ستاڅښتن له قصاب سره خبره کړی چې زما غوا ورخ په ورخ ډنګریږي راشه حلاله یې کړه،نوته داسې چل وکړه چې نن دې هم خپله برخه ماته راکړه ترصبابه ته نوره هم ډنګره شې قصاب چې کله تا ووینې وبه وایي چې داڅه کوې چې حلالوی یې ډیره ډنګره ده هیڅ غوښه نه لري؛اوکه ته اوس واښه وخوری نوترصباپوری ته چاغیږی کله چې قصاب تاووینې وایې به راځه حلاله به یې کړوډیره خوډنګره نده.

سري چې کله دغوا اوخره خبرې واوریدې خنداورغله،ښځې یې ورته وویل:چې نن به خامخا راته وایې چې ولې دې وخندل؟سری ورته وویل که زه تاته داخبره وکړم بیا خوزه مرکیږم؛ښځې ورته وویل:که مرکیږې اوکه نه مرکیږې ماته به خامخا وایې چې ولې دې وخندل؛سري ورته وویل: سمه ده درته وبه وایم خوپه خوله نه درته وایم په کاغذیې درته لیکم، ښځې ورته وویل:سمه ده،دې سري کاغذراواخیست لومړی یې خپل وصیت پکې ولیکه بیایې ورته داکیسه ولیکله چې ما ولې وخندل.

ددې سری په کورکې یوسپې اویوچرګ هم وه،ددې سري ښځې هغه سپي ته ډودی ورواچوله،چرګ وریاندې رامنده کړه هغه ډودی یې ورڅخه وتښتوله،سپي ورته وه‌ویل:چې څومره بې غیرته یې ډودی یې ماته راواچوله،له ماڅخه تا وتښتوله؛ چرګ ورته وویل چې بې غیرته زه نه یم بې غیرته خوزما اوستاڅښتن دی څکه چې هغه دبې غیرتي په وجه نن مرکیږي بیابه یې درې ورځې ماتم وي،خیراتونه به ورپسې کیږی ته خوبه ښه موړیې هرڅوک به یوځه دراچوي خوزه به په مرغانچه کې بندي یم هیڅوک به دغم له وجې مونږله مرغانچې څخه دباندې نه راباسي؛سپي ورته وویل چې رښتیا وایې؟ چرګ ورته وویل چې هو چرګ تولـه کیسه سپي ته وکړه ورته ویې ویل چې دومره بې

غیرته سری دی دښځي په خوله دی زما نه ښځي دي تولي راځخه خوشحاله دي یوی ته هم ځیل رازنه وایم زمونږ ښځیتن دیرښی غیرته سری دی دځپلي ښځي په خوله دی.

دی سري دسپي اوچرګ تولي خُبري واوریدلي په ده کي هم غیرت راپیداشوښځي ته یي وویل چي قسم په الله تعالی که درته ووایم چي ما ولي وخندل؛نوښځه کله ناکله ځپل میړه مرګ ته هم برابروي.قال الله تبارک وتعالی:{ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ مِنْ أَزْوَٰجِكُمْ وَأَوْلَٰدِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَٱحْذَرُوهُمْ }[1].

## ترتولواوږده ژبه:

یوډول حیوان دی حربا ورته ویل کیږي،په نړی کی له تولوحیواناتوځخه اوږده ژبه لري؛چي ژبی اوږوالی یي دریومترونو ته رسیږي؛کله چي داحیوان ښکارکوي په یوه پټ ځای کی غلی ناست وي،چي ښکارښه په نښه کړي نوبودم ځپله ژبه ورباندي ورواچوي هغه ځپل مقصود ورباندی حاصل کړي.

اوبل داچي په نړی کی چي څومره حیوانات دی هغه تول ژبي لري خویواځي ماهی ژبه نه لري،علت یي دادی چي کله حضرت آدمؑ په جنت کي پاتي یادغنم داني وخوري نوهغه الله تعالی حمکي راکوزکړ،نوماهی په دي باندي خبرشوی وه چي یو آدم ځمکي ته راکوزشویدی چي هغه به دتولوحیواناتوښکارکوي؛ماهي تولوسمندري حیواناتوته ددی خبری شیطاني کړی وه چي له دی وروسته به موږ اوتاسوپه آرام ژوند نشوکولای؛بیاحضرت آدمؑ ماهي ته ښیرا وکړه چي الله تعالی دي ژبه واخله ځکه اوس دماهي ژبه نشته.کذافي نفع المفتي والسائل للعلامه عبدالحی الکنوي.

## دسنج آب کیسه:

یوډول حیوان دی سنج آب ورته ویل کیږي اکثره په جزانروکی ژوندکوي،الله تعالی عجیب علم ورکړیدی؛کله چي سنج اب وغواړي چي ددریاب بلي ځنډي ته واوړي،نویو وچ لرګی راواځلي هغه کي حکمت دادی چي هغه اوبه نه ډوبوي سنج اب په دي باندي پوهیږي چي دسهارله لوري بادله کوم

[1] - سورة التغابن/۱۴.

المستجابه هلته یې ددې لپاره خانګړی باب راوړی چې دمظلوم دعا الله تعالی ډېره ژر قبلوي.نوښايي چې دمظلوم له ښېراځخه ځان وساتل شي

## آیادمتصوفینولپاره رقص جائزدی؟.

علم تصوف کې یوبحث دی سماع ورته ویل کیږي،دېيلګې په توګه:یوحادي حداکوي.یاکوم شاعرشعروايي اویاهم دقرانکریم قاري تلاوت کوي همدی ته سماع ویل کیږي؛دسماع ثمره حرکات وي چې حرکات بیایه دوه ډوله دي:یابه داحرکت غیرمنظم وي چې دی ته اضطراب ویل کیږي کحرکت المرتعش؛اویابه داحرکت منظم وي چې دي ته رقص ویل کیږي.

په منظم حرکت(رقص)به يوڅه تحقیق وکړوچې آیارقص جوازلري اوکنه؟په دی اړوندځيني علماءوايي:چې رقص جائزدی دترمذي شریف له دی حدیث څخه استدلال کوي چې چې ام المومنین حضرت عائشه وايي:چې مونږیوه ورځ له نبي کریمﷺ سره ناستي وه چې یودم شورشوچې وروموکتل یوه حبشي ښځه ګډېدله ماشومان ورڅخه راتاو وه،حضرت عائشه وايي چې نبي کریمﷺ ودریده مادهغه په اوږه باندی خپله زنه کېښودله دي حبشي ښځي ته مو وکتل،رسول اللهﷺ راته وویل: چې بس دی؛ماورته وویل:نه څوځلي نبي کریمﷺ داخبره راته وکړه مابه ورته ویل چې نه؛تردي پورې چې حضرت عمر راغی رقص کونکي ښځې چې کله حضرت عمرولیده هغه وتښتیدله نورماشومان هم وتښتیدل؛حضرت عمرته الله تعالی دومره زیات هیبت ورکړی وه چې شیطانان دانسانانواوپیریانو ورڅخه تښتیدل بیاتردي حدیث لاندي امام ترمذي لیکلي دي چې هذاحدیث حسن صحیح.[۱]

په دی اړوندځيني نوراحادیث هم راغلي لکه حضرت جعفرطیارته نبي کریمﷺ وفرمایل:چې ته خلقاً اوخُلقاً له ماسره مشابه یې یعني ته په صورت اواخلاقودواړوکي لما سره مشابه یې؛دنبي کریمﷺ دی

---

۱- عن عائشة كان رسول الله صلى الله عليه وسلم جالسافسمعنا لغطا وصوت صبيان فقام رسول الله فاذاحبشية تزفن والصبيان حولهافقال ياعائشة تعالي فانظري فجئت فوضعت لحيي على منكب رسول الله فجعلت انظراليهامابين المنكب الى راسه فقال لي:ما اشبعت اما اشبعت فجعلت اقول لا لانظرمنزلتي عنده اذاطلع عمرفارفض الناس عنهافقال رسول الله:اني لانظرالى الشياطين الجن والانس قدفروامن عمر.قالت:فرجعت.مشكاة المصابيح٢/٥٥٨-.

حیري هغه ته دیرخوند ورکړیه ګډاباندي شو.[1] له دي احادیثوڅخه خیني علماء استدلال کوي چي رقص جائزدی

اودرقص مبیحین یوبل حدیث هم دلیل راوري چي هغه دویلوهم ندی خوپه دی خاطریي ذکرکوو چي بیرته رد وربلندی وکړو.اداحدیث یي په سندباندی ذکرکړی له حضرت انس ابن مالک څخه چي هغه وایي:موږله نبي کریمﷺ سره ناست وه، په دي وخت کي حضرت جبرئیل راغي رسول اللهﷺ ته یي وویل:چي ستا دامت فقراءبه له اغنیاوڅخه پنځه سوه کاله وراندی جنت ته خي؛کله چي نبي کریمﷺ دا واوریدل نوویي فرمایل:چي بلته کوم شاعرنشته چي سماع وکړو؟مجلس کي یوبدوي کوچی هم ناست وه،هغه وویل:چي زه به داشعر ووایم،هغه داشعر وویلي چي:لسعت حیة الهوی کبدي.یعنی دهوا مارزمایه وچیچله؛کله چي بدوي داشعرو ویلی نعوذبالله رسول اللهﷺ په ګډاباندي شو څومره صحابه چي مجلس کي وه هغوی ټول وګډیدل؛دنبي کریمﷺ په اوږه باندي څادرپروت وه هغه یي له اوږی څخه پریوت،کله چي نبي کریمﷺ اوصحابه بیه ستړي شول نوحضرت معاویه رسول اللهﷺ ته وویل:چي بیه مستي څومو وکړه؛بیایي دنبي کریمﷺ څادرڅلورسوه ټوټي که دنبي کریمﷺ په مریدانوتقسیم کړ.[2]

عوارف المعرف دعلامه سهروردي کي داحدیث راوړل شوی؛علامه زبیدي ددی حدیث په سندباندی تحقیق کړی بیایي لیکلي دي چي داحدیث صحیح ندي؛علامه سیوطي په الدررالمنتشره کتاب کي لیکلي دي چي داکیسه دروغ ده؛علامه عجلوني کشف الخفاکي لیکلي دي چي داحدیث موضوعي دی؛الجدالحثیث في مالیس بحدیث کتاب کي لیکلي دي چي داحدیث موضوعي دی؛علامه علي القاري په میرقاة اوالمصنوع کي لیکلي دي چي داکیسه دابومحذوره په کیسه یادیږي، نوموړي لیکلي چي داکیسه موضوعي ده؛النخبة البهیه کتاب کي هم لیکلي دي چي داکیسه موضوعي ده؛التنزیه الشریفة المرفوعه کتاب کي هم لیکلی دي چي داحدیث موضوعی دی؛اومحمدطاهرالفتیني الکجراتي په تذکرة

---

[1] - عن علي قال:اتیناالنبي صلی الله علیه وسلم انا وجعفر وزیدفقال:انت اخونا ومولانافحجل وقال لجعفر:خلقي وخلقي فحجل وراءحجل زید وقال لي انت مني وانامنک فحجلت وراءحجل جعفرقال الشیخ احدنوالحجل ان یرفع رجلاویقفزعلی الاخری من الفرح-کتاب الاداب للبیهقي۱/۲۵۷-. رقم الحدیث ۶۲۶.

[2] - وفي الحیوة الحیوان للدمیري واماحیة الهوی التي ذکرت في الحدیث الذي رواه ابن طاهرالمقدسي من حدیث انس وصاحب العوارف ان النبي صلی الله علیه وسلم انشد رجل بحضرته قدلسعت حیة الهوی کبدي * فلاطبیب له ولاراقي * الاالحبیب الذي شغفت به * فانه رقیتي وتریاقي.قال:فتواجدالنبي صلی الله علیه وسلم وتواجداصحابه حتی سقط رداءه عن منکبه فلما فرغوا آوي کل واحد الی مکانه قال:صلی الله لیس بکریم من لم یهتزعندالسماع ثم قسم رداءه علی من حضرایع مائه قطعة.فهذاحدیث موضوع کان واضعه عماربن اسحاق.کذاقال الذهبي-(المصنوع في معرفة حدیث الموضوع/۱ ۲۷. فقره ۲۶۷)

الموضوعات کې لیکلي دي چې داحدیث موضوعي دي.لنده داچې په موضوعاتوکې چې څومره کتابونه جوړشویدي هغوټولوکې لیکلي دي چې داکیسه موضوعي ده

که څوک داحدیث روایت کوي نوتردې حدیث لاندې راځي چې:من یری مني حدیثاویری انه کذب فهومن احدالکاذبین.[۱] نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې که څوک له ماڅخه کوم حدیث روایت کوي اودی په هغه باندې ښه پوهیږي چې هغه دروغ ده نودی هم یوله دروغ جنوڅخه دی. نوکه څوک یې ددې لپاره روایت کوي چې رد ورباندې وکړي بیایې روایت کول جوازلري

آیارقص په اسلام کې جائزدی اوکنه؟په دې اړوندالموسوعة الفقیة الکویتیه کې لیکلي دي چې په دریومذاهبوباندې رقص حرام دی،احناف،مالکیان اوحنابله.یواځې په شافعیانوکې ځینې علماءددې دجوازخبره کوي خومطلق رقص نه بلکه هغه رقص چې متصوفین یې دسماع په حالت کې کوي؛دریومذاهبوددې دول رقص دحرمت فتوی ورکړیده.

دیادونې وړده چې رقص په لومړي ځل په نړۍ کې سامري پیداکړیدی،کله یې چې خوسکی جوړکړهغه زمباړې کړې نوهلته خلک په رقص باندې راغلل؛له هغه وخت څخه په دنیاکې رقص پیل شو.

دصوفیانودرقص په اړوندزمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې لیکلي دي چې کوم جومات کې صوفیان یادتصوف په نوم جاهلان رقص وکړي نوبنایي چې دهغه جومات فرشونه راوویستل شي ځکه چې په هغوباندې لمونځ نه کیږي؛اوکوم جومات کې چې فرشونه نه وي نوبنایي چې دهغه جومات دتل خاوره راوویستل شي ځکه چې په هغې خاوره لمونځ نه کیږي.علامه علي قاري داخبره لیکلې ده؛بریقه چې په طریقه محمدیه باندې شرحه ده زمونږاحنافومعتمدکتاب دی او وسیله چې داپه طریقه محمدیه باندې شرحه ده دې دواړوکتابونوکې دامسئله لیکل شویده؛بل په مونږاحنافوکې علامه شامي لیکلي دي چې:والحق احق ان یتبع.[۲]یعني حقه خبره داده چې دمتصوفینورقص ناروادی،نوموړي په خپلودوکتابونوتنقیح الفتاوی الحامدیه اوردالمحتارکې داخبره لیکلې ده.

علامه طحطاوي په خپلودوکتابونوطحطاوي علی الدرالمختاراوطحطاوي علی مراقي الفلاح کې لیکلي دي چې دمتصوفینو لپاره رقص ناروادی نوموړي لیکلي دي چې دادسامري عادت دی؛الفقه الاسلامي

---

[۱] - صحیح مسلم ۱/۶-.

[۲] - والحق الذي هواحق ابلغ واحری انه یهان به بسمع ان ذالک کله من السیآت البدع حیث لم ینقل فعله عن السلف الصالحین ولم یقل بحله احدمن الائمة المجتهدین تنقیح الفتاوی الحامدیه ۲/۳۲۳-.

وادلته دعلامه حنفي فتاواى الاسعدیه کتاب الحظر والاباحة اوفتاواى بزازیه کې هم لیکلي دي چې دصوفیانو لپاره رقص حرام دى؛مبک الانهر،مجمع الانهراو بنایه کې لیکلي دي چې که څوک په تصوف کې کداکوي دهغه شاهدي نه صحیح کیږي؛ فتاواى عالمګریه کې لیکلي دي چې که حرکتونه موزون وي بیاجوازنه لري اوکه حرکتونه غیرموزون وي بیاخه پروانه کوي؛اوپه مالکي مذهبه علماوکي علامه ابواسحاق الشاطبي په کتاب الاعتصام کې لیکلي دي دمتصوفینورقص ناروا اوګناه کبیره ده.والله اعلم.

## دتقریریانعت ویلوپرمهال جزبه کول جوازنه لري:

کله چې یوعالم تقریرکوي یاکوم نعت خوان نعت وایي په دى وخت کې حینې خلک جزبې کوي،دبیلګې په توګه نعرې وهي یا دتکبیرآوازونه کوي یانورحرکات کوي،دادول عمل حرام دى شرعا جوازنه لري؛په شرح دسیرالکبیرلومړي جلدکي ددې لپاره باب خانګړى شوى چې په جهادکې دالله اکبرنعرې جوازلري اوکنه؟په دې اروندعلامه شمس الدین السرخسي لیکلي دي چې رفع الصوت دتلاوت پرمهال یادتقریرپرمهال لکه څرنګه چې دصوفیانو عادت دى ناروا ده.

علامه سیوطي په الامرفي الاتباع کتاب کې لیکلي دي چې رفع الصوت دتقریریاتلاوت پرمهال حرام ده؛نوموړي لیکلي دي چې له دې څخه خلک منعه کړي څکه چې دادسلفوپه زمانه کې نه وه؛نوموړي په دې اروندیوحدیث هم راوړى له حضرت عرباض ابن ساریه څخه یې نقل کړیدى چې هغه وایي:یوه ورځ نبي کریمﷺ دیرجزبه ناک تقریروکړهیڅ چاهم دالله اکبرنعرې ونه کړې.[1]نوموړى لیکلي دي چې له نبي کریمﷺ څخه خودیربلیغ څوک نشته؟علامه حماوي دکنزپه شرحه کې لیکلي دي چې دادول حرکات حرام دي؛علامه سیوطي دعین العلم په شرحه کې هم دغه خبره لیکلې ده؛اواعلام في تاریخ الهندمن الاعلام کې علامه عبدالحي هم دغه خبره لیکلې ده؛دیادونې وړده چې نوموړى هغه مشهور عبدالحى نه بلکه بل عالم دى.

---

[1] ومن ذلک الصیاح والتغشي عند سماع القرآن والوعظ وقد صح من حدیث العرباض بن الساریه قال: وعظنا رسول الله صلی الله علیه ... موعظة وجلت منها القلوب ودمعت منها العیون ولم یقل صرخنا ولاغشینا کما یفعله الجاهلون اهل البدع. کذا في الامر في الاتباع ... وتلبیس ابلیس لابن جوزي/۳٦۹. تخریج حماسي.

# دتوکل بیان.

په داسې بوټې باندې توکل کول چې هغه مل په سلوکې دانسان دنجات ذریعه وي لکه حوراک څښاک او داسې نور چې دانسان دمعشیت اسباب دي،که په دې دول شیانوباندې څوک توکل وکړي داتوکل ندی که په دې توکل کې مرشومرک یې هم خراب دی.لنده داچې په هغواسبابوباندې توکل کول چې په هغوبوری دانسان ژوندترلی وي ناروادی.

اصل کې توکل په ظني اسبابوکې وي،چې داګمان کیږي چې کیدلای شي چې دانسان ژوندی په هغه پوري تړلی وي؛د بیلګې په توګه:یوکسب کرووایی چې زه نورخپل کسب نه کوم پرته له دی به الله تعالی روزي راکړي؛له کسب څخه روزي حاصلول ظني دي نوعلماوليکلي دي چې په ظني اسبابوکې توکل جائزدی؛ اویو وهمي توکل دی چې داډول توکل ناروادی.

## حکایت.

په یوه زمانه کې دیوه سړي په کورکې وره خلاص شوی وه،هغه ژرندي ته داورروکولولپاره غنم وړي وه،دجمعې مبارکه ورځ وه،له کورڅخه یې خره هم وتلي وه دهغې په ویره کې هم وه چې حیوانات یې ونه خوري اوپه همدې ورځ یې له دیر وخت وروسته داوبونوبت هم رارسیدلی وه،دی سړي له خان سره فکر وکړچې کوم کارغوره کړم له خان سره یې وویل:چې راځه آخرت غوره کړه،تول کارونه یې پریښودل دجمعې لمانځه ته لاړ.

دالله تعالی عجیب نظام دی دده له پټي سره جخت دبل چاپټی وه،هغه چې کله خپل پټی اوبه کاوه دده پټي ته هم سوری شوی وه دده پټی هم تول اوبه شوی وه؛ژرنده کې چې ددې سړي کوم غنم وه هغه بل سړي په غلطي کې بارکړی وه خپل کورته یې وړي وه،کله یې چې په کورکې کتلی وه پوی شوی وه چې دابارخوزمانه بلکه زمادګاوندی دی هغه یې ده، کورته راوړی وه؛اوخریې هم بیرته کورته په خپله راغلي وه؛داسړی چې کله دجمعې له لمانځه څخه راغي چې ګوري تول کارونه په خپله شویدی نوڅوک چې دالله تعالی عبادت غوره کړي نوالله تعالی به داسې نیکه بدله ورکړي.

# په قیامت کې به دانسان خپل اندامونه شاهدي وایي:

الله تعالی قرآنکریم کې فرمایلي دي: { وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ }[١]

مفسرینو فرمایلي دي د دې آیت کریمه لپاره په تیرکې یو ژوندی مثال وړاندې کړیدی چې له نن څخه پنځه اویا کاله وړاندې تحقیق په جلا رسینه توګه یو هلک په یوه جینۍ پاندې مین وه هغه مرحلې یې له هغې جینۍ څخه له نه سره نوانه کوټو عریضه کړی وه هرځل به هغې جینۍ ننه خواب ورکاوه او وړنه وڅه نه یې چې زه ته یو هلتونې جینۍ یمه اونه یوکوڅه نه انسان یې هیڅکله زه نه تاسره واده نه کوم.

بالاخره دې هلک ته غوسه ورغله له ځان سره یې یو خنجر راواخیست او دې جینۍ ته یې په شپه کې لاړه وڅوله کله چې ناڅاپې راغله هلک په خنجر پښلو ووهله په دې سره هغه مړه شوه، هلک خنجر یې حمکه وغورځوه خپله په تیښته بریالی شو خو دا هلک هیڅ چاهم ونه لیده، څه وخت وروسته نیسي سمې ته پولیس ورغلل هغوی شا اوخوا وکرځیدل هغه خنجر یې پیداکړچې ورباندې د دګوتو نقشونه هم وریاندې وه، خنجر یې له ځان سره واخیست هغه دګوتو نقشونه یې له ځان سره په کمپیوترکې ثبت کړل.

په جاپان کې داسې عادت دی چې په کال کې دوه ځلې لوچکان خلک نمیلي لپاره په هوټلونوکې راغونډیږي،کله چې ننوی میله وه پولیس ننوی میله ځای ته ورغلل،دټولوخلکودګوتونقشونه یې واخیستل نمجرم په فکرکې هم دانه راتلل چې زمادګوتونقش دی له وړاندې څخه له نوی سره موجودوي؛ کله چې پولیسودډی خلکوګوتي په کمپیوترکې وکتلې نوئلته ندې مجرم کوته راووتله، پولیس بیرته راغلل هغه مجرم ته یې وویل:چې ته راځه؛مجرم ورته وویل:چې ئڅه لپاره مابیایې؟ پولیسو ورته وویل:چې تاپوه معصومه جیلی مړه کړی،مجرم حیران شودوی ته یې وویل:چې تاسی چاخبرکړي؟پیریانو درته وویلي،پرښتودرته وویلي،جیلی بیرته راژوندۍ شوه هغې ورته وویلي؟الله تعالی په دونیاکې هم خپله وعده رښتونې کړه چې:وتکلمناایدیهم الخ.دجاپان پولیسوته چاویلي وه چې داجیلی دی هلک قتل کړی خودده خپل لاس په دې باندې ګواهي وکړه چې داجینۍ ده قتل کړیده؛ بیاهغوپولیسوهغه مجرم هلک اعدام کړ؛نوئلته لاس خبرې وکړې یاباالنطق یاباالحال.اودهر انسان دګوتي نقش دبل انسان له ګوتي سره ندی برابر،څومره دالله تعالی عجیب نظام دی.

---

[١]- سورة یس/٦٥.

## په قیامت کې به لومړی له څلورپایانوسره حساب کیږي:

کله چې دحشرګاه میدان ته دالله تعالی ټول مخلوق راغونډشي،نولومړی به الله تعالی له څلورپایانوسره محاسبه وکړي؛ کذاقال علامه سیوطي. ترحساب وروسته به هغه ټول بیرته خاورې کیږي یواځې څومحدودحیوانات دي چې هغوی به الله تعالی جنت ته بیایي،چې ځینې له هغوڅخه په دې ډول دي. دحضرت اسماعیل ﷺ پسه،دحضرت صالح ﷺ غوا،داصحاب کهفوسپی،دحضرت عزیر ﷺ خر،دنبي کریم ﷺ اوښ اوداسې نور. غمض العیون والبصائرکتاب کې لیکلي دي چې چې انلس حیوانات به الله تعالی جنت ته بیایي؛دلانبه تحقیق لپاره یادشوی کتاب ته مراجعه وکړی.

## ټول انبیاءحوضونه لري خودنبي کریم ﷺ حوض ترټولولوی دی:

الله تعالي په نبي کریم ﷺ باندې بې شمیره نعمتونه کړیدی چې له هغونعمتونوڅخه حوض کوثردی،کوم چې دحشرپه میدان کې هغه ته ورکول کیږي؛دحوض کوثرژوروالی او اوږدوالی به په زرګونومیله وي اوپه دوناووکې به دجنت له نهرڅخه اوبه ورته راځي.[1]

تفسیرابن جریرکې تردې آیت کریمه لاندې چې{ إِنَّآ أَعْطَيْنَٰكَ ٱلْكَوْثَرَ }[2] لیکلي دي کله څوک په خپلوغوږونوکې ګوتې ورکړي،نویوډول آوازاوري چې دادکوثرداوبوشنهس دی.

## دجنت بیان.

دجنت شتون حق دی اوپه هغه باندې ایمان درلودل فرض دي،چې دهغه اوږد والی اوپراخوالی د حد اوحساب له اندازې څخه اوښتی دی.[3]

هادي الارواح الی بلادالافراح کتاب کې لیکلي دي چې جنتونه وه ندي،اصل کې ټول یوجنت دی خوپه اعتباردصفتونوسره بدل دي؛دبیلګې په توګه کوم شیان چې په یوه جنت کې شته په بل کې بیانشته،لنده داچې مکان یودی خودصفاتوپه اعتبارله یوبل سره توپیرلري.علامه سیوطي په

---

[1] - عن ابن عباس قال:الكوثر الخيرالكثيرالذي اعطاه الله اياه –صحيح البخاري۲/۹۷۴-. عن انس قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم دخلت الجنة فاذا انا بنهر يجري حافتاه خيام اللؤلؤ فضربت بيدي الى مجرى الماءفاذامسک اذفرفقلت لجبريل ماهذا؟قال:هذاالكوثرالذي اعطاكه ربک عزوجل-المستدرک على الصحيحين۱/۱۱۶-.

[2] - الكوثر/۱.

[3] - وسارعوا الى مغفرة من ربكم وجنة عرضهاالسموات والارض اعدت للمتقين-(سورة ال عمران/۱۳۳). الجنة حق والنارحق لان لايات والاحاديث الوارده في اثباتها اشهرمن ان تخفى واكثرمن ان تحصى –(شرح العقائد/۱۰۵)

البدور السافره کي لیکلي او علامه قرطبي په التذکره کي لیکلي دي چې حسوبه وه دي او دا روایت یې هم کړ یادي چې څلور دي،دا هم په دې باندې دلالت کوي چې په صفاتوکي توپیر دی والله اعلم بالحال

## جنت کې ساز

په جنت کې به یو ډول ونې وي چې کله به هغوباندې باد لګیږي نوله هغوڅخه به ښکلې اوازونه کېږي،حورې به په ډېر ښکلي اوازباندې سندرې وایي چې په دنیاکې هغسې اوازله سره نشوی نه لري.ساز هم یو ډول علم دی چې انسان په طرب اوښکلې راولي،دخوښۍ هغوته پیداکېدلوکې ډیر زیات تاثیر لري،همدارنګه په جنت کې به مرغان ډول ډول اوازونه کوي اوپه سترګو به داسې ښیاپېرې کوي چې په دنیاکې به چادهغوشیانوتصور هم نه وي کړي.

## دجنت حورې به ددنیادښځوپه څیر وي.

ایادجنت حورې به ددې نړۍ دښځوپه څیر وي اوکه په کوم بل صورت؟په دې اړوندعلماولیکلي دي چې صورت به یې ددې نړۍ دښځوپه څیر وي خوهغه دالله تعالی یوبل ډول مخلوق دی

په جنت کې به الله تعالی یوه جنتي ته دومره قوت ورکړي چې په یوه وخت کې به له سلوښځوسره معامله کولای شي،بیابه هم څه اثرنه ورباندې کیږي؛کذافي هادي الارواح للعلامه ابن قیم وبدور السافره للعلامه سیوطي

او ایاپه جنت کې به له جماع څخه وروسته غسل وي اوکنه؟ددې لپاره علامه سیوطي بدور السافره کې خانګړی باب راوړی هلته یې یوحدیث راوړی چې کله څوک په جنت کې جماع وکړي نو غسل نشته ورباندې؛علماولیکلي دي چې غسل ځکه نه لازمیږي چې هلته له سړي څخه مني نه وځي دبادپه ډول یوشې ورڅخه خارجیږي چې په هغه سره یې اشتها ماتیږي.

بل داچې په جنت کې به هرڅوک دخپل طبیعت موافق کارکوي،له کوم شي سره چې دچامینه وي هغه کاربه کوي؛علمابه خپلی مطالعې کوي ځکه چې په جنت کې هم علماوته اړتیاشته،هره جمعه به الله تعالی جنتیانوته وایي چې له ماڅخه غوښتنه وکړئ هغه به زه درکړم؛نوربه دجنتیانو غوښتنې حتمې شي له علماوڅخه به پوښتنه وکړي چې نور دڅه شي غوښتنه وکړو؟علماوته به علم وي هغوی به ورته وایي:چې د دې دې شیانو غوښتنې وکړئ.کذافي البدور السافره للعلامه سیوطي.

# جنتیان به په عربي ژبه خبرې کوي

له حدیث شریف څخه څرګندیږي چي جنتیان به په عربي ژبه خبرې کوي.[1] اودجنت ددروازو رمزبه سبحان الله وي لکه اوس مهال چي دهرچا موبایل اوکمپیوترخانګرې رمزلري،نوپه جنت کي چي کله جنتي سبحان الله ووایي.نودروازه به ورته خلاصیږي.[2]

## په جنت کي حقیقي خوندونه دي:

په جنت کي چي کوم خوندونه دی هغه حقیقي خوندونه دي،په دنیاکي له سره خوند نشته،که څوک وایي:چي په دنیاکي ولې خوندنشته؟کله چي یووړی دودی خوري څومره خوندورکوي؟مونږددی لپاره خواب کووچي داخوند ندی سره له دي چي مونږته خوندبښکاري خو اصل کي دا ازاله(لرې کیدل)ددرد دي،کله چي څوک وږی وي هغه ته یودول تکلیف وي کله چي خوراک وکړي هغه تکلیف یې لرې شي،خوپه جنت کي سل په سلوکي لذت اوخوند دی.

## دحدیثینوترمینځ تطبیق:

بدورالسافره کتاب کي علامه سیوطي لیکلي دي چي په دې اروندحدیثونه معارض راغلي چي دحشرمیدان ته به دالله تعالی مخلوق څه ډول پورته کیږي؟څینواحادیثوکي راځي چي:حفات عرات عرلا به وي.[3]یعني لوڅ بدن اولوڅي پښي به پورته کیږي،اوپه څینونوروااحادیثوکي ددې خلاف راغلي دي،دبیلګي په توګه:حاکم په مستدرک کي یوحدیث راوړیدی بیایي لیکلي دي چي داحدیث علی الشرط الشیخین دی اوامام ذهبي هم . اتفقه ورسره کړیده چي:کله حضرت ابي سعیدالخدوري وفات کیده ویې ویل:چي ماته نوې جامي راواغوندی څکه چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي:چاچي دمرګ په حالت کي نوې جامي اغوستي وي هغه به په حشرکي په هغوجاموکي راپورته کیږي.[4]

---

۱ - احبوالعرب لثلاث:لاني عربي،والقرآن عربي،ولسان اهل الجنة في الجنة عربي- رواه الطبراني في الكبير والحاكم والبيهقي في الشعب الايمان انظرمنتخب كنزالعمال۸ ۰ ۵/۳ .

٢ - وسيق الذين اتقوا ربهم الى الجنة زمراحتى اذاجاءوها وفتحت ابوابها (الزمر/۷۳)

٣ - عن ابن عباس عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:انكم محشورون حفاة عراة غرلا ثم قراكمابدانا اول خلق نعيده وعدا علينا اناكنافاعلين.متفق عليه وشكاة المصابيح۲/۲۸۳ .

٤ - عن ابي سعيدالخدري انه لماحضره الموت دعا بثياب جديد فلبسها،ثم قال:سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول:ان الميت يبعث في ثيابه التي يموت فيها.هذاحديث صحيح على الشرط الشيخين.المستدرك على الصحيحين ۱/٤۹۰ .

له دې حدیث څخه معلومیږي چې خلک به په جاموکي راپورته کیږي،دیرو علماوددې حدیثونوترمینځ تطبیق کړیدی خوتر ټولوښه تطبیق امام بیهقي سنن الکبری کي کړی هغه داچي اولیاءنیکان اوښه خلک به له جاموسره راپورته کیږي،ځیني علماءوایي:چې شهداءبه هم له جاموسره راپورته کیږي ځکه له کالیوسره دفن کیږي،دقیامت په ورځ به له ځپلوجاموا وینوسره دالله تعالی حضورته دریږي.علامه مظهري هم تفسیرمظهري کي همداتطبیق کړیدی.

## دذریې بیان.

کله چې الله تعالی دآدمؑ له شا څخه دهغه ټوله ذریه راوویستله،ددنیاله ابتداءڅخه ترانتهاءپوري چې څومره خلک دي هغه ټول الله تعالی دحضرت آدمؑ له شاڅخه راپیداکړل نوالله تعالی له هغوی څخه پوښتنه وکړه چ:الست بربکم آیازه ستاسو رب نه یم؟هغوی ټولوپه یوه آوازخواب ورکړچې:بلی انت ربنا.[1]یعني ته زه مونږه رب یې.په دې کې دعلماو اختلاف دی چې داسوال اوځواب په کوم ځای کې وه؟په دې اړوندعلامه عبدالوهاب شعراني چې داپه وادي النعمان کې وه؛ چې داعرفات ته نږدې دیوه ځای نوم دی.

که څوک پوښتنه وکړي چې له حضرت آدمؑ څخه دهغه ذریه(اولادونه)څه ډول راووتلل؟په دې اړوندعلماولیکلي دي چې دمساماتوله لارې دحضرت آدمؑ ذریه دکوچنیوانسانانوپه شکل راووتله،مسامات هغوکوچنیوسوریوته ویل کیږي چې دانسان له ویښتانوڅخه لاندې وي چې له هغوسوریوڅخه دانسانانوخولې هم راوځي.عالم د ذرځکه ورته ویل کیږي چې دا انسانان دمیږیانوپه څیرکوچني وه.[2]

په دې اړوندچې آیادوی صورت ربنتیاهم دانسانانوپه څیروه اوکه په کوم بل صورت؟علامه شعراني لیکلي دي چې په دې اړه څه معلومات نشته.اوآیادوی عقل اوروح درلود اوکنه؟په دې اړوند علماولیکلي دي چې دوی عقل اوروح دواړه درلودل؛ هلته له دوی ټولوڅخه الله تعالي پوښتنه کړې چې:است بربکم.دوی ټولوپه یوه آوازخواب وکړچې بلی.یعني هوته زمونږرب یې؛په عالم دذرکي له ټولوانسانانوڅخه الله تعالی عهداخیستی.

که څوک اعتراض وکړي چې که عالم دذرحق وی نو ولې زمونږپه یادنده؟ددې لپاره علماءځواب کوي چې داخوله دې سره منافي نه ده چې عالم د ذرندی شوی،ځکه چې دیرداسې حالات په انسان

---

[1] - واذا اخذ ربک من بني آدم من ظهورهم ذریتهم واشهدهم علی انفسهم الست بربکم قالوابلی-(سورة الاعراف/۱۷۲)

[2] - عن ابي هریرةؓ لما خلق الله آدم مسح ظهره فسقط من ظهره کل نسمة هوخالقها یوم القیمة امثال الذر ثم جعل بین عیني کل انسان منهم وبیضامن نورثم عرضهم علی آدم فقال:من هؤلاء یارب؟قال:هؤلاءذریتک-جامع الترمذي کتاب التفسیر- رقم الحدیث ۳۰۷۶.

باندي تيرشويدی چې هغه دانسان ندي په ياد،انسان ته دخپل ورکتوب حالت به يادیږي نو عالم ذر به څرنګه ورته يادښي څکه چې دورکتوب له حالت څخه کم وخت وتلي اوله عالم ذرڅخه ډيرزيات وخت وتلي دي.

خوځيني علماءوايي چې عالم دذرزمونږپه ياد دی،يوله هغوڅخه حضرت علي ابن ابي طالب دی هغه وايي چې عالم د ذرکي چې الله تعالی له خپلوبندګانوڅخه کوم عهد اخيسته هغه زمانه ياد دی،نوموړی وايي چې داهم راته ياد دي چې هلته زمانښي طرف ته څوک ولاړوه اوچپ طرف ته مې څوک ولاړوه.بل له دی علماوڅخه ذونون مصري دي هغه هم وايي چې عالم دذرزمانه ياد دی، کله چې الله تعالی وويل:الست بربکم.انسانانوځواب ورکړچې:بلی انت ربنا.نوموړی وايي چې هغه آوازتراوسه زمانه ياد دی.اوبل له دي علماوڅخه سهل ابن عبدالله التستري دی هغه وايي چې داخولاڅه کوی چې زما عالم ذرپه ياد دی،هلته ماخپل شاګردان هم پيژندل له هغه نيولي تراوسه پوری زه دخپلوشاګردانوتربيت کوم.

يوه حديث شريف کی راځي چې الارواح جنودمجنده فماتعارف منها ائتلف وماتناکرمنها اختلف.[1] يعني داروااګانو يولښکر دی که دچا روح په عالم ذرکي له يوبل سره ملګرتياکړی وي نوهغوی به په دنياکي هم ملګري وي.

## دوحي بيان.

وحي ډيرډولونه لري،دانبياوډول وحيه وي،داولياوبل ډول وحيه وي،دنوي عصرعلماوپه دی اړوندتحقيقات کړی چې ترټولوښه تحقيق په المناهل العرفان دعلامه زرقاني کي دی،نوموړي دخپل کتاب په لومړي جلدکي باب اينبي باب المعرفة الطاحنه هلته يې دتنويم المقناطيسي بحث کړيدی تفسيرالمناراوجواهرالقرآن کي هم په دي اړوندتحقيق شوی چې تنويم المقناطيسي يوډول خوب دی چې منوم يوڅوک دخپلوسترګوپه واسطه ويده کوي يعني په خپلوسترګو ورته ګوري دهغه دسترګوپه واسطه هغه بې هوښه شي اوپه څمکه باندي وغورځيږي،اورسته له دي هغه څوک چې هغه يې ويده کړی هغه چې هرڅه ورباندي وکړي کولای يې شي.

نن صبا په نړی کي داعلم ډيرمروج دی،يوځل چې ويده کونکی هغه ته داستغراق کتل وکړي هغه په تنويم المقناطيسي باندي ويده کړي،اودويده شوی سری نوم په تنويم المقناطيسي کي وربدل

[1] - صحيح البخاري رقم الحديث ۳۲۲۶. ورواه مسلم في الصحيحه- ۲/۳۳۱.

کړي،دبیلګي په توګه:دیوچانوم محمدعظیم وي خوچي کله هغه په تنویم المقناطیسي باندی ویده کړي اونوم وربدل کړي،بیاچي کله دی په هوش کي راشي چي څوک ورته ووایي: محمدعظیمه بودی نه وایي چېر محمدعظیم څوک دی؟زماخوفلانکی نوم دی کوم چي په تنویم المقناطیسي کي وربدل سوئدی.دادومره زیات پرمخ تللی علم دی په نړس کي داهم دوحی لپاره یودلیل دی کله به چي حضرت جبرئیل دالله تعالی له لوري وحیه راوړه هغه به یي دنبي کریمﷺ زړه ته وربلنوټ کړه صحابه به نه وربادي پوهېدل دتنویم مقناطیسي هم دغسي مثال دی سنوم چي دمنوم په زړه کي څه زګرځي وراچوي یې خوسورخلک نه ورباندي پوهیږي.

اوبل داچي خیني وختونه وحیه دالهام په شکل وي چي داهم دوحي یوډول ده؛علامه ابن العربي په فتوحات مکیه کي لیکلي دي چي زمایه زمانه کي یوه بي وزلي ښځه وه،زماشاګرده هم وه،یوه ورځ په خوب کي چا په لاس کي څه شي ورکړی وه کله چي له خوبه څخه بیداره شوه نو هغه لاس یې بندپاتي وو نه خلاصېده،هغي ښځي ویل چي مایه خوب کي ولیدل چي دمحشرګاه میدان وي خلکونه داعمالوپارچي ورکول کیږي ماته هم داعمالوپارچه راکړل شوه؛خوسهارچي کله راویښه شوم لاس مي بندپاتي وه،دهغي زماني چي څومره داکټران وه هغوی تولوکوښښ پری وکړخودهغي ښځي لاس خلاص نه شو.ابن عربي وایي چي زمایه زړه کي الله تعالی الهام وکړ مادي ښځي ته وویل چي ته له خان سره کلک هودوکړه چي داکاغذبه زه په خپله خوله باندی تیروم اوهیڅ چاته بي هم نه ورښایم؛بیاهغي ښځي همداسي وکړل لاس یې چي خولی ته یووړلاس یې خلاص شوهغه کاغذیې تیرکړ؛کیدلای شي چي په کاغذکي به څه الهي رازوه څکه یې لاس نه خلاصیده.

ابن عربي وایي چي له ماڅخه چاپوښتنه وکړه چي تاداچل له کوم ځای څخه زده کړ؟نوموري لیکلي دي چي ما ورته وویل چي دامام مالک په زمانه کي هم یوه داسي پېښه شوی وه،په هغه زمانه کي یوه ښځه مړه وه،بلي ښځي غسل ورکاوه، غاسلي ښځي دهغي مړي ښځي په فرج باندي خپل لاس ایښی وه اوداسي یې ویلي وه چي ای زناکارفرجه څومره زناګاني به دي کړي وي له دی سره دغاسلي ښځي لاس دمړي ښځي په فرج پسي ونښت،لاس یې له فرج سره داسي شولکه یوه غوښه؛خلکوداکټران ورته راوستل له علماوڅخه یې فتوی ګاني وغوښتلې؛حینوخلکونه ویل چي دفرج لریوسنکی ورسره پری کړی؛حصوونوروبه ویل چي دلاس لرغوښه ورسره بری کړی.امام مالک په دی وخت کي ددیارلسوکلونوپه عمرکي وه له هغه څخه یې فتوی وغوښتله هغه ورته وویل چي کیدلای شي چي دی غاسلي ښځي به دې وخت کي کومه بده خبره کړی وي غاسله ښځه دي الله تعالی نه توبه وباسي اوله مړي ښځي څخه دي معافي وغواړي.ښځي چي کله توبه وویستله چي یاالله تعالی

بدمې کړي بیاداسې نه کوم نولاس یې خلاص شو،امام مالک ته الله تعالی داحبره چې توبه دې وکړي الهام کړې وه.

علامه شعراني په الیواقیت والجواهرکتاب کې لیکلي دي چې خینې خلکوته وحیه یا الهام دکاغذپه شکل هم راځي؛ دبیلګې په ډول کله به چې قطیب البان یابقیه ابن مخلدته ته الهام کیده کله به چې دوی ویده وه ددوی له سر سره به خط پروت وه،خوهغه خط به الهي خط وه له نورورخطونوسره یې توپیردرلود فتوحات مکیه دعلامه ابن عربي اوالیواقیت والجواهر دعلامه شعراني کې لیکلي دي چې یو وخت کې یوساده سړی وه،له بیت الله څخه یې طواف کاوه،خلکوپه درواغو ورته وویل چې مونږته خوله اسمان څخه برائت خطونه راغلل،چې مونږبه الله تعالی په اورکې نسوزوي تاته هم داډول کاغذراغلی دی اوکنه؟ساده سړي داخبره ومنله دمیزاب رحمت لاندې ولاړوه،په زوره زوره یې ژړل، الله تعالی ته یې زاری کولی چې یاالله تعالی ماته هم برائت خط راولیږه،په دې وخت کې له آسمان څخه یوکاغذراوغورځیدچې په هغه کې دده لپاره برائت لیکلي وه؛هغه الهي خط وه له نوروخطونوسره یې ډیرتوپیردرلود هرطرف ته به چې واړول شولوستل کیده؛نوکله ناکله الهام دکاغذپه شکل هم وي.

## الهام حجت ندی:

آیا الهام حجت دی اوکنه؟په دې اړوند دعلماواختلاف دی خینې متصوفین علماءوایي:چې الهام حجت دیاوخینې نورعلماء وایي:چې الهام حجت ندی.والمختارعندالمحققین واهل سنت والجماعة چې الهام حجت ندی همداصحیح خبره ده.

## دنبي کریمﷺ له بعثت څخه وړاندې عبادت حجت ندی:

وړاندې له بعثت څخه نبي کریمﷺ دکوم دین پیروي کوله؟په دې اړونددعلماواختلاف دی بعضې علماوایي:چې دالله تعالی په مخلوق کې یې تفکریې کاوه.خینې علماءوایي:چې ذکریې کاوه. خینوعلماولیکلي دي چې دحضرت نوحؑ په دین یې عمل کاوه.بعضې علماءوایي:چې دحضرت آدمؑ دین یې چلاوه.خودډیروعلماورایه داده چې دحضرت ابراهیمؑ ددین پیروي یې کوله.کذاقال علامه عیني وعلامه ابن حجر.اوبل داچې هغه عبادت چې نبي کریمﷺ له بعثت څخه وړاندې کاوه هغه اوس ددې دین برخه ده اوکنه؟په دې اړه علامه عیني لیکلي دي چې دجمهورو علماومسلک دادی چې هغه اوس شریعت ندی.

# دمعراج بیان:

معراج په احادیثو ثابت دی او اسراء په قرآن کریم ثابت دی لکه چې قال الله تعالی [ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى ][1] له مسجد حرام څخه تر مسجد اقصی پورې شوي سیر ته اسراء ویل کیږي او له مسجد اقصی څخه پورته آسمان ته ختلو ته معراج ویل کیږي حتی خلک له معراج څخه منکرین چې معنوي معراج په منی سره له دې چې نبي کریم ﷺ دمعراج او اسراء په اړه پخه څو بیت کتابونه جوړ شویدي ځینو علماوو ویلي هم یکلي دي چې نبي کریم ﷺ شپږ ځلي څخه عروج کړیدی او نه ځلو څخه زیاتو صحابه و دمعراج کیسه روایت کړیده نو معراج بلکل ثابت دی.

# دمهرنبوت بیان.

دنبي کریم ﷺ داوږوترمنځ دنبوت مهروه،څوپه دې اړوند دعلماواختلاف دی چې په دې مهرکې څه لیکل شوي وه؟ځینې علماء وایي:چې محمدرسول الله ورباندې لیکل شوی وه،اوځینې علماءپه دې نوری خبری یکی کوي

دنبي کریم ﷺ دنبوت مهر لیوه خال په څیروه،چې دجسدله غوښې سره یې توپیرنه درلودد دنوروخلکوپه بدن باندې چې کوم خال وي هغه دنوربدن له غوښې سره توپیرلري،خودرسول الله دنبوت مهردهغه دبدن له غوښې سره یوشی وه.اودمهرنبوت په اړه چې کوم حدیثونه راغلي په هغواحادیثوکي اختلاف دی،بعضواحادیثوکي راغلي چې دهگۍ په شان وه[2] اوځینونورو احادیثوکي راغلي چې گرد دخال په شکل وه.[3] بیا شارحینوداسې تطبیق کړیدی چې کیدلای شي چې هریوه صحابي ته په بیلوبیلوشکلونوباندې ښکاره شوی وي.والله اعلم.

---

[1] - سورة اسراء/١.

[2] - سمعت سائب بن يزيد يقول:ذهبت بي خالتي الى رسول الله...فنظرت الى الخاتم الذي بين كتفيه فاذاهومثل زرالحجلة . عن جابر بن سمرة قال:رأيت الخاتم بين كتفي رسول الله غدة حمراء مثل بيضة الحمامة.(شمائل الترمذي/٢)

[3] - عن ابي نضرة قال:سألت اباسعيد عن خاتم رسول الله قال:كان في ظهره بضعة ناشزة . عن عبدالله بن سرجس قال اتيت رسول الله وهوفي الناس من اصحابه فرأيت موضع الخاتم على كتفيه مثل الجمع حولها خيلان كانهاالثأليل.(شمائل الترمذي/٣)

## آیادسیدنا ویل جوازلري؟:

علامه بن تیمیه،علامه ابن قیم او غیرمقلدین دالفظ بدعت گني،دوی دخپلي مدعی لپاره له یوه حدیث څخه استدلال کوي چې نبی کریمﷺ فرمایلي دي:لاتسودوني في الصلوة. یعنی ماسوما به درود ویلوکی سیدمه گنی.کشف الخفی دعلامه عجلوني کي لیکلي دي چې لم اقف علی سنده؛علامه سخاوي المصري هم المقاصدالحسنه کي لیکلي دي چې لااصل له.[1]

په دی اره ددنیالویو علماولیکلي دي چې دسیدنالفظ په درودکي ویل جوازلري؛ځکه چې له دی حدیث شریف څخه استدلال کیږي چې چې نبي کریمﷺ فرمایلي دي:اناسید ولد آدم یوم القیمه.[2] یعني زه به دقیامت په ورځ دحضرت آدم داولاد سیدیم.نو علماولیکلي دي چې دسیداطلاق په نبي کریمﷺ باندی کیږي،ډیروعلماداخبره لیکلی ده چې سیدنا ویل جوازلري منهم: علامه قسطلاني في مسالک الحنفاء،وعلامه سخاوي فی القول البدیع،وعلامه ابن حجرفي الدرالمندودفي الصلوة علی النبي المحمود،وعلامه نبهاني في سعادت الدارین.دلابنه تحقیق لپاره یادوشویوکتابونوته مراجعه وکړی .

## آیادخپل خان ستاینه جوازلري؟:

په دی اړوندعلامه سیوطي په التقریرالاسنادکتاب کي احادیث راوړي اوحافظ لبن ابي دنیا په کتاب الشکرکي احادیث راوړی چې دخپل خان ستاینه جوازلري خوپه دي شرط چې پرته له ریاڅخه وي.دلابنه تحقیق لپاره پورتنیوکتابونوته مراجعه وکړي.

## آیارسول اللهﷺ په فارسي ژبه خبري کړي؟:

ځیني علماءوایي:چې رسول اللهﷺ په فارسي ژبه خبری کړیدي،یوحدیث کتابونوکی راغلی چې:العنب یک یک وتمردو دو.خوداحدیث موضوعي دی.[3] اوبل حدیث په سنن ابن ماجه،مسند دامام احمدبن حنبل اوعمل الیوم والیله دعلامه ابن سوني کي روایت شویدی چې:حضرت ابي هریره وایي:زه یوه ورځ غرمه مهال نبي کریمﷺ ته ورغلم،رسول اللهﷺ په لمانځه ولاړوه زماخیټی دیر درد کاوه،په

---

[1] - حدیث لاتسیدوني في الصلوة،لا اصل له – المقاصدالحسنه ۱/۲۲۰-. رقم الحدیث ۱۲۹۲.

[2] - جامع الترمذي کتاب التفسیر ۲/۱۷۴-. رقم الحدیث ۳۱۴۸.

[3] - العنب دود دود یعني ثنتین ثنتین والتمریک یک یعني واحدة واحدة. لا اصل له-(المصنوع في معرفة حدیث الموضوع/۳۳. فقره ۲۰۰)

جومات کې ايحولو نې حولولیدم نبي کریمﷺ چې کله سلام وګرځاوه راته وې فرمایل اشکنب درد ماورته وویل نعم یونبي کریمﷺ راته وفرمایل چې لمونځ وکړه ځکه چې په لمانځه کې شفاء ده.

په دې حدیث باندې محدثینوتحقیق کړی بیایې لیکلي دي چې داحدیث ضعیف دی؛ولې داچې داحدیث نشه مرفوع ذکرشوی دوصحیح خبره داده چې داحدیث موقوف دی؛ددې راوي غلط شوی دی اصل کې داحدیث داسې دی چې مجاهد چې یوتوی تابعي تیرشوی هغه وایي چې حضرت ابي هریره لمونځ کاوه؛زه هغه ته ورغلم زماخیټې دیرزیات درد کاوه؛یه جومات کې ناوستم راتویدم،کله چې حضرت ابي هریره له لمانځه څخه فارغ شوماته یې وویل چې؛اشکنب درد.موږته وویل نعم.یواصل کې داحدیث موقوف دی

تیرحلي داسې وي چې یوحدیث په یوه سند مرفوع راغلي وي اوپه بل سند موقوف راغلي وي،نوپه هغه حدیث کې به تحقیق کیږي چې کوم سند صحیح دی؛نولکه صحیح خبره داده چې داحدیث موقوف دی،ځکه چې یوحوابي هریره فارسيان نه وه، نوولې له هغه سره نبي کریمﷺ په فارسي ژبه خبرې کولې؛اوامام مجاهدفارسیان وه ځکه حضرت ابي هریره ورته وویل چې اشکنب درد؟.الاجوبة المرضیه کې علامه سخاوي لیکلي دي چې داحدیث موقوف دی.زادالمعادکې علامه ابن قیم لیکلي دي چې داحدیث موقوف دی اوسره له موقوفیته ضعیف هم دی.[2]نوکیدلای شي چې نبي کریمﷺ به په فارسي ژبه خبرې نه وي کړي.اودفارسي ژبې په بدې کې چې کوم احادیث راغلي هغه حدیثونه ټول موضوعي دي مرفوع حدیث دفارسي ژبې په بدې کې ندی راغلی.

## دعربي ژبې غوره والی:

عربي ژبه په نوروژبوباندې غوره والی لري،که څوک عربي ژبه زده کوي الله تعالی به هغه ته ثواب ورکوي؛نورې ژبې هم که څوک دجهادلپاره یا داسلا دخدمت لپاره زده کوي بیاهم الله تعالی ثواب ورکوي؛خودعربي ژبې په نوروژبوباندې فضیلت شته.

---

[1]-عن ابي هریره انه قال:هجرالنبي صلی الله علیه وسلم فهجرت،فصلیت ثم جلست،فالتفت الی النبي صلی الله علیه وسلم فقال:اشکنب درد؟قلت نعم یارسول الله قال:قم فصل،فان في الصلوة شفاء -سنن ابن ماجه۲/۱۱۴۴-. رقم الحدیث ۳۴۵۸.

۲- وقدروی هذالحدیث موقوفاعن ابي هریره،وانه هوالذي قال:لمجاهد وهواشبه. ومعنی هذه اللفظة بالفارسي:ایوجعک بطنک زادالمعاد-۴/۱۹۲.

په مومنر احنافوکي علامه شامي ردالمحتارکي ليکلي اودرالمختارکي هم ليکلي دي چي دمجتهدلپاره يوشرط دادی چي هغه به په عربي ژبه واقف وي [۱] او ارشادالفحول في علم الاصول کتاب کي ليکلي دي چي په حينوروايتونوکي داسي راځي چي کله الله تعالى حضرت ادم ﷺ پيداکرنوادم ﷺ په جنت کي په عربي ژبه خبرې کولي،بيايي چي کله ګناه وکړه دنياته راکوزکړای شوبيايي په سورياني ژبه خبرې کولي،خوچي کله بيرته الله تعالى دهغه توبه قبوله کړه بيايي بيرته په عربي ژبي خبرې پيل کړې؛اوپه روايت کي راځي چي دحضرت آدم ﷺ ژبه لومړی عربي وه،بياوروسته سورياني ژبه هم ورسره يوځای شوه بيايي په سورياني خبرې کولي ترهغه وروسته بيرته دادم ﷺ ژبه په عربي بدله شوه.[۲] والله اعلم

# تولي ژبي زده کول جوازلري:

حضرت زيدابن حارثه وايي:چي نبي کريمﷺ ته کوم ليکونه راتلل،هغه تول په سورياني اوعبراني ژبه وه،هيڅوک هم نه ورباندی پوهيدل ترجمانانوبه مونږته غلطه ترجماني کوله؛ نوموړي وايي:چي بياني کريمﷺ ماته امر وکړچي ته عبراني ژبه زده کړه.[۳]داحديث امام بخاري اوامام ترمذي روايت کړيدی.

علامه ابوالفتاح ابوغده يوکتاب جوړکړی چي نوم يي دی الرسول المعلم هلته يي ليکلي دي چي په اسلام کي دتولوژبوزده کول جوازلري.التحفة الاحوذي اوالموسوعة الفقهيه الکونتيه کي هم دغه خبره ليکلي ده.خوکله چي دمسلمانانوارتياورته پيداشي بيا آن داستحباب مرتبی ته هم رسيږي؛علامه ابوالفتاح ليکلي دي چي اوس مهال دانګريزي ژبي زده کول ارين دي ځکه چي تول معاصرعلوم ترانګريزي پورې تړلي دي کذاقال الله تعالى:{وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا ٱسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ }[۴] په ځانګړي توګه

دانګريزي ژبي زده کول ارين دي ځکه اوس مهال اکثره وسلي کمپيوټري دي پرته له انګريزي ژبي په هغو باندي پوهيدل ستونزمن دی.خودانګريزي ژبي زده کول دهغه چالپاره جوازنه لري چي هغه

---

[۱] - قال تمرتاشي في المتن:للعربي فضل على سائرالالسن وهولسان اهل الجنة،من تعلمها اوعلمهاغيره فهو مأجور- وقال شامي وقد وردفي حب العرب احاديث كثيره يصيرالحديث بمجوعها حسنا....والمرادالحث على حب العرب من حيث كونهم عربا،وقديعرض لهم مايقتضي زيادة الحب بمافيهم من حب العرب من حيث كونهم عربا-ردالمحتار۹/٦۹۱-.

[۲] - اخرج ابن عساكرفي التاريخه عن ابن عباس ان آدم كان لغته في الجنة العربية فلما عصى سلبه الله العربية فتكلم باالسريانية فلما تاب رد الله عليه العربية كنافي المزهر في علوم اللغة للسيوطي۱/۳٦-. مخرج حماسي.

[۳] - عن زيد ابن ثابت يقول:امرني رسول الله صلى الله عليه وسلم اتعلم السريانيه-جامع الترمذي۲/۱۰۰-.

[۴] - سورة الانفال/٦۰.

یې په بدنیت زده کوي دېبلکي په توګه:دکفر دخدمت لپاره،دهغوی دغلامي لپاره اویادترجماني لپاره دانګریزي ژبې زده کول جوازنه لري.

## دمعجزې بیان.

معجزه دمفرد صیغه ده،اومعجزات دجمعي صیغه ده؛دمعجزې معنی ده عاجزونکی چې یوڅوک په داسي یوشي باندي راتګ وکړي چې نورخلک له هغه څخه عاجزوي.[١]دبیلګې په دول دسپوږمې دوه خایه کیدل:دادنبي کریم له لوړي معجزه وه؛ځکه چې نورخلک دداسي یوه کارله ترسره کولوڅخه عاجزدي.[٢]

حضرت محمدﷺترټولو روستنی نبي دی له هغه څخه ورسته بیاترقیامته بل نبي نه راځي؛که له نبي کریمﷺ وروسته کوم دروغجن دنبوت دعوه وکړي نوله هغه څخه دمعجزې اودلیل په غوښتلوسره هم انسان داسلام له دائرې څخه وځي؛ځکه چې داغوښتنه هم دنبوت په عقیده کي شک کول دي.[٣]

## دکرامت بیان.

کرامت هغه دعادت خلاف کار ته ویل کیږي چې الله تعالی یې دخپلونیکوبنده ګانوپه لاس دهغوی دعزت دزیاتولولپاره راڅرګندوي.دټولي نړۍ دعلماودارایه ده چې کرامت حق دی،خومعتزله اوغیرمقلدین کرامت نه مني.په غیرمقلدینوکي علامه شوکاني په دې اړوندمستقل کتاب جوړکړی هلته یې په کرامت باندي ردونه کړیدی؛همدارنګه دیرونورو علماوهم په دې اړوندکتابونه جوړکړیدی.

خوداهل سنت والجماعة داعقیده ده چې کرامت حق دی،په قرانکریم باندی هم ثابت دی اوپه احادیثوباندي هم ثابت دی؛ دلانسه تحقیق لپاره جامع کرامات الاولیاءته مراجعه وکړي هلته یې له سلوڅخه دزیاتوصحابه وڅخه په صحیح سندونوباندې حدیثونه روایت کړیدی چې له نبي کریمﷺ اوصحابه وڅخه کرامتونه صادرشویدي.

---

[١]- وتسمى المعجزه معجزة لان البشر يعجزون عن الاتيان بمثلها لانه امرخارق العادة –(التبيان في علوم القرآن/٩٣)

[٢]- وعن ابن مسعودقال:انشق القمرعلى عهد رسول الله فرقتين فرقة فوق الجبل وفرقة دونه فقال رسول الله:اشهدوا. متفق عليه –مشكاة المصابيح٢/٥٤٢-.

[٣]- قال:امام ابوحنيفه من طلب علامه فقدكفرلقول النبي صلى الله عليه وسلم:لانبي بعدي –(مناقب امام اعظم للامام البرازي/١٦١)

له حضرت خالدبن الولیدڅخه دیرموک په غزاکي خولي ورکه شوی وه،کله چي جګړه پای ته ورسیده نوموړي خپلوملګرو ته وویل:چي بیاجنګ کوڅ ځکه چي زماڅخه خولی ورکه شویده؛په دویم ځل بی دخپلوملګرویه مټ دیرسخت اومهلک جنګ وکړترڅویي چي هغه خولی بیرته وموندله؛ملګرو ورته وویل:چي دومره سخته جګړه دي ولي وکړه قربیه وه چي مونږدي ټول پکي شهیدان کړي وه؟ حضرت خالد ورته وویل:چي په دي خولی کي ما دنبي کریمﷺ مبارک ویښتان ایښي دي هروخت چي داخولی لماسره وي ددي په واسطه الله تعالی ماته فتحه راکوي.[1] داحدیث دعلم احادیثوپه دیروکتابونوکي موجود دی منهم:المستدرک علی الصحیحین،ومعجم الکبیرللعلامه طبراني، ودلائل النبوة للامام بیهقي،ومسندابویعلی الموصلي،والمطالب العالیه للعلامه ابن حجر ،والشفاءبتعریف حقوق المصطفی للعلامه قاضي عیاض،ونسیم الریاض، وایضافي مجمع الزوائد.

همدارنګه دیرونوروصحابه وهم له خپلوخانونوسره دتبرک لپاره دنبي کریمﷺ ویښتان ساتلي وه،حضرت ام سلمی سره هم دنبي کریمﷺ مبارک ویښتان وه،په یوه جلجل(شرنګاني )کي یي اچولي وه کله به چي څوک ناروغ وه،هغه ویښتان به یي په اوبوکي ورته اچول هغه اوبه به یي په هغه ناروغ باندی څښلي دهغواوبوپه واسطه به الله تعالی شفاورکره.[2] داحدیث امام بخاري روایت کریدی.

صحابه ود رسول اللهﷺ نوکان او ویښتان له خپلوخانونوسره دڅه لپاره ساتلي وه؟خودتبرک لپاره یي ساتلي وه کني دنبي کریمﷺ په ویښتانوباندی صحابه وڅه کول چي له خپلوخانونوسره یي ساتل؛حتی چي علماوداسي لیکلي دي:کادالصحابه ان یقتل بفضل وضوء رسول اللهﷺ.دنبي کریمﷺ له اوداسه څخه به چي کومي اوبه پاتي وی نږدي وه چي صحابه وبه په هغواوبوباندی جګړه کوله داتبرک وه که بل شي؟

حضرت عبدالله ابن عمربه چي کله درسول اللهﷺ په منبرباندي کیناسته،په کوم ځای به چي نبي کریمﷺ کیناسته لومړی به یي په هغه ځای خپل لاسونه کیښودل بیابه یي خپل لاس مچوکول.[3] کماهوالعادت فینا الیوم متی وضع ایدینا علی مساکن المتبرکه ثم تقبل ایدینا.غیرمقلدین اوخیني

---

[1] - حدثنا عبدالحمیدبن جعفرعن ابیه ان خالد بن الولید فقد قلنسوة له یوم الیرموک فقال:اطلبوها فلم یجدوها ثم طلبوها فوجدوها اذاهي قلنسوة خلقة،فقال خالد:اعتمر رسول الله فحلق رأسه وابتدرالناس جوانب شعره فسبقتهم الی ناصیته فجعلتها في هذه القلنسوة فلم اشهدقتالا وهي معی الارزقت النصرة- المستدرک علی الصحیحین۳/۳۳۸-. رقم الحدیث ۵۲۹۹.

[2] - عن عثمن بن عبدالله بن موهب قال:ارسلني اهلي الی ام سلمه بقدح من ماء وقبض اسرائیل ثلث اصابع من قصة فیه شعرمن شعرالنبي صلی الله علیه وسلم وکان اذا اصاب الانسان عین اوشئ بعث الیها مخضبة فاطلعت في الجلجل فرأیت شعرات حمراء- صحیح البخاري- ۲/۸۵۷.

[3] - وروی ابن عمرکان واضعا یده علی مقعد النبي صلی الله علیه وسلم من المنبرثم وضعا علی وجهه- الشفا بتعریف حقوق المصطفی۲/۱۲۷-.

متشددین وایي:چې دادول کرنه شرک ده،والله ما هذا شرک هذاعمل الصحابة. طبقات ابن سعد اوشفا دقاضي عیاض المالکي کې داحدیث راورل شویدی.

په تابعینوکې معبرهالم محمدبن سیرین چې نوموړی دهجرت په(۱۱۰)کال باندي له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړي، هغه وایي:چې زه یوه ورځ ام سلیم ته ورغلم چې هغه دحضرت انس موروه؛یووخت کې نبي کریمﷺ دهغې کورته ورغلی وه، دهغې په فرش باندی ویده شوی وه ام سلیم دنبي کریمﷺ دمبارک وجودخولې راټولې کړې وی په هغوباندی یې مسک لانده کړې وه؛ماهغې ته وویل:چې له هغومسکوڅخه لږماته راکړه کوم چې تادنبي کریمﷺ په خولوباندی لانده کړیدی؛ محمدبن سیرین وایي:چې بیایې ماته لږراکړل؛بیاهغه وصیت کړی وه چې کله زه وفات شوم نوزماپه عطروکې به دغه عطرکدوی کوم چې درسول اللهﷺ له مبارکوخولوڅخه جوړشویدی اوداعطربه زماپه کفن باندی هم وهی.[1] الیس هذالتبر ک بآثارالانبیاء لوکان هذالشرک لمایفعلون الصحابة والتابعین بتبرکات النبيﷺ.المطالب العلیه دعلامه ابن حجراوکتاب الثقات دعلامه ابن حبان البستي کې داحدیث روایت شویدی.

حضرت معاویه ابن ابي سفیان وصیت کړی وه،چې لماسره درسول اللهﷺ چین ده ماته به په هغې چینه کې کفن راکوی اولماسره دنبي کریمﷺ مبارک ویښتان اونوکان دی هغه به زماپه سترګواوخوله کې راکیږدي بیاما له ارحم الراحمین الله سره پریږدی.[2] البدایه والنهایه دعلامه ابن کثیراوتاریخ الخلفاءدعلامه سیوطي کې داحدیث راورل شویدی.[3]

اوحضرت انس بن مالک وصیت کړی وه چې ماسره درسول اللهﷺ نوکان دی هغه به زماپه خوله کې راکیږدی،اوزماپه عطروکې به هغه عطرکدکړی کوم چې دنبي کریمﷺ له خولوڅخه جوړشویدی.[4] ثابت البناني وایي:چې داوصیت یې ددې لپاره کړی وه چې الله تعالی ددی په واسطه سهلت وربانديې راولي.کذافي الاصابه في تمیز الصحابه للعلامه ابن حجرالعسقلاني.

---

[1] - عن ابن سیرین قال:استوهبت من ام سلیم من السک التي کانت تعجنها بعرق رسول الله فوهبت لي منه فلمامات محمدخطبذالک السک-المطالب العالیه۱۳/۳۵۹-. رقم الحدیث ۳۱۹۵.

[2] - ثم اعمدالی مندیل في الخزانة فیه ثوب من ثیاب رسول الله وقراضه من شعره واظفاره،فاستودع القراضه انفي وفمي،واذني وعیني،وجعل ذالک الثوب ممایلی جلدی دون لفافي،ویایزید احفظ وصیة الله في الوالدین،فاذا ادرجتموني في جریدتي ووضعتموني في حفرتي فخلومعاویه وارحم الراحمین -البدایه والنهایه۸/۵۳۷-.

[3] -اوصی معاویه ان یجعل في فمه وعینه قلامة اظفاره وشعرمن رسول الله صلی الله علیه وسلم وخلوبع ارحم الراحمین.کذافي تاریخ الخلفاء/۱۵۲.

[4] - المتوفي انس بن مالک جعل في حنوطه مسک فیه من عرق رسول الله صلی الله علیه وسلم -سنن الکبری للبیهقي۳/۵۶۹-. رقم الحدیث ۶۷۰۹.

# دتوسل بیان.

الله تعالی په قرانکریم کی فرمایلي دي چي: { يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱبْتَغُوٓا۟ إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ }[1] دا آیت کریمه په قرانکریم کي دوسیلي لپاره لوی دلیل دی،خو علامه ابن تیمیه ومن حزا حزو ابن تیمیه وايي:چي وسیله په اسلام کي څه اصل نه لري اوداشرک ده

وسیله دی ته ویل کیږي چي یوڅوک خپل نیک اعمال الله تعالی ته وسیله کړي،یاداالله تعالی یونیک بنده هغه ته وسیله کړي، دبیلګي په توګه:داسي ووایي:چي یاالله تعالی هغه فلانکی ستادوست دی زه هغه تاته وسیله کوم دهغه په واسطه زمامشکل حل کړی.

بیاداوسیله په څودوله ده،یوډول وسیله په صالحواعمالوسره ده چي داډول وسیله علامه ابن تیمیه هم مني؛بخاري شریف کي مشهورحدیث دی حدیث دغارورته ویل کیږي،چي دري کسان یوه غارته تللي وه بیاهلته تیره ورباندي راغلي وه،بیاهغوی خپل نیک اعمال الله تعالی ته وسیله کړی وه، دهغونیکواعمالوپه واسطه الله تعالی دوی ته نجات ورکړ.[2] په دی باندي دتولي نړی علماءقائل دي چي داډول وسیله جوازلري.

اوبل ډول وسیله په ذواتوفاضله باندي ده،چي دالله تعالی نیکان بندګان چي کله هغوی ژوندي وي هغوی الله تعالی ته وسیله کړي داهم علامه ابن تیمیه مني لکه چي حضرت عمرحضرت عباس الله تعالی ته وسیله کړی وه.[3] خودالله تعالی هغه نیکان بندګان چي هغوی مړه وي دهغوی الله تعالی ته وسیله کول ابن تیمیه ومن حزاحزوهم شرک ګني.آیا دعلامه ابن تیمیه خبره صحیح ده اوکنه؟

یوه حدیث شریف کي راځي چي بلال ابن الحارث المزيني صحابي وه دهجرت په اتلسم کال باندی چي دي کال ته عام الرمادهم وايي دنبي کریمﷺ قبرته راغی،نوموړی دنبي کریمﷺ له قبرسره نږدي ودریډ اوداسي يي وویل:چي یاالله تعالی دادنبي کریمﷺ قبرتاته وسیله کوم چي دي مبارک ستانازولی پیغمبردی دده په واسطه په مونږباندي باران وکړی؛همدا صحابي دشپي خوب ویني چي نبي کریمﷺ

---

[1]- سورة المائده/۳۵.

[2]- صحیح البخاري کتاب البیوع - ۱/۲۹۴. ورواه مسلم في الصحیحه ۲/۳۵۳-.

[3]- عن عمربن الخطاب قال في واقعة العباس اللهم انا کنا نتوسل الیک بنبینا صلی الله علیه وسلم فتسقینا وانانتوسل الیک بعم نبینا فا سقنا قال:فیسقون- صحیح البخاري۱/۱۳۷-.

په خوب کي ورته وايي باران به دربانَدي وشي خوته حضرت عمرته ووايه چي ته دیرسه یی اوبه دیرسه یی؛حضرت بلال ابن الحارث بیاداخپل خوب حضرت عمرته بیان کر[1]

نودوه صحابه شول یوحضرت بلال ابن الحارث چي توسل یي کري اوبل حضرت عمر چي ندده په توسل باندي خبرشویدی هغه هم له دي څخه منعه نده کري.داحادیثوپه دیروکتابونوکي داحدیث راورل شویدی منهم.مصنف ابن ابي شیبة وقال اسنادهذالحدیث اسنادصحیح،ودلائل النبوه للامام بیهقي،وفتح الباري للعلامه ابن حجر،والبدایه والنهایه للعلامه ابن کثیر الدمشقي وقال اسنادهذالحدیث اسنادصحیح،وتاریخ الامم والملوک للعلامه ابن جوزي،و وفاءالوفاءللعلامه سمهودي،وایضا سبل الهدی والرشاد.دی تولو علماوندي حدیث په سندباندي تحقیق کري بیایي لیکلي دي چي ددي حدیث سند ثابت دی. خوعلامه ابن تیمیه وايي:چي داحدیث ضعیف دی،دضعف وجه یی نه ده لیکلي چي ولي ضعیف دی.اوپه غیرمقلدینوکي علامه الباني هم لیکلي دي چي داحدیث ضعیف دی،ځکه چي ددي حدیث په سندکي مالک دار دی؛اوحال داچي مالک دارلوی تابعي او دحضرت عمردمالي وزیروه،که چیرته مالک دارضعیف سړی وی نو ولي حضرت عمرهغه خپل دمالیي وزیرتاکه.

بل په سنن دارومي کي یوعنوان راخي چي:باب مااکرم الله تعالی نبیه صلی الله علیه وسلم بعدموته.هلته یي یوحدیث راوري چي یوه وخت کي دیره قحطي راغله صحابه و ام المومنین حضرت عائشي ته وویل چي باران نه کیږي؛هغي ورته وویل چي داسمان لوري ته دنبي کریم ﷺ درپارت کرکي خلاصه کري؛بیاصحابه وهمداسي وکرل الله تعالی بارن ورباندي وکر.[2] داتوسل وه که بل شي؟داحدیث دعلم احادیثوپه دیروکتابونوکي موجود دی.

په دي اروند بل حدیث علامه طبراني په معجم الکبیر اومعجم الصغیر کتاب الدعا کي راوړیدی چي هغه حدیث دوه برخي لري مونږیي دلته هغه برخه ذکرکوو‌چي په هغه کي توسل شویدی،هغه داچي حضرت عثمان ابن حنیف صحابي وايي:چي دحضرت عثمان دخلافت په دورکي هروخت یوسړی دهغه دملاقات لپاره راته،هغه دیرمصروف وه ځکه یي ملاقات نه ورسره کیده؛حضرت عثمان ابن

---

[1] - عن مالک قال: اصاب الناس قحط في زمن عمر بن الخطاب فجاء رجل (بلال ابن الحارث المزني) الى قبر النبي صلى الله عليه وسلم فقال: يا رسول الله استسق الله لامتک، فانهم قد هلکوا فاتاه رسول الله في المنام فقال ائت عمر فاقرئه مني السلام واخبرهم انهم مسقون وقل له عليک بالکيس الکيس، فاتى رجل فاخبر عمر فقال: يا رب ما آلوا الا ما عجزت عنه. وهذا اسناد صحيح – البدايه والنهايه ۷/۹۸

[2] - حدثنا ابو الجوزاء قال: قحط اهل المدينة قحطا شديدا فشکوا الى عائشة فقالت: انظروا قبر النبي صلى الله عليه وسلم فاجعلوا منه کوى الى السماء حتى لا يکون بينه وبين السماء سقف قال: ففعلوا. فمطروا مطرا حتى نبت العشب وسمنت الابل حتى تفتقت من الشحم فسمي عام الفتق. سنن الدارمي باب ما اکرم الله تعالى نبيه بعد موته ۱/۲۲۷، رقم الحديث ۹۳.

حنيف وايي:چي ذاسړی ماته راغی چي زما له حضرت عثمان سره ملاقات نه کیږي نوموړی وايي:چي ماورته وویل چي لاړشه اودس وکړه بیا دوه رکعاته لمونځ وکړه بیاداسي دعا وکړه چي:اللهم اني اسالک واتوجه الیک بنبينا الخ.حضرت عثمان ابن حنيف وايي:چي کله دی سړی په نبي کریمﷺ باندي توسل وکړ،صبا راغی راته ویي ویل چي زما له حضرت عثمان سره ملاقات وشو.[1] په دی حدیث کي یوه صحابي چي عثمان ابن حنيف دی بل صحابي ته دتوسل امرکړيدی.بیاعلامه طبراني لیکلي دي چي اسنادهذالحدیث اسنادصحیح.کوم تعلیقات چي په دی حدیث باندی شویدي هغوکی هم لیکلي دي چي داحدیث صحیح دی.

دتوسل په اړه نورداسي نوراحادیث هم راغلي دي چي یوله هغوڅخه دحضرت ادم علیه السلام حدیث دی چي په نبي کریمﷺ یي توسل کړیدی.[2]

دعلامه ابن تیمیه خاص شاګردعلامه ذهبي په سیراعلام النبلا کي لیکلي دي چي یوخت کي په سمرقنداوبخاراکی قحطي راغله،دهغه ځای قاضي اوعلماوخلکوته وویل چي لاړشي دامام بخاري په قبرباندي توسل وکړي؛دامام بخاري قبر له سمرقندڅخه اته میله لرې دی،خلک هلته دامام بخاري قبرته لاړل هغه یي الله تعالی ته وسیله وګرځاوه؛نوموړی لیکلي دي چي بیاداسي باران وشوچي خلک وه ورځي له هغه ځای ځخه ددیرباړن په وجه خپلوکورونوته نشوی تللای.

په نړی کي قرنا فقرنا توسل شويدی،دټولي نړی محدثین علماءتوسل مني،په حنابله وکي ترټولولوی متشددعالم علامه ابن جوزي په زادالمسیرتفسیرکي په رسول اللهﷺ باندی توسل کړیدی هغه ددی کتاب په خطبه کي لیکلي دي چي:وبنبیک. علامه سیوطي،علامه ابن حجر،علامه قسطلانی،لنده داچي څومره علماءپه نړی کي تیرشويدی هغوی ټولوپه نبي کریمﷺ باندي توسل کړيدی.

امام شافعي چي ددنیالوی محدث دی هغه دامام ابوحنیفه په قبرباندي توسل کړيدی،تاریخ بغدادکي علامه خطیب بغدادي لیکلي دي،سره له دی چي نوموړی دامام ابوحنیفه له متعصبینوڅخه دی هغه له امام شافعي څخه نقل

---

[1] -عن ابي امامة بن سهل بن حنيف عن عمه عثمان بن حنيف ان رجلاكان يختلف الى عثمان بن عفان في حاجته له،فلقي عثمان بن حنيف فشكا اليه ذالک،فقال له عثمان بن حنيف:ايت الميضاة فتوضا،ثم ايت المسجد فصل فيه ركعتين،ثم قل:اللهم اني اسالک واتوجه اليک بنبينا محمدصلى الله عليه وسلم نبي الرحمة،يامحمدصلى الله عليه وسلم اني اتوجه بک الى ربک عزوجل فيقضي لي حاجتي،وتذكرحاجتک ورح حتى اروح معک فاانطلق الرجل فصنع ماقال له،ثم اتى باب عثمان فاجلسه معه على الطنفسة....ثم ان الرجل خرج من عنده فلقي عثمان بن حنيف فقال له:جزاک الله خيراماكان ينظرفي حاجتي- رواه الطبراني- (شرح كتاب قاعدة الجليلة في توسل والوسيلة/٥)

[2] - عن عمربن الخطاب قال:قال رسول الله:لما اذنب آدم عليه السلام الذنب الذي اذنبه رفع رأسه الى العرش فقال:اسالک بحق محمدصلى الله عليه وسلم الاغفرت لي-رواه الحاكم في المستدرک-(المفهوم الصحيح للتوسل/٣٩. رقم الحديث ٥)

کړيدی چې همه دامام صاحب په مناقبوکې ليکلي دي چې کله به په مابلدي کومه ستونزه راتله نو ره به دامام ابو حنيفه قبرته ورتلم دهغه قبرته مې الله تعالی ته وسيله کرځاوه په دې تول به الله تعالی زما ستونزه حل کړه

او په معتمدوبترينحوبوکې دامام طبراني واقعه راځي چې همه وايي بو وخت کې موبرډيروږي شولو درسول الله ﷺ قبرته ورغلوهغه موالله تعالی ته وسيله کرځاوموبرته خلکوډيری ډودی راوړلي ددغالوی محدثين په دې باندی قائل دي چې وسيله ثابته ده.دقرانکريم له دې ايت کريمه څخه هم دوسيلې دجواز استدلال کيدلای شي قال الله تعالی { وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ فَٱسْتَغْفَرُواْ ٱللَّهَ وَٱسْتَغْفَرَ لَهُمُ ٱلرَّسُولُ لَوَجَدُواْ ٱللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا }[1] دتوسل په اره دلاسه تحقيق لپاره شواهدالحق في الاستغاثه بسيدالحق کتاب ته مراجعه وکړی.

## بيلابيلي مسئلې.

ايابدعت کې حسن شته؟ په دين کې ديوه نوي شي راپيداکولوته بدعت ويل کيږي چې هغه درسول الله ﷺ اوصحابه وپه دورکې نه وي.اياټول بدعت ضلالت دی که بدعت کې حسن هم شته؟حيني علماءوايي چې بدعت کې حسن نشته،چې يوله هغوی څخه علامه ابواسحاق الشاطبي دی نوموړي په کتاب الاعتصام کې ليکلي دي چې ټول بدعت ضلالت دی.نوموړي دخپلې مدعی له پاره حديث څخه استدلال کړيدی چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي:کل بدعة ضلالة [2]

اوحيني علماء وايي چې بدعت کې حسن هم شته چې يوله هغوعلماوڅخه علامه عزالدين ابن سلام الشافعي دی هغه وايي چې بدعت په پنځه ډوله دی. اوپل امام شافعي وايي چې البدعت بدعتان يعني بدعت په دوه ډوله دی.هغه چيرته بدعت دشرعي له قواعدوسره برابروي هغه ته بدعت حسنه ويل کيږي اوکه له شرعي سره مخالف وي هغه بدعت ضلالت دی. [3] لدې دواړې نوموړی په بدعت کې حسن اوقبحه دواړه مني امام بيهقي دامام شافعي په مناقبوکې کتاب جوړکړی ماپه خپله هغه کتاب نه دی ليدلی خو علماوپه هغه کتاب باندی حواله کړيده چې هلته له امام شافعي څخه نقل شويدی چې هغه

[1] - سورة النساء/٦٣.

٢- عن جابر قال:قال رسول الله اما بعد فان خيرالحديث كتاب الله وخيرالهدي هدى محمد صلى الله عليه وسلم وشر الامور محدثاتها وكل بدعة ضلالة. رواه مسلم مشكاة المصابيح ١/٢٧

[3] - وكل بدعة صدرت من مخلوق فلا يخلو ان يكون لها اصل في الشرع اولا فان كان لها اصل فهي في حيزالمدح ويعضده قول عمرنعمت البدعة هذه والافهي في حيزالذم والانكار صفوة التفاسير ١/٧٨

وايي: بدعت په دوه دوله دی.حلية الاولياءکی هم ليکلي دي چي امام شافعي به ويل چي بدعت په دوه دوله ده.اوتاريخ الاسلام چي له معتمدوتاريخونو څخه ده هلته يي هم دامام شافعي په مناقبوکی همداخبره ليکلي ده.

هغه علماءچي هغوی په بدعت کي حسن مني هغوی دخپلي مدعی لپاره له دی حديث څخه استدلال کوي چي:من سن في الاسلام سنة حسنة فعمل بها بعده کتب له مثل اجرمن عمل بها ولاينقص من اجورهم شي؛ومن سن في الاسلام سنة سيئه فعمل بها بعده کتب عليه مثل وزرمن عمل بها ولاينقص من اوزارهم شي.[1] له حديث څخه صراحة څرګندېږي چي بدعت کي حسن شته. ددی حديث لپاره چي:کل بدعة ضلالة.علماءداسی ځواب کوي چي:کل بدعة ممالا اصل له في الاسلام ولافي الکتاب ولافي السنت ولافي الاجماع ولافي القياس ضلالة.له دی حديث سره علماوداقيود ذکرکړيدی ځکه ديری قياسي مسئلې دي چي هغه درسول اللهﷺ په زمانه کی نه وی کصلوة في الطيارة والصلوة في السيارة اويا له بيت الله څخه ګرد دريدل داټول هغه شيان دي چي دنبي کريمﷺ په زمانه کی نه وه؛سره له دي چي بدعت دي خوعلماوجائزبللي دي؛ځکه چي يابه مقيس عليه له کتاب الله څخه لري،يا به يي له احاديثو،اجماع اوقياس څخه لري؛مونږدامنوچي داذکرشوي امور بدعت دی خواوس يکي حسن ددی ځلوروادله وله لوري راغلي دي.کذافي الامرفي الاتباع والنهي عن الابتداع للعلامه سيوطي.

هغه علماءچي بدعت کي حسن نه مني هغوی اعتراض کوي چي حسن اوقبحه خوشرعي ده،نوداحسن څوک ورکوي دشارع په زمانه کي خودانه وه؟ترځواب وړاندي يوڅه وضاحت دذکرورډی هغه داچي زمونږدعلم فقهي په مسلم الثبوت کتاب کي يوبحث راځي چي حسن اوقبحه شرعي دي اوکه عقلي؟بياپه دي کي دری مذاهب دی يودمعتزله ومذهب دی هغوی وايي:چي حسن اوقبحه عقلي دي؛بل داشاعره ومذهب دی هغوی وايي:چي حسن اوقبحه شرعي دي؛اوبل دماتريديه و مذهب دی چي مونږاحناف هم په عقائدوکي دابومنصورماتريدي مقلدين يو،هغوی وايي:چي هغوی هم وايي:چي حسن اوقبحه شرعي دي خودعقل هم پکي دخله شته دبيلګي په توګه:زنا ته قبحه چاورکړيده؟معتزله وايي:عقل قبحه ورکړيده؛ اشاعره وايي چي شرعي قبحه ورکړيده؛اوماتريديان وايي:چي عقل هم وايي:چي زنا بدکاردی خودابد وای هلته ثابتيږي چي شرعه ورباندي راشي.لنده داچي حسن اوقبحه چي يوشي ته ورکوي هغه شرعه ده؛هغه څوک چي هغوی په بدعت کي حسن نه مني هغوی

---

1- صحيح مسلم کتاب العلم باب من سنة حسنه اوسيئه- ۲/۳۴۱.

حضرت موسی علیه السلام ته نجات ورکړیدی،نبي کریمﷺ وفرمایل چي:فانا احق بموسی منکم [1] له دی حدیث څخه صراحة څرګندیږي چي دور خولمانخل په اسلام کي جواز لري.

مخالفین ددی مرفوع حدیث په مقابل کي له یوه موقوف حدیث څخه استدلال کوی هغه داچي کله دا ایت کریمه رانازل شو چي:{ ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلْإِسْلَٰمَ دِينًا } [2] حضرت عمرته یوه کافروویل:که چیرته دا ایت زمونږپه باره کي نازل شوی وی نوموږ به داورځ لمانځلي وه،حضرت عمر ورته وویل چي ماته هم معلومه ده. [3] حضرت عمرنه ددی خبری رد اونه تایېدکړی،له دی حدیث څخه مخالفین علماء استدلال کوي چي په اسلام کي دورخولمانځل جوازنه لري.کله چي دموقوف حدیث له مرفوع حدیث سره معارضه راشي نوترجیح مرفوع حدیث ته وي؛ په مرفوع حدیث کي داسي راغلي دي چي رسول اللهﷺ به دحضرت موسی علیه السلام دنجات ورځ په عبادت باندي لمانځله،که دورخولمانځل په اسلام کي نارواوی نو ولي رسول اللهﷺ دموسی علیه السلام دنجات ورځ په عبادت باندي لمانځله؟ درسول اللهﷺزیږیدنه هم یوه لویه نیک بختي ده،یولوی انعام ده؛اودانعام په مقابل کي شکرانه کي واجب وي موږهم ددی انعام شکر اداکوو،چي په دی ورځ باندي صدقي اوخیراتونه کوو،وعظ اوتقریرکوو؛نو ولي ددي لمانځل ناجائزدي؟کذاقال ابن حجر.

علامه ابن رجب الحنبلي په خپل کتاب لطائف المعارف کي درسول اللهﷺ دمیلاد لپاره خانګری باب ایښی هلته یي لیکلي دي چي دنبي کریمﷺ میلاد په قرانکریم باندي ثابت دی کماقال الله تعالی:{ لَقَدْ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ } [4] ژباړه: الله تعالی انعام کړیدی په مسلمانانوباندي چي په دوی کي یي ددوی له جنس څخه رسول پیداکړیدی.درسول اللهﷺ پیدایښت انعام دی اودانعام شکر واجب وي نوموږخوهم په دي ورځ باندي ګدانه کوُ خیراتونه اوصدقي کوو؛نودمولود لمانځل په قرانکریم باندي هم ثابت شو.

---

[1] - عن ابن عباس قال:قدم النبي صلى الله عليه المدينة فرأى اليهود تصوم يوم عاشورا فقال ماهذا قال:هذايوم صالح هذايوم نجى الله بني اسرئيل من عدوهم فصامه موسى قال:فانا احق بموسى منكم فصامه وامربصيامه-صحيح البخاري- ١/٢٦٨ .

[2] - سورة المائده/٣ .

[3] - عن طارق بن شهاب قال:قال رجل من اليهود لعمريا اميرالمؤمنين لوان علينا نزلت هذه الاية اليوم اكملت لكم دينكم واتممت عليكم نعمتي ورضيت لكم الاسلام دينا لاتخذنا ذالك اليوم عيدا فقال عمر:اني لاعلم الخ- صحيح البخاري١٠٧٩/٢ .

[4] - سورة ال عمران/١٦٤ .

علامه سیوطي په دی ارونده مستقل کتاب حورکړی چې نوم یې دی حسن المقصد في عمل المولد نوموړي په دی خپل کتاب کی دمیلاد دثبوت لپاره له یوه حدیث څخه استدلال کړیدی چې کله رسول اللهﷺ په رسالت باندی مبعوث شو نوله خپل ځان څخه یې عقیقه وکړه[1] نوموړي لیکلي دي چې له دی حدیث څخه دمیلاد دثبوت لپاره استدلال کیږي ځکه چې درسول اللهﷺ عقیقه خو دهغه نیکه کړې وه،کله چې رسول اللهﷺ په ځان باندی یوه شوچې ره دځلکولپاره انعام یې او الله تعالی په ما باندی لوی انعام کړیدی نوددوی خل لپاره یې دخپل ځان عقیقه وکړه خو ځینې علماء وایي چې داصحیح حدیث ندی،مجمع الزوائد اوطبراني کی لیکلي دي چې ددی حدیث ټول رجال ثقات دی خو یو سړی چې پکی راغلی هغه دبخاري له رجالو څخه ندی خو هغه هم ثقه سړی دی.

په مسلم شریف کي یوحدیث راځی چې له رسول اللهﷺ څخه چاپوښتنه وکړه چې موږ ددوشنبې په ورځ روژه ونیسو؟نبي کریمﷺ ورته وفرمایل:هو ځکه چې په دی ورځ باندی زه پیداشوی یم[2] له دی حدیث څخه هم علماءاستدلال کوي چې دمیلادلمانځل جوازلري.

خودیرداسی علماء دي چې هغوي میلاد نه مني،لکه علامه ابن تیمیه اودهغه ملګري،نوموړي په اقتضاءصراط المستقیم کتاب کي په مولود باندی ردکړیدی،علامه شاتبي هم په کتاب الاعتصام کی په مولود باندی رد کړیدی اوخینی ددیوبند روستني علماء هم مولود نه مني؛خوموږدهردیوه دیوبندي خبره نه منو،ددیوبند په عقیده کی چې کوم کتاب جوړدی هغه ته به مخ وروګرځوو؛المهند علی المفند دادعلامه خلیل احمد سهارنپوري کتاب دی،ددې کتاب معني داسي ده،المهند:هندی توره. علی المفند به دروغجن باندی. په یوه زمانه کی چا ددیوبندعلماوپسی افتراءکړی وه،چې دوی دیربدعتی خلک دي بیاله مکي مکرمی څخه دوی ته چاسوالونه راولیږل چې ددوی عقیده معلومه کړي؛ په هغوپوښتنوکی یوه داوه چې تاسی درسول اللهﷺ دمولودلمانځل جانزګنی اوکنه؟ بیا ددیوبند دعلماوپه نمایندګي باندی علامه خلیل احمدسهارنپوري ورته ولیکل چې دنبي کریمﷺ دمولود لمانځل چې له منکراتوڅخه خالي وي بلکل جوازلري.[3] موږهغه مولودنه منوچې هغه کی ګډاګیري هلته هلکان اونجونې وي،یودم پورته شي چې نبي کریمﷺ راغی دبریالویانوپه شان دغه دول مولود موږ نه منو؛

---

[1]- عن انس بن مالک ان النبي صلى الله عليه وسلم عق عن نفسه بعد النبوة -معجم الاوسط ۱/۲۸۳- مخرج حديثي

[2]- وسئل عن صوم يوم الاثنين قال:ذاک يوم ولدت فيه ويوم بعثت اوانزل عليه فيه- صحيح مسلم- ۱/۳۶۸ .

[3]- فالاحوال التي ادنا تعلق برسول الله ذكرها في احب المندوبات واعلى المستحبات عندنا....ذكرالولادة الشريفه لسيدنارسول الله بروايات الصحيحه في اوقات خاليه عن وظائف والعبادات وبكيفيات لم تكن مخالفة عن الطريقة الصحابه واهل القرون الثلاثه...انا لانكر ذكرولادة الشريفه بل تنكرعلى الامور المنكره التي انضمت معها (المهندعلى المفند/ ۶۰-۵۹)

تیرشویدی هغه هم دمولود دجوازفتوی ورکړیده اوعلامه ابن کثیر البدایه والنهایه کې درسول اللهﷺ مولود دجوازفتوی ورکړیده [1]

په حنبلي مذهبه علماوکي علامه ابن رجب الحنبلي په خپل کتاب لطائف المعارف کې دنبي کریمﷺ دمولود دجوازفتوی ورکړیده.په حنابله وکي ترټولومتشددعالم امام ابن جوزي هم درسول اللهﷺ دمیلاد فتوی ورکړیده.

اوپه مالکي مذهبه علماوکي علامه عبدالباقي الزرقاني په شرحه دالمواهب الدینیه کې لیکلي دي چې د دسول اللهﷺ مولود لمانځل جوازلري.علامه امیرالحاج المدخل کې لیکلي دي چې منکرات نوي پکې دنبي کریم دمولودلمانځغونده بلکل جوازلري.داټول دنړی لوی محدثین دي دوی ټولو دنبي کریمﷺدمولود دجوازفتوی ورکړیده؛نودنبي کریمﷺ دمولود لمانځل بلکل جوازلري.که څوک وایي چې بدعت دی نوموږوایوچې تراویح هم بدعت دي،اوحال داچې حضرت ویلي دي نعمة البدعة هذه [2] یعني دابنه بدعت دی.

په مشکاة باندی دری لویې شرحې دی:میرقاة،لمعات اوتعلیق الصبیح.په دی دریو واړوکتابونوکې لیکلي دي چې:کل بدعة ضلالة ممالا اصل له الخ.[3] نودنبي کریمﷺ دمولودلمانځل بلکل جوازلري.

غیرمقلدین وایي چې:مولود ناروادہ،که مولودنارواشي بیاخو دستاربندي هم ناروادہ؛مولولود له نن څخه زرکاله وړاندی په نړی کې رواج شویدی؛اودستاربندي له نن څخه سل کاله وړاندی رواج شویده،ددیوبند له تاریخ څخه وړاندی په نړی کې دستاربندي نه وه.هیڅوک هم په دی باندی رد نه کوي څکه ځکه چې خپله فائده ده.لنده داچې درسول اللهﷺ مولود لمانځل په اسلام کې بلکل جوازلري دلاښه تحقیق لپاره یادوشویوکتابونوته مراجعه وکړی په حق به واقف شي.

---

1- الملک المظفرابوسعید کوکبري:احدالجواد،والسادات الکبراء،والملوک الامجاد له آثارحسنه...وکان یعمل المولدالشریف في ربیع الاول ویحتفل به احتفالا هائلا،وکان مع ذالک شهما،شجاعا،فاتکا،بطلا،عاقلا،عالما،عادلا رحمه الله واکرم مثواه...قال السبط:حکي بعض من حضرسماط المظفرفي بعض الموالدکان یمد في ذالک السماط خمسة الاف رأس شوی،وعشرة الاف دجاجة،ومائه الف زبدیة،وثلاثین الف صحن حلوی،قال وکان یحضرعنده في المولداعیان العلماءوالصوفیه فیخلع علیهم ویطلق لهم ویعمل للصوفیة سماعامن الظهرالی الفجر-البدایه والنهایه،۱۳/۱٦۰- . قال الراقم: ذکرهذه الحکایة في محاسن الکوکبري مع ان لارد علیه،هذادلیل علی ان میلادالمعارف جائزعنده .

۲- نعمت البدعة هذه...لیست هي البدعة الشرعیة المذمومة ضدالسنة قطعا بعد ثبوتها قولا وفعلا عن صاحب الشریعة صلی الله علیه وسلم- معارف السنن- ۵/۵۵۲ .

۳- ما احدث مما یخالف الکتاب اوالسنة اوالاثراوالاجماع فهوضلالة،وما احدث من الخیرمالایخالف شیئا من ذالک فلیس بمذموم-میرقاة المفاتیح،۱/۲۳۸- .

## دسنتو اتباع:

علامه عبدالرحیم لاچپوري په هندوستان کې یولوی عالم تیرشویدی،هغه دسنتوداتباع ترعنوان لاندی یوحکایت نقل کړیدی چې یو وخت کې دچستیې یاهم قادریې طریقې یوخلیفه مجددالف ثاني ته راغی داخلیف باقي بالله صاحب رالیږلی وه، مجددالف ثاني ته یې وویل:چې ماته وظیفه راکړه؛ځکه چې باقي بالله خپل اکثره مریدان تاته رالیږي؛مجددصاحب ورته وویل:چې وظیفه به درکړم خوزماداعادت دی چې یوځه شرایط په مریدانوباندي ږدم یوله هغوشرانطوځخه داده چې په یوه سنت باندی عمل کول ترهرځه اولی اوغوره دي یعني زما مریدبه په سنتوباندي پوره عمل کوي؛په دی وخت کې داکوم خلیفه چې دباقي بالله له لوري ځخه رالیږل شوی وه په هغه باندی وجد راغی،دهغه دوجدله وجې توله دسرهند ځمکه په لرزه باندي راغله؛مجددصاحب خپل شاګرد ته وویل:چې مسواک راکړه په هغه باندي یې ځمکه ووهله ځمکې ته یې وویل:چې مه ښوره په دی سره دځمکي حرکت بندشو.

مجددصاحب دچستیې طریقې پیرته وویل:چې ستا دومره لوی کرامت دی چې ستادجذب په وجه توله دسرهندځمکه په لرزه شوه؛خوماته الله تعالی داسې کرامتونه راکړیدی که زه دعا وکړم زما ددعاپه وجه به الله تعالی دسرهند دهدیری مړي راژوندي کړي؛خودادستا له کرامت ځخه اوزما له کرامت ځخه ماته درسول اللهﷺ په یوه سنت باندی عمل کول ډیرغوره دي.عاملینوعاماوته دسنتو اتباع دومره زیاته مهمه وه.بایدچې مونږاوتاسوهم درسول اللهﷺ سنت په حپلوځانونوکې عملي کړواوکوم شی چې په اسلام کې نه وي له هغه ځخه پرهیز وکړوځکه چې نبي کریم فرمایلي دي:من احدث في امرنا مالیس منه فهورد؛متفق علیه.[1]

## دقضاي عمري حکم:

په دیوسیموکې قضای عمري رواج ده،طریقه یې په دي ډول ده چې دروژې دمیاشتې په روستنی جمعه باندی خلک راغونډیږي په یوه آذان اوپنځواقامتونوباندي په جمعه سره پنځه لمونځونه کوي،دوی داسې عقیده کوي چې له دوی ځخه په ټول عمرکې چې ځومره لمونځونه فوت شویدی داپنځه لمونځونه دهغوقانم مقام کرځیږي.آیا داډول قضای عمري په اسلام کې جوازلري اوکنه؟

زمونږدفقهې حنفي په ځینوکتابونوکې دامسئله منهم:زادالليبيب والله کتاب غیرجدیرلان یستفتی بهذ الکتب کتاب مجروح بکل معنی،وانیس الواعظین وایضاراحت الطالبین.دې ټولوکتابونوکې لیکلي دي

---

[1] - صحیح البخاري کتاب الصلح ۱/۳۷۱- . ورواه ابي داودفي سنته ۲/۶۳۵- .

چې قضای عمري ثابته ده،اخوهرکتاب چې جامع الرطب والیابس وي له هغه څخه مونږ دنوي سم ورکولای زمونږدفقهي حنفي په کتابونوکې چې دمفتي لپاره کوم قواعد بنودل شويدي هغه کې نه په پام کې نیول کیږي؛علامه شامي عقود رسم المفتي کې لیکلي دي چې هغه کتابونه چې هغه متبع مذهب نه وي له هغوڅخه فتوی مه ورکوی.دایاد شوي کتابونه زمونږپه مذهب کې ټول غیر مشهوردي.

ولې داچې کوم حدیث نوی دقضای عمري دثبوت لپاره راوړي هغه حدیث مردود دی؛که بالفرض داحنافوپه یوه لوی کتاب کې لیکلي وي چې قضای عمري ثابته ده؛خودلیل کې به داحدیث راوړي چې حدیث صحیح نوي نوقضای عمري نشي ثابتیدلای.علامه علي القاري په المصنوع في معرفة حدیث الموضوع اواسرارالمرفوعه في احادیث الموضوعه دواړوکتابونو کې لیکلي دي چې دقضای عمري حدیث موضوعي دی.[1]

العجالة النافعه چې داهم زمونږاحنافومعتمدکتاب دی دعلم احادیثوقواعدی یې پکې راغوندي کړي هلته شاه عبدالعزیز صاحب لیکلي دي چې دقضای عمري حدیث موضوعي دی.بل په مونږ احنافوکې علامه عبدالحی الکنوي په دی اروندمستقل کتاب جوړکړیدی چې نوم یې دی:الردع الاخوان في محدثات آخرجمعه الرمضان طالعت هذالکتاب مرات کثیره بحمدالله ومنته کتاب جدیرفي هذالمسئله وفي بعض البدعات المتعلقه بآخرجمعة الرمضان؛هلته یې هم لیکلي دي چې دقضای عمري حدیث مردود دی.آثارالمرفوعه في اخبارالموضوعه کې هم علامه لکنوي دغه خبره لیکلي ده.نورودیرو علماوهم لیکلي دي چې دقضای عمري په اړه چې کوم حدیث روایت شویدی هغه دروغ ده منهم:کشف الخفی للعلامه عجلوني،والفوائدالمجموعه للعلامه شوکاني،وتحفة المحتاج شرح المنهاج للعلامه هیثمي،وایضا في شرح المواهب الدینیه في المنح المحمدیه للعلامه زرقاني المالکي.

څوک دقضای عمري دجوازفتوی ورکوي هغوي ته مونږوایوچې:هاتوا برهانکم والله نسلم معکم ولاکن برهانا قویا.مفتي فریدصاحب هم په فتاوای فریدیه کې لیکلي دي چې قضای عمري ناروا ده؛ خومفتي تقي صاحب فتاوای عثمانیه کې لیکلي دي چې دقضای عمري یوصورت جائز دی،هغه داچې له یوچاڅخه لمونځونه فوت شوی وي اوهغه ته یې شمیرنوي معلوم نوهره ورځ دی په فارغ وخت

[1] حدیث (من قضی صلوة من الفرائض في آخرجمعة من شهر رمضان کان ذالک جابرا لکل الصلوة فائتة في عمره الی سبعین سنه) باطل قطعا لانه مناقض الاجماع علی ان شیئا من العبادات لاتقوم مقام فائته سنوات.ثم لاعبرة بنقل النهایه ولاشراح الهدایه فانهم لیسوامن المحدثین ولا اسندواالحدیث الی احدمن المخرجین.(المصنوع في معرفة حدیث الموضوع/۱۹۹)

کې لمونځونه کوي دهغه په غالب ګمان چې څومره لمونځونه له هغه څخه قضاشوي وي دهغوحساب دې ورته کوي.[1]

ځینې خلک وايي:چې هغه فلانکي شیخ صاحب به قضاى عمري کوله،هغه فلانکي مولوي‌صاحب به کوله؛موږ ورته جواب کوچې موږ‌حق په رجالوپابندي نه پیژنو،موږ‌رجال(سړي)په حق باندې پیژنو؛ داچې محکسودیرو‌علمابه قضاى عمري کوله داخوددې لپاره دلیل نشي کیدلاى چې قضاى عمري دې جائزه وي.

## له لمانځه څخه روسته سجده:

خپلوخلکوکې عادت دى چې کله سلام وګرځوي تر‌هغه روسته سجده کوي،ایا له لمانځه څخه پرته بواځې سجده کول جوازلري؟ یوخونسیوي یاتلاوت لپاره سجده دمله دى څخه پرته سجده به یا دشکرلپاره وي چې په دى سجده کې د‌موږداحنافواختلاف دى خوصحیح خبره داده چې دااول سجده جوازلري ځکه چې دېراحادیث پکې راغلي دي. اویابه دمناجات لپاره وي،دمناجات سجده هغې سجدې ته ویل کیږي چې هیڅ علت باعث نوي پرته له کوم علت څخه سجده وکړي،په دى اړوندغیرمقلدعالم علامه جمال الدین النمیري په خپل کتاب اصلاح المساجدکې لیکلي دي چې دمناجات سجده ناروا ده. امام الحرمین هم لیکلي دي چې دااول سجده ناروا ده.اویه موږاحنافوکې علامه عبدالحي شرح الصفرالسعاده کې لیکلي او علامه زکریاکندهلوي په الفیض السماوي کې لیکلي دي چې دااول سجده په اسلام کې څه اصل نه لري.اویه دى اړوند ماپه یوه رساله کې هم تحقیق کړیدى.

## دېتکي په ولاړى پسرکولواوپرتوګ په ناستې اغوستلوحکم:

خلکوکې مشهوره ده چې پتکې په ناستې نه پسرکوي اوپرتوګ په ولاړى نه اغوندي،موى فکرکوي چې دااول کړنه ناجائزه ده اَندى عکس چې پتکې په ناستې پسرکول اوپرتوګ په ولاړى اغوستل دي جوازلري اوکنه؟ ددى لپاره په اسلام کې څه اصل نشته؛ کتابونوکې لیکلي دي چې په پخوازمانه کې یوبزرګ وه،دهغه په سیمه کې څه پېښه شوى وه بیادى ویل چې داخولما څخه ګناه شوي،وه ځکه دااول پېښه وشوه؛هغه ګناه داده چې ماتن شپه پرتوګ په ولاړى اغوستى وه؛روسته تردى په خلکوکې رواج شوچې پرتوګ په ولاړى مه اغوندي؛داعقیده مردوده ده په اسلام کې څه اصل نه لري.

---

[1] - فتاواى عثمانیه پښتو فصل في قضاءالفوائت‌١/٥٣٥.

خوداخبره په کتابونوکي شته چي بوله هغوشیانوڅخه چي فقر اونسیان راولي هغه پتکي په ناسته اوپرتوک په ولاړه اغوستل دي؛کذافي معارف السنن وقلائدالعقیان في مایورث الفقر والنسیان. خودا عقیده چي ګناه لري دامردوده عقیده ده؛کذافي مجمع الفتاوی للعلامه رفعت قاسمي واغلاط العوام للعلامه تهانوي.

## په تهداب کي وینه اچول:

ځینوخلکوکي عادت دی چي کله دیوې ودانی تهداب پیل کوي بیایوحیوان ذبحه کوي دهغه وینه په تهداب کي اچوي،آیاداپه شرعه کي جوازلري؟ دادول کرنه په شرعه کي جوازنه لري دایوه مردوده عقیده ده؛دغربیانوایدیالوژي اوقانون دی.علامه رفعت قاسمي په مجمع الفتاوی کي لیکلي اوفتاوی الازهرچي داهم زمونږدمذهب لویه فتاوی ده،هلته هم لیکلي دي چي دایومردود عمل دی شرعا جواز نه لري.

## ښایي چي هغه اذکار ولوستل شي کوم چي په قرانکریم اواحادیثوکي ثابت دي:

داذکاروځیني کتابونه دبیلګي په توګه:نورنامه،دعای ګنج العرش،دردودتاج اوداسي نور..هغه کتابونه چي دعاګاني پکي لیکلي دي آیاداد‌عاګاني په احادیثوکي ثبوت لري اوکنه؟ په دي اړوندعلامه رفعت قاسمي په مجمع الفتاوی کی لیکلي دي چي دادول دعاګاني په اسلام کي اصل نه لري ځکه چي داپه احادیثوکي ندي ثابتي؛ښایي چي هغه دعاګاني وویل شي کومي چي په قرانکریم اواحادیثوکي ثابتي دي؛هغه آثاراوادعیه چي په احادیثوکي ثبوت نه لري دهغو ویلوته ځه اړتیاده،زه په دي ډول دعاګانوباندی رد نه کوم خویواځي دومره وایم چي په احادیثوکي ثبوت نه لري.

که څوک ووایي:چي دعلم احادیثوپه فلانکي کتاب کي شته،والله نحن نسلم معهم ولکن هاتوا برهانکم ان کنتم صادقین.علامه عبدالرحیم لاجپوري فتاوی رحیمیه کي لیکلي دي چي ښایي ددی پرځای هغه دعاګاني ولوستل شي چي هغه په احادیثوکي ثابتي وي.دیرونوروکتابونوکي هم دغه خبره لیکلي ده منهم:حصن الحصین،کتاب الاذکارللامام نووي،کتاب الدعا للامام بیهقي وکتاب الدعا للامام طبراني.

## ترلمانځه روسته په تنده لاس کیښودل:

ځیني خلک ترلمانځه روسته په تنده باندي لاس ږدي اوله خان سره ځه اذکاروایي،آیاداپه اسلام کي ځه اصل لري؟ په دي اړونداامام جزري په حصن الحصین کي یوحدیث راوړی کفایت المفتي کي هم

په حصن الحصین باندې حواله کړې خومایه خپله داحدیث په حصن الحصین کې ندی لیدلی؛خو امام طبراني په معجم الاوسط کې داحدیث په ځوسندونوسره راوریدی چې:نبي کریمﷺ به روسته ترلمانځه په خپله تنده باندې لاس کیښود اودادعا به یې ویلې:بسم الله لااله هوالرحمن الرحیم اللهم اذهب عني الهم والحزن.[1]

داحدیث په مسند دبزارکې هم شته اوعلامه نورالدین الهیثمي مجمع الزوائدکې هم راوړی بیایې لیکلي دي چې ددې حدیث په سندکې چې کوم رجال دي هغوی ټول محکم خلک دي خوبوسړی پکې ضعیف دی؛که حدیث ضعیف هم وي په فضائلو داعمالوکې داستدلال وړ دی؛نوپه تنده باندې لاس کیښودل ثابت دي.

## په قبرباندې آذان:

په ځینوسیموکې عادت دی چې کله مړی دفن کړي ترهغه روسته په قبر باندې آذان کوي،آیاداپه اسلام کې جوازلري؟ په مونږاحنافوکې علامه شامي ردالمحتارکې لیکلي دي چې داذول کرنه بدعت ده.[2] او التحفة الزاکرین دعلامه ابن حجر الهیثمي الشافعي کې هم لیکلي دي چې دابدعت ده.همدارنګه دنوي عصرعلماوهم په خپلوکتابونوکې لیکلي دي چې روسته له دفن څخه په قبرباندې آذان کول بدعت دی.

## دمړي مخ قبلې ته برابرول:

په دې اړوند دځلورومذاهبورایه داده چې کله یوچاته مرګ راشي دهغه مخ به دقبلې طرف ته کړخول کیږي،آیاددې لپاره په اسلام کې څه اصل شته اوکنه؟ غیرمقلدین یاځینې نور علماءپه مونږباندې ردونه کوي چې تاسي ولې دمړي مخ قبلې ته برابروی؟ غیرمقلدعالم علامه ناصرالدین الباني په خپل کتاب احکام الجنائز وبدعها کې لیکلي دي چې دابدعت ده.خودې عاجز بنده هم په دې اړوندیوڅه تحقیق کړیدی چې حاصل یې په دې ډول بیانیږي،المستدرک علی الصحیحین کې یوحدیث راځي چې کله رسول اللهﷺ مدینې منورې ته راغی پوښتنه یې وکړه چې حضرت براء ابن معرورڅه شو؟صحابه و ورته وویل:چې هغه وفات شو،رسول اللهﷺ وفرمایل چې څه وصیت یې کړی وه؟صحابه و ورته

---

[1] - عن انس بن مالک ان النبي صلى الله علیه وسلم کان اذاصلی وفرغ من صلوته مسح بیمینه علی رأسه وقال:بسم الله الذي لا اله الاهوالرحمن الرحیم اللهم اذهب عني الهم والحزن- مجمع الزوائد ۱۱۰/۱۰-. رقم الحدیث ۱۶۹۷۱ .

[2] - قیل: وعند انزال المیت القبر قیاسا علی اول خروجه لله نیا لکن رده ابن حجر في شرح العباب – ردالمحتار ۲/۶۳-.

وویل:چي هو داسي وصیت یې کړی وه چي کله زه وفات شوم نوزما مخ به قبلي ته برابروی نبي کریمﷺ وفرمایل:اصاب الفطرة. یعنی حق ته رسیدلی دی.[۱]

بیا علامه ابوعبدالله النیسابوري لیکلي دي چي هذالحدیث علی الشرط الشیخین؛موږدامنوچي کله دحدیث په صحت باندی علامه نیسابوري صاحب دمستدرک خبره وکړی اوامام ذهبي موافقه ورسره کړی نوهغه حدیث ترهغودمنلووړندی چي ددنیانورعلماء تحقیق وړباندی وکړي؛خوهغه حدیث چي صاحب دمستدرک ووایي چي صحیح دی اوعلامه ذهبي هم ورسره موافقه وکړي بیادی دټولي نړی دعلماو لاس خلاص وي،داکوم حدیث چي وړاندي ذکرشوصاحب دمستدرک هم صحیح ورته ویلي دي اوامام ذهبي هم موافقه ورسره کړیده.امام ذهبي په ټوله نړی کي په اسماءالرجالوکي لوی محقق تیرشویدی مشهورکتابونه یې دي سیراعلام النبلا په ولسو جلدونوکي،میزان الاعتدال اته جلدونوکي،الکاشف په دوجلدونوکي اوتاریخ الاسلام یې په څه باندي دیرشو جلدونوکي کتاب دی.

اوبل داچي په نړی کي هیڅ کوم محدث په دی حدیث باندی جرحه نده کړی،په موږاحنافوکي لوی محدث علامه جمال الدین الزیلعي په النصب الرایه في تخریج احادیث الهدایه کي لیکلي دي چي داحدیث صحیح دی.علامه ابن حجرالعسقلاني په الدرایه في تخریج احادیث الهدایه کي لیکلي دي چي داحدیث صحیح دی.اوعلامه ظفراحمد عثاني هم په اعلاءالسنن کي لیکلي دي چي داحدیث صحیح حدیث دی.نوثابته شوه چي دمړي مخ قبلي ته کول بدعت نه بلکه سنت دي.

## آیاتصبُح جائزدی؟:

دسهار له لمانځه څخه روسته ویده کیدلوته تصبح وایل کیږي،ځیني خلک وایي:چي دافرض تقدیري وخت دی په دې وخت کي خوب کول حرام دي،آیاداخبره صحیح ده؟ خلاف الاولی به وي خوحرام نشي ورته ویل کیدلای،ځکه چي مصنف ابن ابي شیبه کي ددې لپاره ځانګړی باب راوړی هلته یې لیکلي دي چي ځینوصحابه وبه په دې وخت کي خوب کاوه،چي یوله دې صحابه و څخه ام المومنین حضرت عائشه وه.[۲] حضرت ام سلمه،سعیدابن جبیرالتابعي،محمد بن سیرین اوصهیب داهغه صحابه

---

[۱]- عن یحی بن عبدالله بن ابي قتاده عن ابیه ان النبي صلی الله علیه وسلم حین قدم المدینة سأل عن البراء بن معرور فقال:توفي واوصی بثلثه لک یارسول الله واوصی ان یوجه الی القبلة لما احتضر فقال رسول الله:اصاب الفطرة وقدردت ثلثه علی ولده- سنن الکبری۳/۵۳۹- رقم الحدیث ۶۶۰۴.

۲- عن القاسم عن عائشه انها کانت تصبح – مصنف ابن ابي شیبة کتاب الاداب باب من رخص في التصبح۵/۲۲۲- رقم الحدیث ۲۵۴۴۹.

اوتابعین دي چي دوی به تصبح(دسهارله لمانخه روسته خوب) کاوه.[1] چي دادتصبح دجواز لپاره لوی دلیل دی.دیادوني ورده چي امام ابوبکرابن ابي شیبه رمونږدامام صاحب لوی معاند وه،خوزمونږدمذهب ډیر دلائل دنوموړي په همدی کتاب کي دي.

همدی مصنف ابن ابي شیبه کي لیکلي دي یوه ورځ حضرت عمر حضرت صهیب ته ور غلی وه،هغه دتصبح په خوب باندي ویده وه؛حضرت عمر ډیرانتظار ورته وکړ کله چي هغه راویښ شو حضرت عمرته یي وویل:چي ولي اَدي مخکي نه راویښولم؟ حضرت عمر ورته وویل چي ځکه مي راویښ نکړی چي ددي وخت خوب ډیر خوندور وي.[2] په دي سره دحضرت عمر تاییدهم راغلی دی، کیدلای شي چي خلاف الاولی وي خوبدعت ورته ویل یاحرام ورته له حقیقت څخه لری خبره ده.

یادونه:اوس مایه دي مسئله باندي نوی تحقیق کړیدی دعدم جوازقول اولی دی.کذافي اشعب الایمان للبیهقي.حماسي.

## دچرګي آذان:

خلکوکي عادت دی چي کله کومه چرګه آذان وکړي بیا هغه چرګه حلالوي،دوی داسي عقیده کوي که چیرته دغه چرګه حلا له نکړونوبه کورکي غم رانازلیږي،آیا داسي عقیده کول په اسلام کي جوازلري؟ دادول عقیده کول په اسلام کي جواز نه لري،ځکه چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي چي:لاطیرة في الاسلام.[3] یعني په اسلام کي بدشاګمي نشته.اغلاط العوام دعلامه اشرف علي تهانوي اومجمع الفتاوی دعلامه رفعت قاسمي کي هم لیکلي دي چي دادول عقیده کول په اسلام کي جوازنه لري.

## دسپي خلاف العادت آواز:

سپي کله ناکله له خپل عادت څخه خلاف آوازکوي،چي مونږ ورته کوله وایو؛کوم کورکي چي سپی دادول آواز وکړي بیاخلک وایي چي دي کورکي څوک مره کیږي آیا دادول عقیده جوازلري؟ علماولیکلي دي چي دایوه مردوده عقیده ده، ځکه چي نبي کریمﷺ فرمایلي دي چي:لاطیرته في

---

[1] - عن عبدالله ابن الشماس قال:اتیت ام سلمه فوجدتها نائمة یعني بعدالتصبح –مصنف ابن ابي شیبة- ۵/۲۲۲. رقم الحدیث ۲۵۴۵۰ .
عن عبدالاعلی قال اتیت سعید بن جبیرفوجدته نائما نومة الضحی- مصنف ابن ابي شیبة۵/۲۲۳- . رقم الحدیث ۲۵۴۵۲. قال حدثنا ایوب عن ابن سیرین انه کان یتصبح- مصنف ابن ابي شیبة۵/۲۲۳-. رقم الحدیث ۲۵۴۵۳.

[2] - عن ابي عبدالمدیني قال:غداعمرعلی صهیب فوجدوه متصبحا،فقعد حتی استیقظ،فقال صهیب:امیرالمؤمنین قاعد علی مقعدته وصهیب نائم متصبح فقال له عمر:ماکنت احب ان تدع نومه ترفق بک – مصنف ابن ابي شیبة۵/۲۲۳-. رقم الحدیث ۲۵۴۵۴.

[3] - عن ابي هریره عن النبي صلی الله علیه وسلم قال:لاعدوی ولاطیرة ولاهامة ولاصفر-صحیح البخاري۲/۸۵۷-.

Bawar.net

الاسلام.(۱) دانول عقیده کول بدشاګمي ده.کذافي اغلاط العوام للعلامه تهانوي ومجمع الفتاوی للعلامه رفعت قاسمي.

## دشپې کوټه جاروکول

خلکوکی مشهوره ده چي دشپې کوټه مه جاروکوی خکه چي بیابلاوی رانازلیږي،ایادانول عقیده کول جوازلري؟ په شپه کی کوټه جاروکول یا نه جاروکول هیڅ باک نه لري،داخبره چي دشپې کوټه مه جاروکوی په احادیثوکی هیڅ ثبوت نه لري،کذافي مجمع الفتاوی للعلامه رفعت قاسمي.

## دشپې په آیینه کي کتل:

خلکوکی مشهوره ده چي دشپې په آیینه کي مه ګوری،آیاداپه اسلام کی څه اصل لري؟ په دی اړوند زادالمعادکي یوحدیث راځي چي:من نظرفي المرآت لیلا فاصابه لقوة اواصابه داء فلایلومن الانفسه(۲) ژباړه:که څوک دشپې په آیینه کي وګوري بیاهغه ته لقوه یابله ناروغي پیداشي نودی دی خپل ځان ملامت کړي.له دی حدیث څخه علماءاستدلال کوي چي دشپې په اینه کی کتل ندي صحیح اوسفر الهدی والرشادچي داهم درسول اللهﷺ په سیروکي مشهورکتاب دی هلته هم دغه خبره لیکلی ده

## دروژې په میاشت کي مرحبا او الوداع ویل:

خلکوکی مشهوره ده چي دروژی دمیاشتي له پیل څخه ترپنځلسمي نیټي پوری په ترویحه کی مرحبا وایي،بیا له پنځلسم روسته دروژی ترپایه الوداع وایي،آیا ددی لپاره په اسلام کی څه اصل شته؟ ددی لپاره په اسلام هیڅ اصل نشته ویل یې بدعت دي. یا په خینوسیموکي داسي عادت وي چي دروژی دمیاشتي په روستی جمعه باندي خطیب نعری وهي الوداع الوداع له دی سره زړاهم کوي،داهم یومردودعمل دی،په اسلام کی هیڅ اصل نه لري.کذافي الامرفي الاتباع والنهي عن الابتداع للعلامه سیوطي واصلاح المساجد للعلامه جمال الدین الدمشقي.اومتأخرینو علماوهم په خینوفتاواوکی په دی باندی ردونه کړیدي،اوچي داپه اسلام کي یومردود عمل دی.

---

۱- سبق تخریجه.
۲- زادالمعاد فصل الوصایاالکلیة لحفظ الصحة ۲/۳۷۳

## دمریدوجد اودپیرعکس العمل:

حیني پیران داسې وي چې کله یې مریدپه حریه باندې شي بیا دي لاس پاسمال وربه سو ... په اسلام کې څه اصل شته؟ مونږ وجد(حریه) سوځوچې غیراختیاري وي.کومه ... چې پوځصحب نوحنیرمهال حیلومریدانونه کوي ددې لپاره په اسلام کې څه اصل نشته.علامه سیوطي ... الامرفي الاتباع کې لیکلي دي چې دابدعت دمسره له دې چې نوموړي لوی صوفي ... علامه قرطبي هم په تفسیرقرطبي کې لیکلي دي چې ددې لپاره په اسلام کې څه اصل نشته ... کړنه شرعاً جواز نه لري.کمافال علیه الصلوة والسلام من احدث في امرنا هذامالیس منه فهورد

## آیادډوډۍ مچوکول بدعت دي؟:

آیادډوډۍ مچوکول بدعت دي؟په مونږاحناقوکې علامه شامي په خپلوتوارونکتابونوکې دی ته بدعت حسنه ویلي دي.[2] علامه سیوطي هم حاوي الفتاوی کې مشاجره لیکلي ده دلیل کې یې داحدیث راوړيدی چې نبي کریمﷺ فرمایلي دي چې تاسو ډوډۍ احترام کوی.[3]

داحدیث المقاصدالحسنه کې هم شته بیا یې لیکلي دي چې داحدیث ضعیف دی.[4] خوځینې علماءوایي چې داحدیث په اعتبارد مجموع طروقوسره مرتبې دحسن ته رسیږي اوحسن حدیث داستدلال وړوي.نوډوډۍ مچوکول بدعت دي خوبدعت قبیحه نه بلکه بدعت مباحه.مچوکول یې لاباس به دي.

## دصفرې دمیاشتې روستنی چهارشنبه:

ځینوسیموکې عادت دی چې خلک دصفرې دمیاشتې په روستنی چهارشنبه باندې پوخلکرې خوراک تیاروي.بیادهغه دخوړلولپاره خلک رابلي آیا داډول عمل په اسلام کې جوازلري؟ په دې اړوندشاه عبدالحق په ماثبت بسنة في ایام السنه کتاب کې لیکلي دي چې دایو مردود عمل او عقیده ده.نوموړي لیکلي دي چې داورځ به دجاهلیت په دورکې هم لمانځل کېدله خلکوبه په دې ورځ باندې

---

[1]- صبح البخاري کتاب الصلح ۱/۳۷۱-.

[2]- اماکون تقبیل الخبز بدعة فصحیح ولکن البدعة لاتنحصرفي الحرام بل تنقسم الی الاحکام الخمسة ولاشک انه لایمکن الحکم علی هذا بالتحریم لانه لادلیل علی تحریمه ولا بالکراهة لان المکروه انه ماورد فیه نهي خاص ولم یرد في ذالک نهي بوالذي یظهر ان هذا من البدع المباحه فان قصدبذالک اکرامه لاجل الاحادیث الوارده في اکرامه فحسن ودوسه مکروه شدیدة- العقود الدریه في تنقیح الفتوی الحامدیه- ۲/۳۳۴.

[3]- عن عائشة ان النبي صلی الله علیه وسلم قال اکرمواالخبز-المستدرک علی الصحیحین۴/۱۲۲-.

۴-حدیث اکرمواالخبز...وکل هذه الطرق ضعیفة مضطربة وبعضها اشد من بعض وله طرق ایضا کذالک- المقاصدالحسنه۱/۱۴۴-رقم الحدیث ۱۵۳.

دمیلوکوبوخخه کالی وبسل او وېل به یې چې بلاګاني راټازلې شویدي اوزموبرکوټونه راغلي دي همدارنګه ډوی به په دی ورځ باندې بنه خوراکونه پخول.

اوځینې خلک په دی ورځ باندې نذرپادیګ چه کوي چې داهم په دی ورځ باندې جوازنه لري؛ بوځوراده چې همه نذربادوی په خپله باندې خوري حال داچې دنذرخوړل دنادر اصولواوفروعوته حرام دي اعلامه عبدالرحیم لاجپوري په دی اروند فتاوی رحیمیه کې چې دابوناجایز عمل دی اوپه دی اروندبوحدیث هم علماوروایت کړیدی اودصفري دمیاشتې په روستنی چهارشنبه باندې نذرپادیګ چه کول په اسلام کې څه اصل نه لري.

## دننواتې دپسه غوښه خوړل حرام دي:

همه حیوان چې بوځوک یې چاته په روغه کي وروليي بیایې هلته حلالوي ددی څه حکم دی؟ دغه پسه چې بوځوک یې چاته په عذرکې وروليي اوبیایې هلته دهغه په دروازه کې حلالوي ددی غوښه خوړل شرعا جوازنه لري.داهغه پسه ده چې دماأهل لغیرالله لپاره ذبحه شویدی.ابوداودشریف کې بوحدیث راغلی چې:نهی رسول اللهﷺ عن اکل معاقرة الاعراب.[1]

امام نووي لیکلي دي چې اسناد هذالحدیث اسنادحسن؛معاقره دی ته وېل کیږي چې شاعرانوبه درسول اللهﷺ په زمانه دفخراوریا لپاره اوښان حلالول،ددې له خوراک څخه نبي کریمﷺ منعه فرمایلی ده.همدارنګه په معلی دابن حزم الظاهري کې چې دحضرت علي دخلافت په دورکې ده شاعران له یوبل سره شرط ایښی وه چې که هغې فلانکی څپلی ته نه زر ورسیدی لوته به سل اوښان ذبحه کوی اوکه زه زر ورسیدم بیابه یې زه سل اوښان حلالوم؛بیادوی دواړودسلو وښانو وېلې لوټې کړی خلکوله دي اوښانوڅخه غوښې راوړلې حضرت علي ورته ووېل چې ددی غوښوخوړل حرام دی څکه چې دادغیرالله لپاره حلال شویدي.[2]

په اسلام کې دري څایه دوېلي توبول مقصود وي دغوښې خوړل لوي مقصود،لومړی داچې کله الله تعالی بوچاته زوی یالور ورکړي بیاله هغه څخه دی عقیقه کوي دلته وېله توبول مقصود دی دویم

---

[1] - سنن ابي داود کتاب الضحایا باب ماجاء في اکل معاقرة الاعراب ٢/٣٨٩.

[2] - قال کان شاعرا تافرا غالبا اباالفرزدق الشاعرباء بظهرالکوفه على ان يعقر هذا مائة من ابله وهذا مائة من ابله اذاوردت الماء فلما وردت الابل الماءقاما اليها بالسيوف فجعلا يكسعان عراقيبها، فخرج الناس الحمرات يريدون اللحم وعلي بالكوفة فخرج على بغلة رسول الله وهوينادي:يااهاالناس لاتأكلوامن لحومها فانماما اهل بها لغيرالله المحلى بالاثار ٦/٩٢، رقم الحديث ١٠٠٨.

په دي اړوندبل حديث په سنن ابي داود كتاب الادب باب في الاستيذان كي راځي چي رسول اللهﷺ ته چا لبأ اوضغابيس (دغرڅي بچيان) په هديه كي راوړل.[1] كه چيرته داركوخوراك ناروا وي نو ولي رسول اللهﷺ داهديه قبلوله؛دعلم احاديثونوروډيرونوروكتابونوكي هم داحديث شته منهم:جامع الترمذي،عمل اليوم والليله للعلامه ابن سوني،سنن الكبرى للعلامه نسايي،الجامع اخلاق الراوي وآداب السامع كتاب الاستيذان.

همدارنگه دصحابه وپه زمانه كي حضرت عبدالله ابن عمرته يوسړى اوښخه راغلل،هغه ته يې وويل:چي مونږ پنيرجوړو چي عربي كي ورته جُبن ويل كيږي،دڅي خوړل جائزدى اوكنه؟حضرت عبدالله ابن عمرپوښتنه ورڅخه وكړه چي له څه شي څخه يې جوړوى؟هغوى ورته وويل:چي انفحه يكي اچوو،حضرت عبدالله ابن عمر دجوازفتوى وركړله.[2] داحديث په مصنف ابن ابي شيبة،مصنف عبدالرزاق الصنعاني،سنن الكبرى دامام بيهقي،اوكتاب الاثاردامام محمدكي روايت شويدى.

دياداوني ورده چي انفحي ته زمونږپه اصطلاح كي پوڅه ويل كيږي،كله چي له ميږي څخه بچي پيداشي هغه حلالوي په لومړي ځل يې چي له مورڅخه كومي شودې خوړلي وي هغه ورڅخه راباسي هغه بيايه شيدوكي ښورووي له هغوشودو څخه پنير جوړيږي.فتاوى تاترخانيه كي دانفحي دجوازفتوى وركړيده،نواوركه خوږه طريقه يې اولى جائزدي څكه چي انفحه كي هم اوركه وي؛ اوعلامه حامدميرزانمنكاني هم داوركودجوازفتوى وركړيده؛ نوداوركوخوړل بلكل جوازلري.

## دقرانكريم له غنموسره وزن كول:

خلكوكي عادت دى چي كله له يوچاڅخه قرانكريم وغورځي بياهغه له غنمو،وريژواوياوربشوسره تلي هغومره وريژي ياغنم بياخيرات كوي،آداپه اسلام كي جوازلري؟په دي اړوندعلامه رشيداحمدگنگوهي په فتاوى رشيديه كي ليكلي دي چي دادول عمل په اسلام كي څه اصل نه لري؛نوبناء وجوب يې هم نشته؛خوكه پرته دقرانكريم له تللوڅخه صدقه كوي هغه څه پروانه لري.

---

[1] - ان صفان ابن اميه بعثه الى رسول الله صلى الله عليه وسلم بلبن وجداية وضغابيس-سنن ابي داود۲/۷۰۳-

[2] -عن ابي حيان الازدي قال سالت ابن عمر عن الجبن فقال:ماياتينا من العراق شئ هواعجب الينا منه- مصنف ابن ابي شيبة۵/۱۲۹- رقم الحديث ۲۴۴۰۹.

## آیامنبرته پوښ ورکول جوازلري؟:

په دی اړوندعلامه امیرالحاج په کتاب المدخل کی لیکلي دي چې په منبرباندی جای نمازاوارول بدعت دي ځکه چې دانه درسول اللهﷺ په زمانه کی وه،نه دصحابه وپه زمانه کي وه؛خوداخبرځکه له حقیقت څخه لري ده ځکه چې'وفاءالوفاءکی علامه سمهودي لیکلي دي چې دحضرت معاویه ابن ابی سفیان خلافت په شام کي وه،هغه اراده درلوده چې درسول اللهﷺ منبرله ځان سره شام ته یوسي،خوکله یې چې په مسجدنبوي کي منبرله خپل ځای څخه بې ځایه کړپه دی سره ټوله مدینه منوره په لړزه باندی رغله اولمرتیاره شو؛چاپوښتنه ورڅخه وکړه چې څه ورباندی کوي هغه خپله خبره بدله کړه ویې ویل:چې منبرمې وکوت چې وینا نوي خوړلی.(۱)

بیاحضرت معاویه درسول اللهﷺ منبرته پوښ ورکړ؛اوعلامه سیوطي په جمع الوسائل کی لیکلي دي چې تردي وړاندی حضرت عثمان درسول اللهﷺ منبر ته پوښ ورکړی وه؛نومنبرته پوښ ورکول بدعت نه بلکه دصحابه وسنت ده.

## آیاپه اخترکي فاتحه اوتعزیه جوازلري؟:

زمونږپه هیوادکي داسي عادت دی چې کله یوڅوک مړشي فاتحه اوتعزیه یې هم ترسره شي،په اخترکي بیاخلک دهغه مړي کورني ته دفاتحي لپاره ورځي؛آیاداپه اسلام کي جوازلري؟په دی اړوندپه فتاوای الهندیه المشهوربین العلماء باالعالمکریه کي لیکلي دي چې داناروا عمل دی،یوځل چې فاتحه وشي بیاپه دویم ځل ورتلل ندي جائز،حتي چې تردریو ورځوروسته یوچاته تعزیه کول ندي جائز،ځوکه فاتحه کونکی اوفاتحه اخستونکی نه وه،بیاله دریو ورځوروسته هم فاتحه کول جوازلري اوکه دوی دواړه حاضروي بیاله دریو ورځو روسته فاتحه ناروا ده؛په اخترکي ځوپه طریقه یې اولی سره فاتحه کول جواز نه لري.علامه شامي هم ردالمحتارکي دامسئله لیکلی ده.(۲)

## دنوروزدورځي لمانځل حرام دي:

کتاب الاوایل دعلامه ابی الهلال العسکري کي لیکلي دي اوصبح العشاء دعلامه قلقشندي کی لیکلي دي چې دحضرت صالحؑ اوحضرت هودؑله زماني څخه وړاندی تقریبا دین ختم شوی وه،کله چې الله تعالی حضرت صالحؑ اوحضرت هودؑ دنیاته راولیږل نږدین له سره متجدد شو؛دکسراپه امپراتوري کی

---

۱- فلماقدم معاویه عام حج حرک المنبر وارادانه یخرجه الی الشام فکسفت الشمس یومئذحتی بدت النجوم فاعتذرمعاویه الی الناس وقال:اردت انظرالی ماتحته وخشیت علیه من الارضة قال بعضهم وکساه یومئذ قبطیة اولینة-وفاءالوفاء ۲/۱۰-.

۲- ویکره بعدها لانها تجددالحزن الاالغائب ای الاان الکون المعزی اوالمعزی غائبا فلاباس بها....ویکره التعزیه ثانیا- ردالمحتار۳/۱۷۷-.

دجمشیدپه نوم باندي یوبادشاه هم په همدې ورځ په تخت کیناست،خلکوته یې اعلان وکړچې نن بیرته دین له سره متجددشودادکال لومړنی ورځ وه،ددین دتجدیدورځ هم وه،اوپه همدې ورځ ددوی حاصلات چې کښي وه هغه هم په حاصل باندې راغلي وه،چې وراندې ترديې له هغوکښیوڅخه اوبه نه وبستل کیدلې؛بیاپه همدی ورځ باندی خلکوله کښیوڅخه خوړی اوبه ووبستلې پادشاه ته یې هم ورکړې،اوپه خپل مینځ کې یې هم په یوبل باندې وڅښلې څکه اوس هم په دې ورځ باندې خلک یوبل ته خواږه شیان ورکوي؛له دې څخه وروسته داورځ په نړی کې داخترپه شکل لمانځل کیدله؛چې تراوسني عصرپورې په نړی کې ددې ورځې لمانځنه کیږي؛ داپه اصل کې دآتش پرستواختردي.

دنوروزلمانځل یادکافرانومطلق اخترلمانځل په اسلام کې نارواعمل دی،زمونږ احناف علماءپه دې اړه دیرتشددکوي هغوی وايې چې که څوک داورځ په خوشحالی سره ولمانځي یاپه دې ورځ باندې کوم چاته هدیه ورکړي اودهغې هدیې نسبت دې ورځې ته وکړي نوپه دې سره دی داسلام له دائرې څخه وځي.کذافي مجموعة الفتاوی للعلامه عبدالحی.لکه مونږافغانانو کې چې عادت دی چاچې کوزده کړې وي هغه بیا دجیلی کورته دنوروزي په نوم باندې کالي وروړي داډول عمل حرام دی حتی یخشی علیه الکفر؛یعني دا امکان شته چې په دې باندې کافرشي.که څوک وايې:چې دازمونږ عنعنه اورواج دی،بیاکه کالي وروړي هم دنوروزي نوم دې نه ورباندې ږدي مولودي نوم دې ورباندې کیږدي یابل کوم شي ته دې نسبت وکړي نوروزته دې دهغې نسبت نه کوي.[1]

په هرلحاظ دنوروزلمانځل ناروادي،دبیلګې په توګه:ددرس تعطیل،دبازارتعطیل اوداسې نور..لنده داچې کوم کارونه چې په دې ورځ باندې کیدونکي وي دنوروزداحترام لپاره په دې ورځ باندې دهغوتعطیل وکړي داپه شرعه کې جوازنه لري.کذافي الامرفي الاتباع والنهي عن الابتداع للعلامه سیوطي،والتشبیه الخصیص باهل الخمیس للعلامه ذهبي.

---

۱-(ان لکل یوم عید) کالنیروزللمجوس وغیرهم،وجعل علمائنا التشبه بهم کلبس الثیاب الزینة ولعب البیض وصبغ الحناء واللهو والغنا علی الوجه التعظیم للیوم کفراسیرقاتالمفاتیح ۳/۴۸۶-.

دنوروزدنه لمانځلوپه اړوند له رسول الله ﷺ څخه ډیر احادیث راغلي،سنن الکبري دامام بیهقي کې په دې اړه ځانګړی باب ذکرشویدی هلته یې ډیر احادیث راوړي چې نبي کریم ﷺ له دی څخه منعه کړیده.[1]

## دمعلم اومور دورځي لمانځل حرام دي:

دمعلم اومادر دورځو لمانځل چي اوس مهال په نړی کي رواج ده،شرعا جواز نه لري؛کماقال علیه الصلوة والسلام:لتتبعن سنن من قبلکم شبرابشبر،ذراعا بذراع،حتی لودخل حجرالضب تبعتموهم.[2] یعني که چیرته دوی دسمسیري په سوري باندې ننوځي نوتاسي به یې هم تابع داري کوي؟.دمعلم ورځ زمونږپه هیوادکي دکفرملګرورواج کړیده،دادغرب ایدیالوژي ده،ددي ورځي لمانځل په اسلام کي یومردودعمل دی.

علامه ابن تیمیه اقتضاءصراط المستقیم في مخالفة اصحاب الجحیم کي په دې اړوندمکمل تحقیق کړی،چې دکافرانواخترونه لمانځل په اسلام کي ناروادي لکه:دنوروزورځ،دمعلم ورځ، دمورورځ، دماشوم ورځ اوداسي نورو ورځولمانځل یاپه دي ورځوکي رخصتي کول شرعا جوازنه لري.ماپه دي اړوندپه یوه رساله کي هم تحقیق کړیدی چي ترچاپ وروسته به مینه والوته وړاندي شي.

## له دفن روسته په قبرباندې چاری اچول:

خلکوکي عادت دی چې کله مړی دفن کړی بیاچاری ورباندې اچوي آیا داپه اسلام کي څه اصل لري اوکنه؟ماپه خپله په دې اړوند ډیرزیات تحقیق کړیدی ددې لپاره مي څه ثبوت ندی پیداکړی،اوس که چاته ووایي چي دامه کوي دانارواده نوخلک وایي چې داپنځ پیری شویدی،هاتوابرهانکم والله نسلم معکم.په کوم کتاب کي لیکلي دي چې په مړي باندې چاری اچول جوازلري؟

دچاری اچول نه په اسلم کي ثبوث لري،نه په احادیثوکي ثبوت لري،اونه په علم فقه کي داهسي یوبدعتي رواج دی.له علامه مفتي فریدڅخه فتاوی فریدیه کي داپوښتنه شویده هغه په خواب کي

---

[1] - عن انس قال بقدم النبي صلى الله عليه وسلم المدينة ولهم يومان يلعبون(يوم النيروز ويوم المهرجان)فقال:ماهذاليومان؟قالواكنانلعب فيها في الجاهلية فقال رسول الله:قد ابدلكم الله بها خيرمنها يوم الاضحى ويوم الفطر- مشكاة المصابيح – ١/١٢٦. عن عبدالله ابن عمر قال:من بنى ببلادالاعاجم وصنع نيروزهم ومرجانهم وتشبه بهم حتى يموت وهوكذالك حشرمعهم يوم القيمة- سنن الكبرى للبيهقي٩/٣٩٢-. رقم الحديث ١٨٨٦٣.

[2] - مشكاة المصابيح كتاب الرقاق باب تغيرالناس٢/٢٨٥-.

. لیکلي دي چې داپه اسلام کی اصل نه لري.اوجرئة الایمه فی الادعیة الماثوره کتاب کی لیکلي دي چې داپه اسلام کی څه اصل نه لري.[1]

## آیادقرانکریم مچوکول بدعت دي؟:

غیرمقلدین وایی چې دقرانکریم مچوکول بدعت دي آیا داخبره صحیح ده؟په دی اروند په سنن دارومي کي یوحدیث راحي چې:اخبرناسلیمان بن حرب عن حمادبن زید عن ایوب عن ابن ابي ملیکه ان عکرمه ابن ابي جهل کان یدع المصحف علی وجهه ویقول کتاب ربي کتاب ربي.[2] غیرمقلدین دومره زیات متعصبین دی چې دسنن دارومي په تولواحادیثویی لاندی تحقیق کړی خوندی حدیث په اروندیی هیڅ هم ندي لیکلي؛که یی داسی لیکلي وي چې داحدیث صحیح دی بیاخوبه توی باندی رد وه اوکه داسی یی لیکلي وي چې داحدیث ندی صحیح بیایی خبره دمنلو وړنه وه.

امام نووي په خپل کتاب التبیان في آداب حملة القرآن کی باب ذکرکړیدی چې دقرانکریم مچوکول جوازلري همداحدیث یي راوړیدی بیایي لیکلي دي چې اسنادهذالحدیث اسنادصحیح.تاریخ ابن عساکرپه یوخلویښتم جلدکی هم داحدیث په څوسندونو باندې راوړل شویدی بیایی لیکلي دي چې دقرانکریم مچوکول جوازلري.البدایه والنهایه کي علامه ابن کثیردحضرت عکرمه ابن ابي جهل په مناقبوکي لیکلي دي چې هغه به قرانکریم مچوکاوه.

البرهان في علوم القرآن دعلامه زرکشي اوالاتقان في علوم القرآن دعلامه سیوطي کی هم لیکلي دي چې قرانکریم مچوکول مستحب اودصحابه ومعمول دی.[3]اوعلامه شامي هم ردالمحتارکی لیکلي دي چې دقرانکریم مچوکول مستحب دی څکه چې حضرت عمراوحضرت عثمان رضی الله عنهما به قرانکریم مچوکاوه.[4]

---

۱- ولات حفرقبرازجانب قبله بجانب مقابل برىالاى قبرانداختن پس امورىست كه ازخيرالقرون وازعصرائمه مذهب نقل ندارد-(جرأة الائمه ۹۵)

۲- سنن الدارمي كتاب فضائل القرآن باب في تعاهدالقرآن۴/۲۱۰۹-. رقم الحديث ۳۳۹۳.

۳- يستحب تقبيل المصحف،لان عكرمه ابن ابي جهل كان يفعله،وباالقياس على التقبيل الحجرالاسود،ولانه هدية من الله تعالى فشرع تقبيله،كمايستحب تقبيل الولدالصغير - الاتقان۲/۳۴۳-.

۴- قال علامه حصكفي:تقبيل المصحف قيل بدعة،لكن روى عن عمر رضي الله عنه انه كان يأخذالمصحف كل غداة ويقبله ويقول:عهدربي ومنشور ربي عزوجل:وكان عثمان رضي الله عنه يقبل المصحف ويمسحه على وجهه- ردالمحتار۹/۶۳۲-.

# یادونه.

داکتاب په (۱۴۳۴) سپوږمیزکال کې دموقوف علیه دورې ددرس پرمهال لیکل شوی دی،اوپه (۱۴۳۵)سپوږمیزکال کې په لومړي خل (۱۰۰۰) توکه چاپ شویدی؛چې په تیرخل چاپ کې یې خینې کتابتي نیمگرتیاوی موجودې وی،داخل دنبوي مبارکواحادیثوله تخریج اونویوسمونونوسره دعلم مینه والوته وړاندې کیږي.

پای

۲۸/۱۱/۱۴۳۶

۲۰/۶/۱۳۹۴

راقم الحروف:سیدضیاالاحمد"صارم الحسیني الحنفي"

